

# اقتصادي ترهګري

## امریکا څنګه او ولې په نړۍ واکمني کوي؟

- د یوه امریکایي اقتصادي جنایتکار د جرمونو اعتراف
- په درېیمه نړۍ کې د سترو پروژو او پانګونو پټ او وېرونکی مخ

**جان پرکنز**

ژباړه: میر احمد یاد



بسم الله الرحمن الرحيم




## د کتاب ځانګړنې:

**د کتاب نوم:** اقتصادي ترهګري

**ژباړه:** میر احمد یاد

**خپرندوی:** مومند خپرندویه ټولنه - جلال اباد

**برېښنالیک:** Momand.books@gmail.com

**ډیزاین چارې:** ایملیار ساجد

**چاپ کال:** ۱۳۹۵ لمریز - ۲۰۱۶ میلادي

**چاپ وار:** لومړی

**د چاپ شمېر:** ۱۰۰۰ ټوکه

**چاپځای:** د مومند خپرندویې ټولنې تخنیکي څانګه




Scanned by CamScanner

## ټړون

د دوو ښاغلو دوکتور لطیف بهاند او
ډاکټر احسان الله درمل په نامو.

## ډالۍ

افغانستان کې د رواني لویې لوبې هر دردیدلي قرباني ته!

یاد

# لیکلړ

## سرلیک / مخ

# د ژباړن سریزه

دغه کتاب مې ۲۰۱۴ کال کې لوستی و او خدای شته هماغه وخت مې زړه و چې ویې ژباړم، د ځنډ لامل یې دا شو ۲۰۱۵ کال مې په یوه کوچنۍ دنده کې تیر کړ او بیا مې (سیاسي ټولنپوهنه) کتاب وژباړه، خو زړه په دې ښه کوم چې هر وخت سر وخت وي.

د کتاب د ارزښت په اړه خپله کتاب کې ډېر څه شته او پیژندنه یې ملګري همیم جلالزي په خپله لیکنه کې کړې ده، له همیم صیب ځانګړې مننه کوم چې د کتاب نوم او د Economic hitman په دقیقه ژباړه کې یې راسره مرسته وکړه، ما دا ترکیبي نوم په اقتصاد ځپوونکي ژباړلی و، خو دده ښاغلي په مشوره مې اقتصادي جنایتکار وټاکه.

د کتاب اصلي نوم (د یوه اقتصادي جنایتکار اعتراف) دی، ما د لنډیز لپاره اقتصادي ترهګري وټاکه او دلیل یې دا و چې د کتاب له محتواء سره یې اړخ لګاوه.

مرحوم نصیر مومند ته دعا په ترڅ کې د مومند خپرندویه ټولنې له دوو مسئولینو او قدرمنو ملګرو ( نجیب مومند او فضل مولا مومند) هم ډېره مننه کوم چې هر وخت یې زما د کتابونو چاپ ته زړه ښه کړی او زما خبره یې ځمکې ته نه ده غورځولې.

ایملیار ساجد هم د ځانګړې مننې حقدار دی چې د کتاب پښتی یې په خپلو هنرمندو ګوتو ډیزاین او څو څو ځله بېرته اصلاح کړه، کور یې ودان.

له خپلو ټولو هغو مشرانو، ملګرو، خویندو، ورونو او لوستونکو هم مننه کوم چې زما کتابونه یې لوستي او په اړه یې راسره خپل نظرونه شریک کړي دي.

له تا ښاغلي/ اغلې هم مننه کوم چې کتاب مو ترلاسه کړې او د لوستلو وخت مو ورکړی دی، ددې او نورو کتابونو په اړه ستاسو سپارښتنې، نظريات او لارښوونې راسره مرسته کولای شي.

ښې چارې

ميراحمد ياد

meerahmedamanat@gmail.com

# اقتصادي جنايتکار

ستاسې په لاسونو کې کتاب د پياوړي امريکايي اقتصادپوه، ټولنيز فعال او ليکوال John Perkins اثر دی. ښاغلی پرکينز د خپل همدغه کتاب د ليکلو پر مټ نړيوال نوم وموند. کتاب له هغو رازونو ډک دی چې کله کله پرې د مبالغې شک هم کېدای شي.

په ۲۰۰۴ کال کې چاپ شوي دغه نانديز کتاب تر يوې لسيزې زيات وخت د اقتصادي نظامونو په اړه بحثونه تاوده ساتلي دي. دا چې کتاب د لومړي ځل لپاره د داسې مسايلو په اړه خبرې کوي چې يا نړۍ ورسره عادي نه ده او يا هم فوق العاده حساس دي، نو ځکه تر ټولو لومړۍ پوښتنه د کتاب د اعتبار په هکله راپورته کېږي.

دغه مهم اثر په درېيمه نړۍ کې د امريکا د متحده اياﻻتو او نړيوالو اقتصادي او مالي ادارو پر هغو مالي او اقتصادي پاليسو باندې رڼا اچوي چې د دولتونو برخليکونه ټاکي. تر څنګ يې دا هم روښانه کوي چې د ملګرو ملتونو په اړانه کې زورو هېوادونه څنګه د بېوزله هېوادونو رايې په پيسو اخلي او په دولتي کچه دا څومره اسانه ده چې يو هېواد دې پر بل باندې د خپلو اقتصادي ګټو د تامين لپاره بريد وکړي؟

کتاب په ټوله کې د ښاغلي پرکينز د څو لسيزو تجربو نچوړ دی چې د ليکوال په وينا د "اقتصادي جنايتکار" په توګه يې پخپل کاري ژوند کې ترلاسه کړې دي.

د دغه کتاب په اړه له لومړي سره دوه نظرونه موجود و او لا هم له همدغو دوو زاويو څخه ورته کتل کېږي. يوه ډله چې پکې د امريکا او په ټوله کې د پانګوالی د نظام ملاتړي دي استدﻻل کوي چې په کتاب کې راغلي مطالب د اعتبار له پلوه کمزوري دي.

د دوی اصلي پوښتنه د ليکوال د انګېزې په اړه ده او وايي هغه څوک چې څو لسيزې يې د امريکا په مهمو دولتي او نادولتي ادارو کې کار کړی وي او دغه هېواد ته يې په اقتصادي برخه کې پرمختګونه ور په برخه کړي وي څنګه په ناڅاپي توګه خپل مسير بدلوي او مسايلو ته له بله اړخه ګوري.

دوی وايي هغه څه چې ښاغلي پرکنيز په کتاب کې د اقتصادي جنايتونو او يا اقتصادي ترهګرۍ په توګه ورڅخه يادونه شوې ده له واقعيت څخه لرې دي.

په کتاب کې د يو شمېر نړيوالو پېښو نسبت هم امريکا ته شوی دی. د بېلګې په ډول، ښاغلی پرکنيز د پاناما د پخواني ولسمشر عمر توريجو او د اکواډور د پخواني ولسمشر جيمي رولډس وژل کېدل تصادفي نه بولي او وايې دا دواړه پخواني ولسمشران د خپل هغه مقاومت له کبله ووژل شوي چې د نړيوالو مالي او اقتصادي شرکتونو او حکومتونو د لاسوهنې پر وړاندې يې کړی و.

دا هماغسې يوه نانديزه تيوري ښکاري لکه د امريکا په دښمنو هېوادونو کې چې د هغه هېواد د پاليسيو په اړه تبليغ کېږي او د هرې لويې او ورې پېښې نسبت امريکا ته کېږي.

خو بله ډله چې د امريکا او پانګوالی نظام پر ضد دي ددغه کتاب تود هرکلی يې وکړ او په کتاب کې راغلي ټول مطالب سم او باوري بولي. د دولتونو په کچه په دې ډله کې د سوېلي امريکا او اسيا ځينې هېوادونه شامل دي.

که څه هم ددغه مهم اثر يوازې يوه کوچنۍ برخه د افغانستان له مسايلو سره تړاو لري خو له دې کبله چې افغانستان په تېره يوه نيمه لسيزه کې د

امریکا او نړیوالې ټولنې پراخ حضور تجربه کړي نو افغانانو ته د کتاب لوستل او پکې د راغلو مسایلو په اړه معلومات اړین دي.
د افغانستان برخه یې د شوروي له یرغل وروسته کلونو او بیا له ۲۰۰۱ کال وروسته د نړیوالې ټولنې راتګ ته ځانګړې شوې ده او پر دې بحث شوی دی چې د امریکا د یوه مالي او اقتصادي ملګري په توګه په افغان جهاد او یا په ټوله کې ددغه هېواد په کورنیو جګړه کې د سعودي عربستان ونډه څه وه؟

ښاغلي پرکنیز په دې برخه کې یوازې د سعودي او امریکا پر مالي اړیکو تم شوی دی او کاږي چې په ۱۹۸۰ یمو کلونو کې سعودي د افغان جهاد لپاره د بسپنې په راټولو بوخت و او راټولې کړې پیسې یې تر دوه درځنو زیاتو هېوادونو کې د نیمه پوځي مرکزونو پر جوړولو ولګولې، وسلې یې پرې واخیستلې او خلک یې راجذبول. دا هغه مرکزونه و چې وروسته بیا د ترهګری په ځالو بدل شول او القاعده یې راوټوکوله.
په دغه کتاب کې افغانستان ته د نړیوالې ټولنې په تېره بیا امریکا راتګ ته هم د یوه تیري په سترګه کتل شوي دي او وایي افغانستان ته د امریکا راتګ د غچ اخیستلو د یوې هڅې پایله وه.
۷۱ کلن پرکنیز د امریکا د ملي امنیت له ادارې او نورو پیاوړو اقتصادي ادارو سره د کار اوږده مخنیه لري او اوس اوس په نړیوالو فکري او څېړنیزو مرکزونو کې وخت ناوخته ویناوې کوي.
د کتاب لیکلو سبک یې ډېر هنري دی آن دی خپله وایي چې په لومړي ځل یې یوه ناشر ته د چاپ لپاره ورکړ هغه ورته ورباندې د داستان ګمان وکړ.

زما د معلوماتو له مخې پښتو ۳۳ ژبه ده چې د جان پرکنيز دا مهم اثر ورته را
وژباړل شوی او د ژباړې زيار يې ملګري ميراحمد ياد ګاللی دی چې زه دا
هڅه ستايم او د نورو برياليتونو په تمه يې يم.

دغه مهم کتاب له چاپه وروسته اويا (۷۰) اونۍ د نيويارک ټايمز ورځپاڼې د
ډېرو پلورل شويو کتابونو د لړليک په سر سر کې و او زما هيله دا ده چې
پښتو ژباړه به يې هم ښه بازار ولري.

د خدای ښه

حفيظ هميم جلالزی

## يادونه

اقتصادي جنايتکاران (EHM: Economic hit Men) په لوړو پوستونو ګومارل شوي مسلکي خلک دي. دوی لوړ معاشونه اخلي او کوم هېواد يې چې ګوتو ته ورشي ميلياردونه ډالر زيان ور اړوي. د دوی کارونه نړيوال دي. دا هغه خلک دي چې نړيوال بانک، USAID او داسې نورو مرستندويه ادارو نه د ډېرو پېسو مخه سوداګريزو شرکتونو او څو شتمنو کورنيو خواته ګرځوي. دا شرکتونه او کورنۍ له مخکې د هېوادونو په زېرمو او سرچينو واکمن وي.

دوی کومه وسله کاروي؟ د دروغو مالي راپورونه، ټاکنې، رشوت، چور، جنس او وژنې. ددوی لوبه د پخوانيو امپراتورۍ هومره زړه ده خو په دې توپير چې ددوی لوبې د معاصر نړيوالتوب په دور کې د خپل حجم پر بنسټ يوه وېرونکې بڼه خپله کړې ده.

په دې لوبه به له ما څوک ښه پوه شي؟ ځکه چې زه خپل يو اقتصادي جنايتکار (EHM : Economic Hit man) پاتې شوی يم.

دا د ۱۹۸۲ کال ليکنه ده چې زما د کتاب (د اقتصادي جنايتکار ضمير (Conscience of an Economic Hit Man) پيلامه وه. ددې کتاب ترون د دوو هېوادونو د مشرانو په نوم شوی و، چې زما پېرودونکي وو. ما به ددوی دومره قدر کاوه لکه سړی يې چې د خپلوانو کوي. دا دواړه قدرمن شخصيتونه يو جيمي رولډوس د اکوادور ولسمشر او بل عمر طوريجو د پانامې ولسمشر و چې دواړه په اورنيو پېښو کې مړه شول. حقيقت دا دی چې ددوی مرګ پېښه نه وه. دا دواړه ووژل شول، ځکه د شرکتونو، حکومتونو او بانکونو له مشرانو سره يې جوړجاړی نه کاوه. ددې جوړجاړي يوازينۍ موخه د نړيوالې امپراتورۍ منځته راتګ و. موږ اقتصادي جنايتکارو

چې دا دواړه ولسمشران لاري ته سم نه کړل؛ نو بیا یو بل ډول جنایتکاران ... د CIA نازولي (ګیدړان Jackals) رامیدان ته شول، دوی به تل زموږ ملتیا کوله.

ماته وویل شول چې ددې کتاب له لیکلو تېر شم، له هغې وروسته به شل کالو کې ما څلور خله ددې کتاب لیکلو هڅه وکړه. خو هر ځل دا هڅه نړیوالو حالاتو اغېزمنه کړه. ۱۹۸۹ کال کې په پانامې برید، لومړی خلیجي جګړې، د سومالیې قضیې او د بن لادن راڅرګندېدو زه له دې کتابه لیرې کړم.

د یوه ستر نړیوال شرکت په ملکیت کې د یوې خپرندویه اداري مشر په ۲۰۰۳ کال کې دا مسوده ولوسته چې اوس د اقتصادي جنایتکار اعتراف (Confessions of an Economic Hit Man)، په نوم یادیږي. هغه ویل چې دا کیسه به ډېره ولوستل شي. دا حقایق باید خلکو ته ښکاره شي. بیا یې ترخه موسکا وکړه، سر یې وخوځاوه او ویې ویل چې د اجرایوي رئیس په دفتر کې به پرې نیوکه وشي، ځکه هغه ددې د خپرېدا خطر نشي منلای. هغه راته نصیحت وکړ چې دا په کیسه ایز ډول ولیکم. په دې صورت.کې هغه ما د جان لي کار او ګراهم ګرین په څېر یو ناول لیکونکی معرفي کولای شي.

خو زما ستونزه دا وه چې دا کتاب ناول نه و. دا زما د ژوند ریښتیني کیسه وه. بیا یو زړور خپروونکی چې د کوم نړیوال شرکت برخه نه وه دې ته راضي شو چې خلکو ته ددې کیسې په رسولو کې راسره مرسته وکړي.

ما هوډ کړی و چې دا کیسه به اورول کیږي. موږ د وېروونکو بحرانونو او سترو فرصتونو له دوره تېرېږو. د یوه جنایتکار کیسه به درته ووایي چې نن موږ په کوم ځای کې او ولې ولاړ یو؟ دلته څنګه را ورسیدو ؟ له کومو

بحرانونو سره مخ او په وړاندې یې بیوسه ولاړ یو. دا کیسه له دې امله هم لړینه وه چې موږ د خپل تېر وخت په تېروتنو پوه شو او له راتلونکو فرصتونو ګټه واخلو. موږ ټول پوهېږو چې د ۹/۱۱ پېښه وشوه او عراق کې دویمه جګړه هم ونښته. د ۲۰۰۱ کال د سپتمبر په ۱۱ نېټه د ترهګرو په لاس درې زره کسان ووژل شول، په دې هغه ۲۴۰۰۰ نور هم ورزيات کړئ چې د لوږې او نور لاملونو له امله هره ورځ مري. په دې حقیقت هم پوه شئ، هره ورځ ۲۴۰۰۰ کسان یوازې له دې امله مري چې د ژوند لپاره لومړني خواړه نه لري.(۱) پر دې سربېره تر ټولو مهمه خبره دا ده، نن یو ولس هغه وړتیا، وسایل او سرچینې لري چې په مرسته یې دا هر څه بدلولای شي. دا هغه ولس دی چې زه پکې زېږېدلی او اقتصادي جنایتکار شوی یم، یعنې د امریکا متحده ایالات.

ما ولې په ټولو ګواښونو او امتیازاتو سترګې پټې کړې؟

لنډ ځواب یې دا دی چې زما یوازینی لور جیسیکا کالج ختم کړی او یوازې یې د عملي ژوند په ډګر کې قدم ایښی. څه وخت مخکې مې ورته وویل چې زه دا کتاب خپروم او ورسره تړلې اندېښنې مې هم ورته وویلې، هغې راته کړل چې : (پلاره! ته غم مه کوه، که هغوی تاته کوم زیان در ورساوه نو ستا پاتې کار به زه سر ته ورسوم. موږ باید دا کار وکړو، د هغه نسل لپاره چې په رامنځته کولو کې به یې یوه ورځ زه هم ونده ولرم.) دا ددې پوښتنې لنډ ځواب دی.

تفصیلي ځواب یې هغه احساس سره اړیکه لري چې له مخې یې ما ځان خپل هیواد ته وقف کړی دی. زه چې چېرته زېږېدلی او لوی شوی یم. زموږ د مشرانو له لوړ فکر سره مینه، د امریکا له جمهوریت سره زما تړون، چې نن راته د خپلواکۍ او خوښۍ ژمنه راکوي، دا شیان هر څوک هر چېرته

دا هغه عناصر دي چې ددې تفصیلي خوب برخه ده. پر دې خوارې، دا هغه عناصر دي چې ددې تفصیلي خواب برخه ده. پر دې
سربېره له ۹/۱۱ نه وروسته ما قوي هوډ وکړ چې اوزګار به نه کېنم، که څه
هم اقتصادي جنایتکار هڅه کوي چې جمهوري امریکا په نړیواله
امپراتورۍ واړوي. دا د تفصیلي خواب اصلي خاکه ده. تاسو به وګورئ چې
په راتلونکو برخو کې زه څنګه په دې خاکه یا چوکاټ غوښه ورپورې کوې او
د زړه وینې ورکوم.

دا یوه رښتینې کیسه ده، زه پکې اوسېدلی یم. خلک، منظرونه، خبرې اترې
او هغه احساسات چې ما انځور کړي ټول د همدې ژوند برخه ده. دا زما
شخصي کیسه ده خو د نړیوالو پېښو په پراخه پرده راغلې ده، دې زموږ د
تاریخ خدوخال جوړ کړی دی، دې موږ هغه ځای ته رسولي یو چې نن په
کې ولاړ یو او زموږ اولادونو ته یې د راتلونکي ژوند نقشه ورکړې ده. ما تر
خپله وسه هڅه کړې چې دا تجربې، خلک او اړوند خبرې اترې سمې بیان
کړم.

زه چې هر وخت تاریخ لیکم یا له نورو خلکو سره خپلې خبرې رانقلوم نو له
څو عواملو مرسته اخلم چې په هغه کې خپاره شوي اسناد، شخصي
یادښتونه او په ذهن کې شته پېښې چې د هر یو خپل او پردي یادونه هم
پکې دي او خپله ددې پېښو یوه برخه ده. له دې مخکې پیل شوې پنځه
مسودې، د نورو لیکوالو تاریخي لیکنې او هغه معلومات چې تر دې دمه پټ
یا ورک وو. زیاتره حوالې په وروستیو برخو کې شته چې د لا ډېرو څېړنو
شوقي لوستونکي ترې ګټه واخلي، ځینې ځایونو کې مې له یوه کس سره
څو ځل خبرې د تسلسل مراعتولو لپاره را یو ځای کړي دي. زما خپروندوی
وپوښتلم چې تاسو ځانونه اقتصادي جنایتکار بلل؟ ما ورته وویل چې
همداسې کېدل خو کله کله یې لنډیز EHM کارېده. حقیقت دا دی چې کله

په ۱۹۷۱ ما له خپلې ښوونکې کلاډین سره کار پیل کړ؛ نو راته یې وویل:
(زما کار دا دی چې تا د اقتصادي جنایتکار په قالب کې واچوم، له دې کاره دې هېڅوک خبر نه شي، تر دې چې ستا مېرمنه هم نه.) بیا یې راته په جدي لهجه وویل: ( دې کار ته چې یو ځل څوک راننوځي بیا پکې تټول عمر وي.)

زه چې کومې دندې ته راننوتی وم د کلاډین ونډه پکې یوه ښه بېلګه وه چې څنګه کار یې کاوه. له ښایست او ځیرکتیا سره یې خپل کارونه هم په ښه ډول ترسره کول. هغه زما له کمزوریو (ضعفونو) خبره وه او ښه ګټه یې ترې واخیسته. هغې به چې خپل مسئولیتونه ترسره کول دا معلومات ترې کېده چې ددې نظام تر شا ولاړ خلک څومره کامل او باریک بین دی.

زه به څه کوم؟ ددې په ویلو یې هېڅکله امرانه چلند راسره ونه کړ. راته یې کړل: ( ته د بېلابېلو ولسونو رهبران دې شبکې سره یوځای کېدو ته وهڅوه . دا شبکه د امریکا د ګټو خوندیتوب ته کار کوي. هغوی چې ددې شبکې برخه وګرځي؛ نو پورونو کې به داسې ډوب شي چې وفاداري به یې هم باوري شي. بیا موږ د خپلو سیاسي، اقتصادي او پوځي موخو پوره کولو لپاره په دوی هر ډول باور کولای شو. ددې په بدل کې دا خلک په صنعتي مرکزونو، برېښناکوټونو او هوايي ډګرونو خپل ولس خوشالولای شي او حکومت پرې کولای شي، دې سره به زموږ ساختماني او انجینري شرکتونه په شتمنۍ ماړه شي.

نن موږ ددې سیستم پایله ګورو او هغه دا ده چې د شخصي ګټو لپاره خلک وژنې کوي او د لیونو په شان ورپسې منډې وهي. زموږ د ډېرو قدرمنو شرکتونو مشران خلک د غلامۍ هومره معاش په بدل کې ګوماري او بیا یې د غیرانساني حالاتو له مخې د سختو کارونو صنعتي بټیو ته ورغورځوي. د

تېلو شرکتونه فاضله مواد سيندونو او نهرونو کې خوشي کوي او په شعوري ډول حيواني او نباتي ژوندونه اخلي. پخواني تمدن له خاورو سره خاورې کيږي. د ټولې نړۍ درمل جوړوونکي دې خبرې ته پام کوي چې په افريقا کې ايډز وهلو ناروغانو ته د خونديتوب درمل ونه رسيږي. زموږ په خپله امريکا کې يو سل او شل زره کورنۍ داسې دي چې نه پوهيږې راتلونکې ډوډۍ به ور ورسيږي او که نه؟ (۲)

که د ډېرو شتمنو هيوادونو د نفوس د پنځمې برخه عايد تناسب د ډېرو بېوزلو هغو له پنځمې برخې سره وليدل شي نو معلوميږي چې په ۱۹۴۰ کې ا دېرش او يو) وو او په ۱۹۹۵ کې (څلور اويا او يو شو). (۳) عراق کې د امريکايي پوځونو کلنی لګښت ۸۷ بيليونه ډالر دی، د ملګرو ملتونو د يوه تخمين له مخې ددې پيسو په نيمايي ټوله نړۍ کې هر يو کس ته د څښاک اوبه، خواړه، روغتيا، صفايي او د زده کړو اسانتياوې برابرېدی شي. (۴)

موږ په دې حقايقو سترګې پټوو او بيا لا پوښتنې هم کوو چې ترهګر مو ولې په نښه کوي؟

ځينې خلک زموږ اوسنۍ اندېښنې يوه منظمه دسيسه ګڼي، کاشکې خبره دومره ساده وی. دسيسه بازان رسواء کېدای او محکمې ته راکش کېدای شي. ددې نظام د چلولو لپاره چې څه شی وسايل برابروي له دسيسې ډېر خطري دي. دا موټر يوازې يو کس نه دی راون کړی ددې تر شا يو فکر دی چې له بده مرغه د اسماني صحيفې درجه يې خپله کړې ده. تاسو به دې نظر غور وکړئ: هر ډول اقتصادي پرمختګ د ټول انسانيت په ګټه دی او هر څومره پرمختګ چې کيږي هومره ورسره ګټې هم پراخيږي. دا نظر په همدې ځای نه ختميږي. وروسته له دې منطقي پايله هم اخيستل

کېږي. هغه خلک چې د اقتصادي پرمختګ سرعت په زياتولو کې تر نورو مخکې وي په لوړو دندو باید وګومارل شي او امتيازات ورکړل شي. پاتې هغه خلک شول چې ددې خوشالۍ په ليرې کونجونو کې پراته دي، هغوی خو بايد استثمار شي.

په دې کې هېڅ شک نشته چې دا فکر له سره غلط دی. موږ پوهېږو چې زياتره هيوادونو کې د اقتصادي پرمختګ ګټه يوازې لږ اقليت ته رسيږي، دې سره يو ستر اکثريت نهيلی کيږي او د تخت يا تختې فکر ورسره پيدا کېږي. دا فکر له دې امله لا ډېر قوي کېږي چې د صنعت او کسب سره تړلي خلک ټول نظام چلوي او بيا ورته لوړ پوستونه او مقامات ځانګړي کېږي. دا فکر او باور زموږ د ډېرو فسادونو جرړه ده او له امله د دسيسو بې شمېره فکرونه راپيدا کيږي. خلک چې يوازې د انعام حسد وکړي، همدا حسد يې بدنيتي او خيانت رامنځته کوي. د دنيا وسايلو لوټونکي ته چې د ملنګۍ درجه ورکړل شي، کله چې موږ خپلو بجوته د غير متوازن ژوند تېرونکو کې منډه ورزده کوو او کله چې موږ د خپل نفوس شريف اکثريت د سپک اقليت لاس لاندې کوو دا په دې معنا ده چې ستونزو ته بلنه ورکوو او ورسره مخ کيږو هم.

ددې نړيوالې امپراتورۍ د لا پراختيا لپاره شرکتونه، بانکونه او حکومتونه خپله شتمني او سياسي قوت کاروي، دوی دا خبره پخوي چې ښوونيزې او سوداګريزې اداري د رسنيو په ملتيا نه يوازې ددې ناسم فکر؛ بلکې ددې د پايلو ملاتړ هم وکړي. دې اتحاد موږ داسې ځای ته راوستي يو چې زموږ نړيوال تمدن د يوه ښامار شکل خپل کړی دی، ددې ښامار لوږه شبېه په شبېه ډېرېږي او د لا ډېر خوراک لپاره خوله خلاصوي. ددې زياتېدونکي

حجم او لوړې ته چې ګورو؛ نو داسې فکر کیږي چې څه یې مخې ته راځي هغه به تېروي او بلاخره به ځان هم وخوري.

د قزاقانو دا ټولی ( کارپوریټوکراسي) دسیسه نه وه، ددې غړو په عام ډول مسلم ارزښتونه او موخې منلې. یو لوی مسئولیت یې دا دی چې خپله دوام وکړي، سیستم قوي کړي او د پراختیا فرصتونه یې برابر کړي. ددې نظام د رامنځته کوونکو ژوند، کورونه، اسانتیاوې او شخصي الوتکې موږ ته د بېلګې په ډول ښودل کیږي او همدا درس راکول کیږي چې خوره څښه او حساب مه منه. موږ ته دا باور راکول کیږي چې لګښت زموږ ښاري مسئولیت دی. د ځمکو د لوټ بازار که تود شي زموږ د اقتصادي لپاره ښه دی ځکه موږ خپلولوړو موخو ته رسیږو. ددې نظام پر مخ وړلو لپاره د حیرانتیا تر حده لوړ معاشونه ورکول کېدل. که موږ به لږ سست شو؛ نو ډېر بې ضمیره جنایتکاري (ګیدړان) به رامیدان ته شول او که به دوی هم ناکام شول نو بیا به د پوځ نوبت و.

زه د اقتصاد جنایتکارۍ پر وخت یوې نسبتاً وړې ډلې سره وم. اوس ددې خلکو شمېر زیات شوی دی، ډېر درانه او قدرمن القاب ورته غوره شوي دي. دا خلک د مونسانټو، جنرل الکتریک، نایک، جنرل موټرز، وال مارټ او داسې نورو شرکتونو غلامي کوي. دا کتاب په حقیقت کې زما او د هغو خلکو کیسه ده.

له یوه اړخه دا ستاسو کیسه هم ده ځکه چې زما او ستا د نړۍ کیسه یوه ده. تر څنګ یې د دنیا لومړنۍ نړیوالې امپراتورۍ سرګذشت هم دی. تاریخ دا درس راکوي چې که دې کیسې کې مو مناسب بدلونونه رانه وړل پابله به یې عبرتناکه وي. امپراتورۍ دوام نه کوي، ټولې ناکامې شوي دي، څومره چې د واکمنۍ لپاره منډې وهي هومره تمدن له منځه وړي او بلاخره یوه

داسې ځای ته ورسیږي چې خپله ماتې شي. د نړۍ د یوه هیواد یا هیوادونو جوجاړی تر ډېره د استثمار په مرسته دوام نه شي کولای.

زه غواړم ددې کتاب په مرسته دا پیغام ورسوم چې، موږ خیر شو او ددې کیسې سکرېټ په یوه بل قالب کې واچوو. که موږ پوه شو چې دا نظام مو څنګه استثماروي، لوړه څنګه ورځ تر بلې زیاتېږي او په نړۍ د غلامۍ راوستلو نظام پلی کیږي؛ نو نه یې شو زغملای. موږ ګورو چې یو شمېر خلک لکه ښاماران په خزانو ناست دي او ډېر شمېر نور د غربت شپې ورځې تېروي، دې سره به موږ په خپلو کارونو بیا ځلي فکر وکړو. موږ باید د هغه لارې پیدا کولو ته ځان وقف کړو چې ټولو ته پکې مینه، جمهوریت او ټولنیز عدالت وي.

د ستونزې په ښنه کول یې حل خواته لومړی ګام دی، په ګناه اعتراف د کفارې پیل دی، نو بیا دې دا کتاب د خلاصون خواته د سفر پیل وګڼل شي. زه باور لرم چې دا کتاب به د هیلو نوی څرک او متوازنې او قدرمنې ټولنې خواته د تګ په برخه کې نوې جذبه او ولوله راوپاروي.

زه له ډېرو خلکو سره مخ شوی یم او دې کتاب کې یې یادونه شوې ده، ددوی له مرستې پرته دا کتاب نه پوره کېده، دوی زه په خپلو تجربو او مشاهدو کې شریک کړم، زه له ټولو ډېره مننه کوم. له هغو هم مننه کوم چې ددې کیسو په خطرناکه دره کې یې د قدم کېښودو جرات راکړ. سټیفنین ریشتشیفن، بل، لبن ټویسټ، این کیمپ، او ارټ ډریم هغه قدرمن ملګري دي چې د ډریم چینج په سفرونو او ورکشاپونو کې راسره وو. په دې ډله کې زه د څو کسانو ځانګړې یادونه کوم چې په هغو کې زما همکار ایوبروس، لن رابرټس هېرک، میری ټینډل، ستر شخصیت ونفریډ چې له پنځه ویشتو کالو زما د ژوند ملګرې ده او زموږ لور جیسیکا.

له هغو بې شمېره اغلو او ښاغلو هم مننه کوم چې د بانکونو، نړیوالو ادارو او د هیوادونو د بدمعاشانو په اړه یې خپلې تجربې او مشاهدې راسره شریکې کړې. په دې برخه کې له مایکل بنی ایلی، صابر نیا بالوګني، جوناتان ګیبریل کارسکو، جیمي ګرانټ، پال شا او نور هغو کسانو مننه کوم چې د معلوماتو خزانه یې بللای شم.

دا مسوده چې پوره شوه د سټیون پایرسانتي موسس بیرټ کوهلر راته دلدار راکړ او د یوه ښه ایډیټر په توګه یې راسره ساعتونه کار وکړ، د هغه د مشورو په رڼا کې ددې کتاب خاکه بیا بیا ترتیب شوه. زه له سټیون او ریچارډ پیرل نه د زړه له تله مننه کوم چې ده سره یې معرفي کړم. له ګانوا براون، رینډي فیټ، این جونز، کرس لي، جینیفر لس لاري پیلوشید او جیني ویلیمز نه هم مننه کوم چې مسوده یې ولوسته او کره کتنیز جاج یې ددې واخیست. له ډیوډ کورټین نه هم مننه کوم، چې مسوده یې ولوسته، نقد یې پرې وکړ او زه یې لوړ معیار ته ورسولم. له خپل استازي پاول فدورکو، ډیزاینر والیري بریوستر او مرستیال یې ټاډ متناز نه هم مننه کوم، نوموړی د الفاظو باریک بین او له وړتیا ډک فیلسوف دی.

پر یادو کسانو سربېره لاندې خلک د ځانګړنې مننې حقدار دي:

د بېرټ کوهلر ایډیټر جیون سواسبرمنیم، کیون لیوپاف، رک ولسن، ماری جیسس (اګیلو)، پیټ اندرسن، مارین کک، مایک کرولی، رابن ډونووان، کرستین فرانز، ټفالي لي، کیتراین لینګرون او ډیانا پلانټر. دا ټول د بېرټ کوهلر کارکوونک دي، دوی دا احساس لري چې د خلکو حقیقي شعور باید راویښ شي، ددې نړۍ د ښه کولو لپاره دې خلکو کار کړی دی.

پولم او پینګوین چې ددې کتاب بې له ښنتی خپرولو هوډ وکړ؛ نو کارکوونکو یې په نوي انداز کې د تخلیق ډېره هڅه وکړه او ځینې اضافي

مواد يې هم برابر کړل. زه له خپلې ایډیټرې ایمي هینز منه کوم چې له پیله یې په دې پروسه کې دلچسپي لرله. ددې ځینې ځانګړنې یادوم؛ مثلاً صبر، مسلکي ورتیا او د مفاهمې مهارت. ددې تر څنګ د ځینو خلکو د ورتیا یادونه کوم ؛ لکه مسول مدیره ټرنیا کیټینګ، پبلسټي ډایرکټر برانټ جین، پروډکشن ایډیټره نورینا فرابوټ، ابیګیل پاورز. سب رایټس ډایرکټر الاین اکیلس، د نوې سرپاڼې جوړونکی جایا مصیلي او د بازارموندنې کواردیناتور ګریچن سوارټلی. په دې ټوله پروسه کې پلم او بیریټ کوهلر همغږي پیدا کړه او ځان یې ددې ګډې موخې ترلاسه کولو ته وقف کړ، چې دا پیغام ډېرو خلکو ته ورسیږي ، چې د ښوونځي او پوهنتونو متعلیمنو او محصلینو ته پکې ځانګړې پام شوی.

له ټولو هغو کسانو هم منه کوم چې ماسره یې MAIN کې کار کاوه خو په دې نه پوهېدل چې د نړیوالې امپراتورۍ په رامنځته کولو کې څه رول لوبوي. هغه خلک هم د منې وړ دي چې ماته یې کار وکړ، لیرې ځایونو ته یې راسره سفرونه وکړل او د ژوند ښایسته شېبې مې ورسره تېرې شوې. دلته د inner traditions international د ایهود سپرنګ او د هغوی د پرسونل یادونه هم اړینه ده، چې دځایي تمدن او شیلمنیزم ( د شمالي کوریا مذاهب چې د جادو پر بنسټ ولاړ دی) پر موضوعاتو لیکل شوي کتابونه یې ما خپاره کړل. دا ټول زما ښه ملګري دي او هم دوی د لیک او خپراوی لارې ته سم کړم.

زه له هغو خلکو هم منه کوم چې خپلو کورونو ته یې بوتلم، بې له دې چې وګورې کورونه یې ځنګلونو، د غرونو غاړو، د سیند په غاړو له ونو جوړ دي او که په تنګو او تیاره کوڅو کې دي. زه د هغو خلکو له مېلمه پالنې منه

کوم چې په ژوند کې يې شريک پاتې شوی يم، په ما کې د يوې نوې ساه پوکولو کې دې خلکو لوی لاس درلود.

جان پرکنز - اگست ۲۰۱۴

## حوالې :

۱ The united food programme , http:// www. Wfp.org/index,asp? Section=۱

۲ Http:// www. Frac . org

۳ د ملګرو ملتونو راپور .Human Development Report

٤ د ملګرو ملتونو او UNDP د سروې له مخې په په نړۍ کې هر شخص ته د پاکو اوبو او صفايي د اسانتيا رسولو لګښت بايد نهه بيليونه ډالر ورزيات شي. که دولس بيليونه نور ولګول وشي د نړۍ هرې مېرمن ته د اميدوارۍ او لنګون اسانتياوې برابرېدای شي. د نړۍ هر ورځي د خوړو رسولو او بنسټيزو صحي خدمتونو لپاره بايد ديارلس بيليونه ډالر ولګوو. که شپږ بيليونه نور ورسره ولګوو د نړۍ هر شخص د لومړنيو زده کړو په ګانه سينګاريدی شي، چې دا ټول لګښت څلويښت بيليونه ډالره کېږي. Diet for a New America the Food Revloution. نه اخيسته.

# د پیل خبرې

د اکوادور پلازمېنه (کیټو) ښار د اینډیز غرونو په درې زره متره ارتفاع او اور غورځونکې سیمه کې پروت دی. دا ښار امریکا ته د کولمبس تر رسېدو مخکې اباد شوی و. که څه هم د استواء کرښه ددې سیمې سویل ته یوازې څو میله واټن کې تېره شوې ؛ خو بیا هم ددې سیمې خلکو د غرونو له سپینو واورو سره بلد دي.

د شیل (Shell) ښار پوځي هډه ده، ددې هډې د جوړولو لپاره یې د امازون ځنګلونه وهلي وو. دغه ښار د شیل نفتي شرکت د اړتیاوو پوره کولو لپاره جوړ شوی دی او له کیټو نږدې ۲۷۰۰ متره ښکته پروت دی. دا ښار ډېر ګڼ دی، زیاتره اوسېدونکې یې پوځیان، د نفتي شرکتونو کارکوونکي او د کچوا او شوار قبیلو ځایي اوسېدونکي دي. ددې قبیلو نران مزدوري کوي او ښځې یې خپل بدنونه پلوري.

له یوه ښاره باید بل ته پر یوه پیچلي سرک لاړ شئ، ځایي خلک وایي چې که په دې سرک ځئ نو په یوه ورځ کې به د کابل د څلور واړو فصلونو خوند پکې وڅکئ.

زه پر دې سرک ډېر تللې راغلی یم؛ خو ددې له ښکلا مې زړه نه دی موړ شوی. ددې سرک یوې غاړې ته دنګ واورین غرونه، ښکلې منظرې او ځړوبې( ابشارونه) دي او بلې خواته یې بیا ژور ګړنګ دی چې د پستاذا سیند پکې د مار په شان تاو راتاو زوان دی. د پستاذا د سیند سرچینه د کوټوپیکسي رود (ګلیشر) دی. په دغه ځای کې د نړۍ تر ټولو ستر اورغورځوونکی (اتش فشان) دی او د انکاس په وخت کې ورته د یوې الاهې (دیوي) مقام ورکړل شوی و، دا سیند نږدې درې زره میله مزل کوي او د کوټوپیکسي اوبه د اتلانتیک بحر ته غورځوي.

په ۲۰۰۳ ز کال کې مې بوستون پرېښود او کیټو خواته روان شوم. زه په یوه بې ساري عملیات مامور شوم چې تر دې مخکې ورسره نه وم مخ شوی. ما وې هغه جګړه به پای ته ورسوم چې په پیل کولو کې یې ما هم لاس درلود، موږ اقتصادي جنایتکار زیاتره وخت د ځینو پېښو او کارونو مسئولیت په خپله غاړه اخلو، موږ په دې ښه پوهېږو چې کومه جګړه کوو؟ په دې جګړې یوازې هغه هیوادونه پوهېږي د کومو لپاره چې جګړه روانه وي. زه کچوا، شوار او ددوی ګاونډیو اچورا، زپاروس او شویار قبایلو سره د لیدلو لپاره تلم . دا قبیلې په دې خاطر سره یو ځای شوې وې چې خپلې سیمې به په هر قیمت د زموږ د تېلو د شرکتونو له منګلو او ښکاره خلاصوي. دوی دا جګړه د خپل نسل د بقا لپاره کوله او موږ یوازې د قوت او شتمنۍ لپاره میدان ته شوي وو. دا په نړۍ د خپلې واکمنۍ او د نړیوالې امپراتورۍ د دعوه دارو د خوب یوه ځنډه وه.

موږ اقتصادي جنایتکار همدا کار کوو، یعنې نړیوالې امپراتورۍ ته کار زموږ د مسئولیت یو مهم جز دی. موږ د ښځو او سړیو یوه ډله یو. موږ نړیوالې مالي ادارې ددې لپاره کاروو چې د نورو هیوادونو اصلي سرچینې ونیسو او همدا سرچینې په اصل کې زموږ د لویو شرکتونو، حکومتونو او بانکونو د چلولو وسایل دي. په مافیا کې چې زموږ ملګري خلک څه ډول روزي، په همدې ډول اقتصادي جنایتکار (Economic Hitmen) هم روزي. ددې پلان له مخې وروسته پاتې هیوادونو ته د زیربنایي پروژو جوړلو ( برېښنا بندونه، سړکونه، بندرونه، هوايي ډګرونه...) لپاره پور ورکول کیږي. دې پورسره دا شرط هم کېښودل کیږي چې دا ټولې پروژې به زموږ خپل شرکتونه پلې کوي. یعنې په اصل کې د پور یوه لویه برخه له امریکا د باندې بېخي نه وځي. پروسه یې ساده ده، همدا د پور پیسې په واشنګټن

کې له شته بانکونو څخه په نیویارک، هیوستن او سان فرانسسکو کې د لویو شرکتونو دفترونو ته لېږدول کېږي.

که څه هم دا پیسې بېرته هغو ادارو ته زر ورکول کېږي چې د پور ورکوونکې دلې غړي وي؛ خو په څنګ کې یې په پوروړي هېواد دا شرط هم کېښودل کېږي چې پور به له سود سره خلاصوي. هغه اقتصادي جنایتکار بریالی ګڼل کېږي چې د سترو پورونو معاملې وکړي او څو کاله وروسته پوروړی ونه شي کولای چې اخیستی پور پرې کړي او چې داسې حالت راشي؛ نو بیا مونږ هم د مافیا په څېر د انسان له پوستکي پیسې جوړوو. په داسې حالاتو کې زیاتره وخت لاندې یو کار ترسره کېږي:

- په ملګرو ملتونو کې دددې هیواد پر رایې واکمني.
- پوځي هډې اخیستل
- او د پوروړي هیواد تر ټولو غني سرچینې ته لاسرسی پیدا کول، لکه تېل یا د پانامې کانال.

هو که دا کار وشي؛ نو پوروړی بیا هم له پوره نه خلاصیږي، په دې توګه بیا زموږ په نړیوالې امپراتورۍ کې یو ولایت بل هم را زیات شي.

د ۲۰۰۳ ز کال په یوه لمرینه ورځ زه له کیټو نه شیل خواته روان وم. فکر مې ۳۵ کاله شاته لاړ، هغه وخت چې زه د لومړي ځل لپاره دې سیمې ته راتلم. ما ددې سیمې په اړه اورېدلي وو چې د ینوادا هومره ده؛ خو تر دېرش زرو زیات اورغورځوونکي غرونه لري، د نړۍ ۱۵ سلنه بېلابېل مرغان لري او داسې زرګونه ډوله بوټي پکې شته چې تر اوسه پرې هېڅ څېړنه نه ده شوې. تر څنګ یې په دې هم پوهېدم چې دې سیمې ډېر تمدنونه کتلي او څومره خلک چې په هسپانیایي ژبه خبرې کوي، نږدې همدومره یې په نورو ژبو هم غږیږي. ما دا هیواد ډېر ښکلی او په زړه پورې ولید، خواوس

ورته یوازې همدا توري کارولای شم (سوچه، معصوم او پاک.) اوس پنځه دېرش کاله وروسته ډېر څه بدل شوي دي.

زه چې په ۱۹٦۸ ز کال کې دلته راغلم نو ټيکساکو په امازون سیمه کې نوي نوي تېل کشف کړي وو؛ خو نن ددې هيواد د ملي صادارتو پنځوس سلنه تېل (نفت) جوړوي. زما له راتلو سره دلته يو Trans- endean پایپ لاین جوړ شوی چې تراوسه يې نږدې پنځه سوه زره بيرله تېل د باراني ځنګلونو نرمو رګونو ته ورننويستي دي. دا د هغه مقدار دوه چنده کيږي چې Exxon Valdez خپاره کړي وو. ۲ اوس د اقتصادي جنايتکارې ډلې تر نظر لاندې کنسرسيوم يو بل پایپ لاین جوړوي چې درې سوه ميله اوږدوالي به لري او ۱،۳ بليونه ډالره لګښت پرې راځي. په ډېر فخر ويل کيږي چې اکوادور به ډېر زر د هغو لسو هيوادونو په قطار کې راشي چې امريکا متحده ايالاتو ته تر ټولو ډېر نفت ورکوي.۳ اوس پراخه ځنګلونه نشته، سره او شنه طوطيان تللي دي، درې ځايي تمدنونه د مرګ سره مخ دي او ښکلې سيند له ناولو اوبو او پاتې شونو کثافاتو ډک دی.

په دې وخت کې ځايي تمدنونو مقاومت پيل کړ. په ۲۰۰۳ ز کال کې د امريکا د وکيلانو يوې ډلې له شلو زرو د ډېرو ځايي خلکو استازيتوب وکړ او د شيوران ټيکسا کارپوريشن پر ضد يې د يو بيليون ډالرو دوسيه ثبت کړه. دليل يې دا و چې له ۱۹۷۱ نه تر ۱۹۹۲ ز کلونو پورې دې شرکت هره ورځ څلور ميليونه ګيلنه فاضله او زهرجن مواد په روانو اوبو کې خوشې کړي وو. تر څنګ يې نږدې ۱۳۵۰ داسې کندې ويستلي چې انسانان او حيوانات پکې وژل شوي دي. ۴

ما د موټر له ښيښې بهر وليدل چې د پستاذا سيند او ځنګلونو نه ټينګې وريځې راپورته کېدې، کالي مې په خولو لامده شول او معده مې ګډه وډه

شوه، لامل به یې یا ګرمي او یا تاوراتاو سرک و. زه دې فکر خوړلم چې ددې ښایستوکي هیواد په بربادولو کې ما څومره لاس لرلی دی؟ همدې فکر مې ذهن ارام ته نه پرېښود.

موږ چې په لومړي ځل اکوادور ته د اقتصاد، بانکداری، صنعتي پرمختګ او انجینری کومې معجزې ور وښودې، دا هیواد اوس له هغه حالته څو ځله بدتر شوی دی. دا بهیر له ۱۹۷۰ ز کاله راپیل شوی دی چې دا دور یې د تېلو د خوشالۍ دور باله، تر هغه وروسته د فقر کچه له پنځوسو او یا سلنې ته ختلې، بې کاري له پنځلسو اویاو ته ختلې او په دې هیواد پور چې هغه وخت ۲۴۰ ملیونه ډالره وو اوس ۱٦ بیلیونو ته رسیدلی دی. په همدې دور کې هغه قوي وسایل او سرچینې چې د ټولنې تر ټولو بېوزله طبقې ته ځانګړې شوې وې له شل سلنو څخه یې شپږ سلنه پاتې دي.

له بده مرغه یوازې اکوادور په دې حال نه دی، هر هغه هیواد چې زموږ اقتصادي جنایتکارو او نړیوالې امپراتورۍ تر سیوري لاندې راشي، له همدې حالت سره مخ کیږي. ٦

یوه لنډه پرتلیزه کتنه به تاسو هم حیران کړي، د درېیمې نړۍ پوروونه تر ۲،۵ ترلیونه ډالرو اوښتي دي. اداري لګښت یې تر ۳۷۵ بیلیونه ډالرو لوړ دی، د درېیمې نړۍ د ښوونیزو ادارو لګښت تر دې څو برابره ډېر دی او مخ پر وده هیوادونه چې هر کال څومره مرسته ترلاسه کوي تر دې شل سلنه ډېره ده. د ځمکې پر مخ د اوسېدونکي نفوس تر نیمایي زیات یې د ورځې دوه ډالره عاید لري، په همدې ژوند کوي او د یوې سروې له مخې همدومره ورته په اویایمې لسیزې کې ورکړل شول.

د بانوز ښکلي ښار ته چې ورسېدو د موټر سرعت کم شو، دا ښار د تودو چینو له امله مشهور دی، چینې په ځمکه کې له اورغورځوونکو راتېرېږي او لړۍ

يې تر تنګوراګوا رسيږي. ماشومانو په لاسونو کې ژاولې او بسکيټ نيولي وو او موږ خواته يې منډې راوهلې، موږ له بانوزه هم تېر شو، د ښکلي طبيعي منظرو لړۍ ختمه شوه، اوس موږ له جنته وتي وو او هغه دوزخ ته ننوتي چې انځورګري يې دانتې په خپل کتاب Divine Comedy کې کړې ده.

د سيند په منځ کې ستر سيمټي ديوال ښکاره شو، زه يې په ليدو ځکه حيران نه شوم چې ما څو ځله دمخه هم ليدلی و، دا د اقتصادي جنايتکارو يو ستر سمبول ګڼل کېده. دا ديوال په اصل کې د برښنا د يوه بند دی چې د پستاذا سيند مخې ته جوړ شوی دی. د سيند اوبه يې تونلونو ته ننويستي او له دې فشاره يې برښنا جوړوي. دا په اصل کې د ۱۵۲ ميګاواټه برښنا ستره پروژه ګڼل کېده. دې بند هغو صنعتونو ته برښنا ورکوله چې د اکوادور څو کورنۍ يې شتمنولې او د سيند غاړو ته پراته بېوزله خلک يې لا پسې خوارول.

دا بند يوه له هغو پروژو ده چې ما او زما په شان د نورو اقتصادي جنايتکارو لاس ته راوړنه ګڼل کيږي، د همدې ډول پروژو له امله اکوادور هم د نړيوالې امپراتورۍ يوه برخه ګرځېدلې ده. بل حقيقت دا هم دی چې د همدې بند له امله کچوا، شوار او نورې قبليې زموږ د نفتو له شرکتونو سره شخړو او جګړو ته راولاړې شوې دي. د همدې بهرنيو اقتصادي جنايتکارو د پروژو له امله نن اکوادور تر ستوني په پورونو کې ډوب دی. اوس اکوادور اړ دی چې د خپلې ملي بوديجې ډېره برخه د خپلو بېوزلو خلکو د ژوند ښه کولو پر ځای خپلو پورونو کې ورکړي. ددې پورونو د پرې کولو يوازينۍ لار دا ده چې اکوادور خپل ځنګلونو د تېلو شرکتونو ته ورکړي. دا چې ولې اقتصادي جنايتکارو اکوادور ته سترګې غلې کړې يو لامل يې دا دی چې په اکوادور کې د نفتي موادو شته زېرمې د منځنۍ اسيا له هغو کمې نه دي. ۸

اوس نړیواله امپراتوري یو پاو انساني غوښې ته اړتیا لري او قیمت یې د تېلو د امتیاز په شکل پوره کېدای شي.

د ۲۰۰۱ کال د سپټمبر له یوولسمې را وروسته دا غوښتنه نوره هم زیاته شوې ده، ځکه دا وېره شته چې په منځنۍ اسیا کې د نفتو پایپ لاینونه وتړل شي. تر ټنګ یې بل مهم ټکی دا دی چې وینزویلا امریکا ته نفت صادرونکو درې سترو هیوادونو کې یو دی. دوی اوس د (هوګو شیواز) په نوم یو کس ولسمشر ټاکلی او دا سړی د امریکا له دې جابرانه پالیسۍ سره سخت وران دی. اخطار یې ورکړی چې په امریکا به د تېلو پلور بند کړي. اقتصادي جنایتکار وینزویلا او عراق کې ناکام شول؛ خو په اکوادور کې لا ښه روان دي او له دې معلومېږي چې ددې هیواد د خلکو د وینې وروستی څاڅکی هم زموږ دی.

د اکوادور له ځنګونو چې کوم تېل راتېرېږي، په هرو سلو ډالرو کې یې پنځه اویا ډالر د نفتو شرکتونه اخلي. د پاتې پنځه ویشتو ډالرو درې پر څلورمه برخه یې پوروونو کې ځي ، له دې چې پاتې شي ډېره برخه یې بیا په پوځي خدماتو مصرفېږي او نږدې په سلو کې دوه نیم ډالر یې زده کړو، روغتیا او د بېوزولو ودې او پرمختګ ته پاتې کېږي. ۹ په دې توګه له امازون ځنګلونو د تېرېدونکو تېلو په سلو کې درې ډالر هغه خلکو ته ورکول کېږي چې اړ دي، بېوزله دي او ژوند یې همدې صنعتونو له بربادۍ سره مخ کړی دی، دا هغه خلک دي چې له پاکو اوبو هم بې برخې دي.

په اکوادور کې زرګونه او نړۍ کې میلیونونه داسې خلک بالقوه ترهګر دي، لامل یې دا نه دی چې دوی ګني د کمونیزم ملاتړي دي یا شخړې او ناامني خوښوي؛ بلکې دا خلک دومره محروم دي چې هر څه کولو ته چمتو کېږي. زه چې کله د برښنا دې بند او د نړۍ نورو هیوادونو ته ګورم نو حیران

شم چې آیا دا خلک به هم کله داسې ګام پورته کړي لکه امریکایانو چې په ۱۷۷۱ کال کې د انګریزانو او ۱۱۸۰ ز کال کې د هسپانیویانو پر ضد پورته کړی و.

د عصري دور د نړیوالې امپراتورۍ دا فکر دومره زوړ او پېچلی دی چې د اتلسمې پېړۍ د یرغلونو او ښکیلاکونو فکرونه یې کونج کې کېنولي. موږ اقتصادي جنایتکار په مکارۍ کې بې ساري یو، ځکه له تاریخه مو زده کړې ده، موږ خپل نظام نن هغه ځای ته رسولی چې نه تورې ته اړتیا لرو او نه زغرې ته او نه داسې لباس ته اړتیا لرو چې له نورو خلکو مو جلا کړي.
په اکوادور، نایجیریا او اندونیزیا هیوادونو کې موږ د ځایي ښوونکو او عادي اوسېدونکو په څېر لباس اغوندوو. په نیویارک او واشنګټن کې بیا د سترو کاروباریانو او سوداګرو په څېر ګرځو. موږ په ظاهره ډېر ساده خلک ښکارو، هغو ځایونو ته ځو چې زموږ پروژې پکې رواني وي او په هغو کوڅو هم ګرځو چې بېوزلي او فقر پکې چیغې وهي. موږ د انسانیت او قربانۍ درس ورکوو، له ځایي رسنیو سره د هغو پروژو په اړه خبرې کوو چې موږ یې انسانیت د خدمت لار ګڼو، دولتي شرکتونو ته له پوره برم او سترو ارقامو سره ورځو. د هاروارډ په سوداګریز ښوونځي کې د اقتصاد په معجزو ګرمې خبرې اترې کوو. کوم شیان چې باید په وینا کې راوړل شي، هغه په شفاف ډول راوړو چې خلک یې راسره ومني. دا هغه چل دی چې په مرسته یې زموږ نظام روان دی. زموږ د نظام ډېر ټینګار پر دې وي چې د خبرې وراني په صورت کې باید څنګه پاک له صحنې ووځو؟ همدا لامل دی چې موږ په هېڅ ډول غیر قانوني کار کې ښکیل نه ښکارو او زموږ ټول نظام له هره اړخه پاک دی. دا درته جدي وایم که موږ اقتصادي جنایتکار په کوم ځای کې ناکام شو نو زموږ ځای یو ډول خلک نیسي چې موږ یې ګیدړان

Jackalبولو او دوی په لرغوني تمدن پورې اړه لري. دا ګیدړان په تیاره ځایونو کې ناست وي او چې کله راښکاره شي؛ نو بیا د هیوادونو په مشرانو تختې اوړي او په شخړو او جګړو کې ښکیل کیږي. ۱۰ که چیرې دا ډله هم ناکامه شي لکه په افغانستان او عراق کې؛ نو بیا پخوانی وسلې کارول کیږي او د امریکا ځوان نسل د وژنو لپاره میدان ته لیږدول کیږي.

زه چې د سیند په منځ کې له دې لوی دیواله تېرېدم نو داسې مې ګڼله چې کالي مې په خولو لامده دي... . په هر صورت زه ځنګلونو خواته د هغو خلکو لیدو ته روان وم چې زموږ پر ضد یې قیام کړی و، دوی ویل چې په هر صورت به د هغه نړیوالې امپراتورۍ د خپرېدو مخه نیسي چې په رامنځته کولو کې یې زه هم لاس لرم. ما د ګناه او ملامتیا احساس کاوه... په دې وخت کې راسره دا پوښتنه پیدا شوه چې دا هر څه څنګه وشول؟ د نیو همپشایر د سیمې یو ساده هلک دې دومره لویې لوبې ته څنګه رانوت؟

## حوالې :

- "Tarianiat – firmes en Nuestro territorio FIPSE vs. Arco" .Gina Chavez
- ."Ecuador: lost Promises" Sandy Tolan
- "Seeking Balance: Growth VS. culture in Amazon" Jaun .forero
- "Suit says Chevron Texaco Dumped poisons in Ecuador" .Aby Ellian
- ."Perlious prosperity": Chris Jochnick

دا لا ډېرو معلوماتو لپاره وګورئ :

- " The Globalization of contentious Politics: The .Amzonian indigenous Right Movements" Pamela Martin
- ." Amazon Crude" Kimerling
- " Up Havel in the Back yard: Illegitimate Debts and Human Rights- the case of Ecuador – Norway" Leslie .Wirspa
- ."Inside corporate America" : Gregory palest

٦پر ملي او نړيوال اقتصاد د تېلو اغېزو لپاره :

- "Resources Wars: The New Landscape of Global .Conflict" Michael T. Klari
- "The Prize: The Epic Quest for Oil Money anad Power" – .Danial Yergin

• The Commanding Heights: The Battle for the World Economy" – Daniel Yergin and joseph Stamis Law.

٧- "Where the money went": James. S. Henry. Across the Board, March/April ٢٠٠٤ pp ٤٢-٤٥.

For more information:

"The blood Bankers" Tales from the Global Underground Economy"

٨- " Tarianiat" Firmes en Neustro Terrtorio: FIPSE vc. ARCO": Gina Chvez.

٩- "Ecuador" Lost Promises" Sandy Tolan.

١٠- National republic radio, morning Edition: ٩th july ٢٠٠٣.

## لومړی فصل

# د اقتصادي جنايتکارو پيدايښت

*دا هر څه ډېر ساده وشول:*

زه په ۱۹۴۵ ز کال کې په يوې منځنۍ کورنۍ کې زېږېدلی هلک يم، مور او پلار مې له هغه امريکايي نسله وو چې درې سوه کاله مخکې نيو انګلېنډ ته راغلي او ډېره شوي دي. ددوی تنګ نظر او قوي اصولو د دوی د څو نسله تنګ نظرۍ او لرغون پرستۍ شاهدي ورکوله. پلار مې په کورنۍ کې لومړی سړی و چې پوهنتون يې لوستی او د ژوند تېرولو يوازينۍ وسيله يې دنده وه. مور مې په يوې ليسې کې د لاتينې ژبې ښوونکې وه. پلار مې په دويمه نړيواله جګړه کې په بحري ځواکونو کې و. زه چې په نيو همپشاير کې وزېږيدم نو پلار مې د تيکساس په يوه روغتون کې د خپل مات هډوکي د درملنې لپاره پروت و.

وروسته يې بيا دلته په نيوهمپشاير کې د هلکانو په يوه ځايي ښوونځي (تيلتېان) کې د بېلابېلو ژبو د تدريس دنده واخيسته.

د ښوونځي ودانۍ د يوه لوړ غر په څوکه داسې ولاړه وه لکه په خپل ځان چې مغروره وي، ددې کلي نوم هم (تيلتېان) و. ددې شخصي ښوونځي يو اصل دا و چې په هره دوره کې يې يوازې پنځوس زده کوونکي پرېښودل. ددې ښوونځي زياتره زده کوونکي د بيونس ايرز، کاراکاس، بوسټون او نيويارک ايالاتونو د شتمنو کورنيو نازولي وو.

زموږ په کورنۍ کې د پيسو کمی و خو موږ په ښوزلو کې نه راتلو، د ښوونځي د ښوونکو معاش که څه هم کم و خو زموږ اړتياوې يې پوره کولې.

وروسته په دې پوه شوم چې ژوند د پېښو ټولګه ده، اصلي خبره دا ده چې

ښېښو سره باید زموږ غبرګون څه وي؟ او څه ته چې موږ د نظر ازادي وایو څه ډول یې باید وکاروو؟ د بخت په دایرو کې چې موږ بند یو ښلابلې پېښې راسره کیږي او له دې په ټاکنه کې دا ثابتوو چې موږ څوک یو. زما په ژوند کې دوه مهمې پېښې وشوې چې زما ژوند ته یې نوی اړخ ورکړ. لومړۍ پېښه د یوه ایراني جنرال د زوی بلدتیا وه چې پلار یې د ایران د شاه مشاور و او دویمه پېښه یوه ښایسته او نازکه نجلۍ وه چې ما د خپل زلیتوب د تخیيل محبوبه ګڼله.

لومړی کس چې زه یې فرهاد بولم موږ سره یې په خونه کې و او ماهرانه د فوټبال لوبه یې کوله. دده بدن تندرسته، ویښته اوږده او تور، وریځې نرمې، سترګې ښکلې او شخصیت زړه راښکونکی وو، دومره چې ښځې به یې پر وړاندې بې وسه وې. په ډېرو خبرو کې زما برعکس و، د هغه د ملګرتیا لپاره ما ډېرې هلې ځلې وکړې. ډېرې داسې خبرې یې رازده کړې چې وروسته په ژوند کې یې راسره بیا ډېره مرسته کوله.

ما (این) هم ولیده، که څه هم د یوه پوهنتون له محصل سره یې ډېره جدي مینه کوله؛ خو ماته یې هم په خپله لمنه کې ځای راکړ او دا زما د پاکې مینې لومړی پیل او لومړۍ تجربه وه.

فرهاد ماته د شراب څښلو، مجلسونو ته د تګ او د مور او پلار نه سرغړونې جرات راکړ. ما فکر وکړ که پلار سره روغه جوړه کوم په تعلیمي لحاظ به ډېر کمزوری پاتې شم. زما نمرې ټیټېدې، وظیفه مې ختمه کړه او په دویم کال مې دا پرېکړه وکړه چې نورې به زده کړې نه کوم، مور او پلار مې اخطار راکړ چې خپلوې به راسره پرې کړي. فرهاد مې په دې کم عقلې پرېکړې کې جرات زیات کړ، زه په یوه طوفاني کیفیت کې د دین دفتر ته ننوتم او د ښوونځي پرېښودو خبره مې وکړه، دا مې د ژوند تر ټولو نازک پړاو

و.

ما او فرهاد شپه په یوې ځایي میکدې کې تېره کړه. د نشې په حالت کې رابانديې یوه غټ خیتي بزګر تور پورې کړ چې زه یې مېړمنې سره د مینې تار غځوم. زه یې پورته کړم او یوه دیوال ته یې ودرولم، فرهاد مو منځ ته راغی او د چاقو پر ګوزار یې د بزګر مخ وشکاوه. بیا یې زه پورته کړم او له کړکۍ یې لاندې وغورځولم، لاندې په ژوره کې سیند بهیده، زه په یوه لوړ کمر ولویدم، له هغه ځای نه مو لاندې ټوپ کړ او د سیند په غاړه غاړه مو ځان په منډه خونې ته ورساوه. سبا چې په کیمپ کې پولیسو پوښتنه کوله نو ما ځان له پېښې بېخي بې خبره وښود خو فرهاد یې له کالجه وویست. موږ دواړه بوستون ته لاړو او هلته په یوه اپارتمان کې ګډ اوسېدو، ما هرسټ په نوم د یوه اخبار په دفتر کې د ایډیټر د شخصي مرستیال په توګه کار پیل کړ.

په ۱۹٦۵ زکال کې زما ځیني ملګري پوځي زده کړو لپاره وغوښتل شول، ما ددې لانجې نه د خلاصون لپاره د بوستون په پوهنتون کې د ادارې او سوداګرۍ زده کړې پیل کړې. تر دې وخته این له خپل ملګري سره اړیکې ختمې کړې او میډل بري ته به اکثر زما لیدلو لپاره راتلله، ما به یې ددې اتګ له زړه له تله هر کلی کاوه. هغه په ۱۹٦۷ ز کال کې فارغه شوې وه و زما لا یو کال پاتې و، ما ورته د یو ځای اوسېدو وړاندیز وکړ خو هغې له ړاده مخکې ددې کار امکان په کلکه رد کړ، ما به یې په تېوکو کې دې خبرو ته اخطار ویلو، فکر مې کاوه چې دا سخت او حیادار فکر زما د کورنۍ د اخلاقي اصولو سیورۍ و، موږ له ملګرۍ ډېر خوند اخیسته خو دا چې ما ډېر څه غوښتل نو د هغې لپاره مو واده وکړ.

د این پلار ډېر تکړه انجینر و، هغه یو ډېر قوي توغندۍ جوړ کړی و چې د

همانغه کار په امتیاز یې په ځواکونو کې ګومارلی و. یو مشهور ملګری یې چې این به ورته فرینک کاکا (دا یې خپل نوم نه و) ویل په استخباراتي اداره کې په لوی پوست کار کاوه. دا اداره چې NSA نومیږي، ډېر لږ خلک یې پېژني خو له ځینو اړخونو د هیواد ډېره ستره استخباراتي اداره ده.

زموږ له واده لږ وخت وروسته د پوځ لخوا طب لپاره وغوښتل شوم، زه په طب کې پاتې شوم خو له فراغت وروسته ویتنام ته د تللو وېره موجوده وه. ما که څه هم د جنګ سره شوق درلود خو په ختیځه اسیا کې د جګړو فکر زه هم له اروايي پلوه مات کړم، زه د خپلو نیکونو د استعماري کیسو تر سیوري.لاندې لوی شوی یم. په دوی کې توماس پین او ایتان ایلین هم شامل وو، ما د انګلستان او نیویارک هغه ټول میدانونه لیدلي چې فرانسوي، هندي او انقلابي جنګونه پکې شوي دي. ما هغه ټول تاریخي ناولونه ولوستل چې لاس رسی مې ورته درلود.

حقیقت دا دی کله چې ځانګړی پوځي ګروپ ختیځي اسیا ته ورسید نو زما ډېر اِرمان و چې زه هم ورسره وای؛ خو څنګه چې رسنیو هلته ددوی له ظلمونو او د امریکا له پالیسۍ پرده پورته کړه نو زما فکر هم په بدلیدو شو.

په دې حالت کې فرنک کاکا زما ژغورونکی شو، ماته یې وویل په NSA کې د دندې یوه ګټه داده چې د پوځ د خدمت دوره ورته وروسته کیږي. په خپل دفتر کې یې د جلسو یوه لړۍ پیل کړه چې ما ته پکې ټوله ورځ د لیکلو سترې کار راپه غاړه شوی و. ماته یې وویل دا ازموینه به وښيي چې ته په نسا اداره کې د کار وړتیا لرې او که نه. د همدې ازموینې له مخې به زما مثبت او منفي اړخونه رامخې ته شي او پر بنسټ به یې زما د راتلونکي ژوند پرېکړه وشي. د ویتنام د جګړې په اړه زما له غبرګونه په دې پوهېدم چې په ازموینه کې به ناکامېږم. هغه وخت مې ویل چې د یوه وفاداره امریکایي په

توګه د جګړې مخالف يم، خو حيران هله شوم چې مرکه کې ددې موضوع دسره يادونه هم ونه شوه. ډېر پام يې زما روزنې او کورنۍ ته و، دې ته يې هم پام و چې زه په يوه شتمن چاپېريال کې رالوی شوی غريب هلک وم، زما هغه محروميت يې هم ښه وڅېړه چې د پيسو، مينې او ښځو نشتون راکې پيدا کړې و. ددې تر څنګ يې زما د خيالي نړۍ هغه بې شمېره ارمانونه هم معلوم کړل چې زما له ذهنه چاپېر وو. فرهاد سره زما د ملګرۍ په اړه ددوی علاقې حيران کړم او په کيمپ کې د ځان ساتلو لپاره د دروغو خبرې سره علاقې لرلو خو پسې لا ډېر حيران کړم.

دا ټول کارونه ماته منفي ښکاريدل او په نسا کې مې ځان ناکام انګيره خو د مرکو لړۍ روانه وه او دې سره د تصوير له بل مخه پرده پورته کېده، په دې راز څو کاله وروسته پوه شوم چې نسا ته دا ټولې منفي نقطې مثبتې دي. د هغوی د تحقيق اصلي محور هيواد سره زما د مينې په پرتله زما پر محرومی ډېر و.

مور پلار سره مخالفت، د ښځو وېره او د ښه ژوند ارمان دا ټول هغه څه وو چې ددوی علاقه ورسره ډېره وه، هغوی پوهېدلي وو چې دا سړی لارې ته راوستی شو.

په ښوونځي کې له نورو هلکانو لوبې ګټل او بريا، د مور او پلار مخالفت، بهرنيانو سره ليدل او پوليسو ته دروغ ويل... دا هغه ټکي وو چې دوی يې په لټه کې وو. زه وروسته خبر شوم چې د فرهاد پلار په ايران کې امريکايي استخبارتو ته کار کاوه؛ نو ځکه فرهاد سره زما ملګري يو مثبت ټکی ګڼل کېده.

د نسا له ازموينې ورووسته ماته وراندېز وشو، چې څو مياشتې وروسته مې د پوهنتون سند واخلم او د جاسوسۍ زده کړې پيل کړم. له دې مخکې چې

وړاندیز ومنم په بوستون پوهنتون کې مې د پیس کور په نوم یوه سیمینار کې ګډون وکړ، د نسا په څېر پیس کور هم دا اسانتیا لرله چې کارکوونکو ته یې پوځي خدمات ځنډیدل.

په دې سیمینار کې د ګډون پېښه اوس عادي ښکاریده خو په وروسته ژوند کې بیا ډېره مهمه او موثره تمامه شوه. د پیس کور غړي په خبرو کې د ټولو هیوادونو هغه مرکزونه یاد کړل چې رضاکارانو ته پکې اړتیا وه، په دې ځایونو کې یوه د امازون ځنګلونو باراني سیمه وه، ددوی په وینا خلک پکې اوس هم داسې اوسیدل لکه امریکا ته د اروپایانو په راتګ چې ځایې خلک ځنګه وو.

ما تل د ابناکیانو په څېر فکر کړی دی، دوی د نیوهپشایر اصلي وګړي وو، زه پوهېدم چې زما په رګونو کې د ابنا وینه ده او د ځنګلونو په اړه د فلکلوریکو کیسو اوریدو ته لیواله وم. ما د پیس کور اداري سره خبرې وکړې او معلومه مې کړه چې امازون کې د ګومارنې امکان ځومره دی. هغو راته وویل چې هلته د رضاکارانو اړتیا ډېره ده او ما لپاره ښه فرصت ده، ما زر فرینک کاکا ته زنګ وواهه.

فرینک کاکا مې هم ملاتړ وکړ، هغه ډاډ راکړ او ویې ویل چې د هینویې له ماتې وروسته به امازون د فعالیتونو مرکز وي، د فرینک کاکا په څېر خلکو هغه وخت د هینویې ماته باوري ګڼله.

(امازون کې د تېلو پریمانه زېرمې دي) فرینک کاکا راته وویل، بیا یې راته کړل چې (موږ هلته داسې نماینده ته ډېره اړتیا لرو چې ځایي خلک وپېژني) په ما یې ټینګار وکړ چې امازون د روزنې لپاره ښه ځای دی او دا یې هم وویل چې فرانسوي او هسپانوي ژبې باید زده کړم. بیا یې راته په خوښۍ وویل، کېدای شي د دولتي دندې پر ځای ستا راتلونکی له کوم شخصي

شرکت سره وترل شي.

هغه وخت زه نه پوهېدم چې هغه څه وايي، زه د يوه جاسوس له پوستې د اقتصادي جنايتکار پوستې ته لېږدول کېدم. ما دا اصطلاح له دې مخکې نه اورېدلې او نه به مې راتلونکو څو کالو پورې اورېدلې وای. زه نه پوهېدم چې په نړۍ کې سلګونه ښځې او نر د مشورتي ادارو لپاره کار کوي، دوی له حکومته يوه پيسه هم نه اخلي خو بيا هم د امپراتورۍ د ګټو لپاره کار کوي. ما فکر نه کاوه چې يو نوی ډول پوځ به راښکاره کېږي، د پېړۍ تر پايه به يې شمېر زرګونو ته رسېږي او زه به ددې پوځ په زياتېدو کې مهمه ونډه لرم.

يوه ورځ د Einer Greve په نوم يو کس زموږ په هوايي ډګر کې کوز شو، هغه د Chas. T. Main شرکت معاون و. دا يو نړيوال مشورتي شرکت دی چې ډېر په ارام کار کوي. ددوی په کارونو کې مطالعاتي تجزيه (شننه) هم شامله وه، چې ايا نړيوال بانک اکوادور او ددوی ګاونډي هيواد کوپن ته د برېښنا د بند او نورو زيربنايي پروژو لپاره پور ورکړي که نه؟. همدغه کس د امريکا په ځواکونو کې کرنيل هم و.

هغه ماته د MAIN په څېر شرکتونو کې دکار ګټې بيان کړې. ما ورته وويل چې دلته له راتګ مخکې راته د NSA په اداره کې د کار وړانديز شوی و او زړه مې دی چې ورشم، نو هغه راته وويل چې يو وخت په نسا اداره کې د اړيکو مسول پاتې شوی دی. هغه چې راته په کوم ډول خبرې کولې نو شک مې شو چې، زما د فعاليتونو معلومول يې هم ګنې يوه دنده ده. اوس مې باور شوی و چې هغه زما د شخصيت په اړه معلومات کول او په دې يې هم ځان پوهاوه چې زه په دې چاپېريال کې عادت شوی يم او که نه يم؟ دا ځای زياتره شمالي امريکايانو ځان لپاره مخالف ګاڼه.

په اکوادور کې مو څو ورځې يو ځای تېرې کړې، بيا مو په پوسټن اړيکه کوله، ماته يې وويل چې د اکوادور په اقتصادی حالت يو راپور چمتو کړم. ما ليک سره شوق درلود، يو وړوکی ټايپنګ مشين هم راسره و، بس همدې شوق ته په احترام مې په کار پيل وکړ، په يو کال کې ما انيار ته نږدې پنځلس اوږده ليکونه وليږل او پکې مې د اکوادور په سياسي او اقتصادي حالاتو او راتلونکي خپل نظر څرګند کړ. په دې خلکو کې مې د نړيوالو سوداګريزو ادارو او د تېلو له شرکتونو سره ستونزې هم وليدلې، څکه همدې کمپنيو دوی په کش کولو عصري دور ته راوستل.

د پيس کور دوره چې ختمه شوه نو انيار راته په بوستن کې د MAIN په مرکزي دفتر کې د يوې دندې لپاره د مرکې وړانديز وکړ. ماسره په شخصي خبرو کې يې ويلي وو چې د دوی د ادارې اصل کار انجينري دی، خو د نړيوال بانک په وينا بايد يو اقتصادپوه هم وګوماري چې د هيوادونو د اقتصادي حالت په اړه وړاندوينه وکړي او پکې د انجينرۍ د پروژو د عملي کېدو او وسعت په اړه دوی ته راپور ورکړي. د باور لپاره يې راته وويل چې له ما مخکې يې له درېيو سترو اقتصادي کارپوهانو هم کار اخيستی دی، دوو پکې ماسټري لرله او يوه بل يې دوکتورا کړې وه؛ خو درې واړه پاتې راغلي.

انيار وويل: په هغوی کې يو همداسې نه و چې د هغو هيوادونو د اقتصادي حالت وړاندوينه وکړي چې دقيق ارقام يې په اړه نه وي، دا يې هم پسې زياته کړه چې درې واړو يې د ترون د شرايطو په پوره کولو کې ستونزو سره مخ شوي وو. ددې ترون له مخې يې بايد اندونيزيا، مصر، ايران اکوادور او نورو هيوادونو ته اوږده سفرونه کړي وای، هلته به يې ځايي مشرانو سره ليدلی او د سيمې د اقتصادي پرمختګ په اړه يې بايد خپلې شخصي شننې

وړاندې کړې وې. یو خو یې د پانامې په یوه کلي کې په عصبي ناروغۍ اخته شوی و چې بیا پولیسو هوایي ډګر ته راوست او امریکا ته یې راولیږه.

ماته یې وویل : تا چې راته کوم لیکونه رالیږلي له دې ښکاره که دقیق ارقام نه وي بیا به هم ته په خپل کار لګیا یې، اکوادور کې چې ته په کوم حالت کې اوسیدې زه په دې باور لرم چې په هر ډول شرایطو کې به ځانته د ژوند کولو لاره پیدا کړې، دا یې هم راته وویل چې یو اقتصاد پوه یې منفک کړی دی او که زه وګومارل شم نو دوو نورو ته به هم څه بهانه پیدا کړي.

دا هغه حالت و چې د جنوری په اولسمه نېټه پکې ماته په MAIN کې د یوه اقتصاد پوه په توګه دنده راکړل شوه، اوس مې عمر۲۶ کاله و او په همدې عمر کې زه د عسکرۍ د مکلفیت له دورې خلاص شوې وم. کورنۍ سره مې مشوره وکړه او هغوی راته ددې دندې د کولو مشوره راکړه، غالباً چې د فرینک کاکا خوښه هم پکې شامله وه. ماته یې ویلي وو چې ممکن شخصي شرکت سره کار وکړم، په خوله یې هېڅ هم نه ویل خو نن چې MAIN شرکت کې کار کوم نو دا د فرینک کاکا د دربیو کالو پخوانۍ خوارۍ پایله ده. په دې کار کې دویم لامل په اکوادور کې زما کاري تجربه او د هغه ځای په سیاسي او اقتصادی وضیعت زما لیکنې وې.

خودي مې د اسمان په شنو کې وه، ما په بوسټون پوهنتون کې لسانس کړی و خو دلته مې په شرکت کې دومره لویه دنده ترلاسه کړې وه، زما زده کړې په دومره لوی شرکت کې د اقتصادي مشاور دندې ته مناسبې نه وې. زه پوهېدم هغه ټولګیوال مې چې بوسټون پوهنتون ته د عسکرۍ له وېرې راغلي وو او اوس ماسټري کوي که زما له دندې خبر شول وبه سوځي. ماته ځان د استخباراتو یو کارمند ښکاره شو، چې نویو هیوادونو ته ځي، د هوټل د حوض په غاړو ګرځي، نیمې لوڅې ښکلې نجونې ګوري او د (مارټینیا)

شرابو جام يې په لاس کې دی.

که څه هم په هغه وخت کې دا يو زرين خوب و، خو وروسته يې بيا ډېره برخه په واقيعت بدله شوه. انيار زه د اقتصادي مشاور په توګه وټاکلم؛ خو ډېر زر مې احساس کړه چې زما دنده تر دې ډېره زياته ده،که ووايم چې زما دنده جيمز باند ته ډېره ورته وه نو غلطه به نه وي.

## دويمه برخه

# د ټول عمر سفر

د قانوني اصطلاحاتو په قاموس کې MAIN يوه سوداګريزه اداره ګڼل کيږي. په عامه وينا ددې په دوه زرو کارکوونکو کې يوازې پنځوس سلنه يې د شرکت خاوندان وو، دوی ته پارټنرز ايسوسيېټ ويل کېدل او موقف يې ډېر لوړ و. دوی نه يوازې په نورو امرين وو؛ بلکې د شتمنۍ ډېري يې هم لرل. دوی د هيواد له لوړو پوړو چارواکو او مشرانو سره کار درلود او له خپلو وکيلانو يې غوښتل چې وکيلانو او اروا پوهانو په توګه ددوی راز ساتل خپله ايماني دنده وګڼي. رسنيو سره خبرې منع او نه زغمل کېدونکې وې، لامل يې دا و چې د MAIN په اړه بهر هېڅوک نه پوهېږي خو موږ د خپلو سيالانو په اړه په ډېر څه پوهېدو. لکه ارتهر دی ليټل، سټون اينډ ويبسټر، براون اينډ روټ حالي برټن او بيشټل.

د سيال ټکی ما زړه نا زړه وويل، ځکه MAIN په خپله يو محدود شرکت و. زموږ د مسلکي کار ډېره برخه انجينري وه؛ خو موږ هېڅ وسايل نه درلودل او يو اخور مو هم نه و جوړ کړی. MAIN کې ډېر تقاعد شوي پوځيان هم وو، خو موږ د دفاع له وزارت سره هېڅ اړيکه نه لرله او زموږ د شخصي وسايلو لېږد د نورو شخصي شرکتونو سره توپير درلود. تاسو به باور ونه کړئ چې تر څو مياشتو په خپله دنده نه پوهېدم، يوازې دومره پوهېدم چې دنده به مې په اندونيزيا کې پيل کيږي، زه به د يوه يوولس کسيز پلاوي غړی يم او د اندونيزيا په جاوا وچه کې به د انرژۍ د توليد يوه پروژه پلان کوو.

انيار او نورو به چې راسره د پروژې په اړه بحث کاوه؛ نو هڅه يې کوله ما دې ته قانع کړې چې د جاوا اقتصاد به ددې پروژې په مرسته ډېر پرمختګ

وکړي. په يوه بله خبره يې هم ټينګار کاوه چې که زه غواړم ښه وړاندويونکی شم نو ددوی خبرې بايد ډېرې ښې وړاندې کړم.

د انيار عادت و چې ګوتې به يې په هوا کې نڅولې بيا به يې له سره پورته کړې او ويل به يې: اقتصاد به يې د يوه مرغه په څېر اسمان ته پرواز وکړي.

انيار به زياتره د دوه يا درېيو ورځو په لنډو دورو واته، خو په اړه يې هېڅ نه ويل او نه څوک پوهېدل چې هغه چېرته تللی و. کله به چې دفتر کې و نو د څو شېبو لپاره به يې يوې پيالې قهوې ته دعوت کولم او د اين پوښتنه به يې کوله. د نوي اپارتمان پوښتنې يې کولې او د هغه پيشو احوال به يې اخيسته چې موږ ځان سره له اکوادوره راوړې وه. څومره به مې چې پېژنده جرات مې زياتېده او هڅه مې کوله چې په اړه يې لا ډېر معلومات ترلاسه کړم. ما غوښتل په دې هم وپوهېږم چې زما دنده له ما څه غواړي. خو ما يوې پوښتنې ته هم د ډاډ وړ ځواب ونه موند، هغه په خبرو تاوولو کې تکړه و، په همداسې يوه وخت کې يې ماته راوکتل :

(ته اندېښنه مه کوه، موږ درنه ډېره تمه لرو، زه په واشنګټن کې وم)

بيا يې غږ ټيټ شو او معنا لرونکې موسکا يې په شونډو خپره شوه

(ته خو پوهېږې چې کويټ کې زموږ يوه لويه پروژه ده، ته به ډېر زر اندونيزيا ته روان شې، خو زه فکر کوم چې ته بايد د کويټ په اړه هم لږه مطالعه وکړې. د بوسټن په عامه کتابتون کې ډېر کتابونه پراته دي، ددې تر څنګ به درته د ايم ای ټي او هارورډ کتابتونو اجازه ليکونه هم چمتو کړو.)

بيا به زه ساعتونه په مطالعه اخته وم، بوسټن کتابتون ته به ځکه تلم چې زما د کور او دفتر خواته نږدې و. دلته مې د کويټ په اړه ډېر معلومات پيدا

کړل او د اقتصادي محاسبې ځينې مهم کتابونه مې هم وموندل، چې ملګرو ملتونو، نړيوال بانک او ايم ای ايف ادارو خپاره کړي وو. زه باوري يم چې په ما د اندونيزيا او جاوا د اقتصادي محاسبې په اړه يوه نمونه جوړيده، فکر مې وکړ چې د کويټ په اړه به يې هم رانه غواړي نو دا کار مې له مخکې پيل کړ.

ستونزه دا وه چې د پوهنتون زده کړو په محاسبه او د هغه په شننه نه وم پوهولای، نو ددې پوهې ترلاسه کولو ته مې هم ډېر وخت ورکړ، څو کورسونو کې مې داخله وکړه، په دې يې پوه کړم چې ارقام خو جادوګري ده، ددې په مرسته د خوښيو دلايلو او ارقامو ډېري ودريږي، خو ايا د پاېلو ښودل د شننونکي خپله دنده ده؟

په بنسټيز ډول MAIN يوه نارينه اداره وه. په ۷۱ کلونو کې پکې يوازې څلور ښځو کار کاوه چې مسلکي دندې يې لرلې، پردوی سربېره دوه ښځې نورې هم وې، يو شمېر پکې د رئيسانو او لوړپوړو مديرانو سکرترانې وې او نورې هغه وې چې زموږ په شان کارکوونکو ته به يې کارونه کول، په اداره کې له سرېيو سره زه عادت شوی وم خو يوه ورځ چې د بوسټن کتابتون د حوالو په شعبه کې څه وشول نو زه يې هم حيران کړم.

يوه ځوانه، سپينه او ښايسته ښځه راغله او ماته مخامخ په څوکۍ کېناسته، په شين رنګ کالو کې ډېره ښکلې ښکاريده. زما په نظر يې عمر له ما څو کاله زيات و، ما هڅه کوله چې ځان بې خبره او بې نيازه ونيسم. څو شېبې وروسته يې په چوپه خوله يو پرانستی کتاب رامخته کړ. په يوه برخه کې يې د کويټ په اړه ټول هغه معلومات ليکلي وو چې زما پکار وو. ورسره يې خپل کارت هم راکړ چې پرې ليکلي وو: کلاډين مارټين، دMAIN ځانګړې مشاوره.

ما يې شنو سترګو ته وکتل او خپل لاس مې ورمخکې کړ، راته يې وويل چې زه ستا په روزنه کې د مرستې لپاره ګومارل شوې يمه. زما هېڅ باور نه کېده چې داسې به کېږي.

سبا ورځ په بيکن کوڅه کې د کلاډين په اپارتمن کې راټول وو، دا د MAIN له مرکزي دفتره څو بلاکه ليرې و. په لومړيو خبرو کې يې راته وويل چې زما کار لږ پر اسراره دی او اصلي ټکی پکې راز ساتل دي. دا يې هم راته وويل چې ستا د دندې په اړه درته هېڅوک معلومات نه درکوي څکه واک يې نه لري. دا يې هم وويل چې واک يوازې دې سره دی بيا اصلي ټکي ته راغله او ويې ويل چې ددې (کلاډين) مسئوليت دا دی چې ما د اقتصادي جنايتکار Economic Hit Man په چوکاټ کې واچوي.

په ذهن کې د غلا، چور، وژنو او جرمونو د کيسو تازه کېدو لپاره دا يو نوم بس و، له وېرې مې په کړس کړس وخندل، دې سره نو هم ووېرېدم. هغې په موسکو شونډو حوصله راکړه او راته يې وويل دا دنده د همدې ټوکي طبيعت له امله د خلکو خوښيږي.

ما د اقتصادي جنايتکار د رول په اړه د خپل علم کمی ومانه. هغې په خندا وويل:

(دا ناپوهي يوازې ستا نه ده، په دې ګونګ کاروبار کې اخته ډېر خلک نه پوهېږي، خو ستا د کار په اړه بايد هېڅوک پوه نه شي حتی ستا مېرمن هم)

بيا يې په جدي لهجه وويل :

(زه تا سره سپينې خبرې کومه او په راتلونکي څو اونيو کې مې چې څه در زده کولای شول در زده کوم يې، له هغه وروسته ستا خوښه ده، ستا پرېکړه مهمه ده، خو په ياد يې ساته، دې ځای ته يو ځل راننوتل پکې د تل اوسېدو په معنا دي.)

له دې وروسته یې راته هېڅکله پوره نوم وانخیست، اوس مو په یوازې اقتصادي جنایتکار وو؛ نور هېڅ نه.

زه هغه وخت پوه نه شوم خو اوس مې دا خبره درک کړې ده، هغه وخت کلاډین زما د شخصیت له هغو ټولو کمزوریو ښه ډېره ګټه پورته کړه چې د NSAپه اسنادو کې ثبت شوې وې. زه نه پوهېږم چې دا معلومات یې څنګه ترلاسه کړي وو. انیار ورکړي وو، NSA ورکړي وو او که د MAIN د بشري منابعو دفتر ورسره پکې مرسته کړې وه؟ البته دا یوه خبره ده چې کلاډین هر څه په ډېر ماهرانه ډول ترسره کړي وو. د هغې ښایست، زړه راښکون، خوږې خبرې، خواږه کاته او نور یوازې زما لپاره وو. خو که دا حقیقت په پراخه لید وکتل شي نو په هر کاروبار کې د پرمختګ لپاره همداسې کیږي، خصوصاً هغه وخت چې ډېر څه په داو لګېدلي وي او ګټوري سودا لپاره فشار ډېر زیات وي. هغه په دې ښه پوهېده چې زه نه غواړم د خپلې اداري له پټو رازونو پرده پورته کړم، ځکه دې سره مې ګڼ ژوند ته خطر پېښېده. هغې زه له پټو او مجرمانو کارونو ښه خبر کړم چې د کولو تمه یې رانه لرله او په دې برخه کې یې راسره خبرې ډېرې سپینې او رښې وې.

زه نه پوهېدم چې کلاډین ته معاش چا ورکاوه خو په دې کې مې هم هېڅ شک نه کاوه چې د MAIN له له لورې به تمویلیږي. دا معلومات یې له کارته هم کېده، هغه وخت زه دومره ساده او وېرېدلی وم چې دا پوښتنه مې ذهن ته رانغله خو اوس فکر کوم چې دا پوښتنه خو مې باید په ډېره اسانه او تر ټولو دمخه په ذهن کې راګرځېدلې وی.

کلاډین راته ویل چې زما د کار دوه موخې دي: یوه هغه هیوادونو ته د درنو پورونو جواز پیدا کول چې (ماین) او دې ته ورته نور (بیشیل، حالي برټن، ستون ایند ویبستر او براون ایند وایټ...)په جعلي سروې هیوادونو ته

ورکول کیږي. دوی دا پورونه ورکوي خو بېرته يې همدا شرکتونه د لویو لویو زیربنايي پروژو په عملي کولو خپله ترې تروړي. دویمه موخه دا وه، ما باید هغه هیوادونه د پور د خلاصولو په وخت کې دیوالیه (کنګال، مفلس) کړي وی چې پورونه يې اخیستي وو، البته ددې دیوالیه کولو اصلي فرصت هله وه چې (ماین) او نورو شرکتونو ترې خپلې پیسې اول اخیستې وې. موخه دا وه چې پوروړي هیوادونه تل په پور کې ډوب وي او کله چې ترې دوی امتیاز وغواړي هغوی يې په ښه زړه ورسره ومني، دغه امتیازات، په ملګرو ملتونو کې رایه، د تېلو چینې او نورو طبیعي وسایلو ته لاس رسی و.

زما په دندو کې یوه دا هم وه چې د ځینو هیوادونو په اړه اقتصادي وړاندوینې وکړم، په دې وړاندوینو کې باید ما ویلي وای چې فلانی هیواد که دومره دروند پور واخلي دا يې پر هیواد او اقتصاد څه اغېز لرلای شي. په ځانګړي ډول داسې شننې وړاندې کول چې ددې هیواد اقتصادي پرمختګ په اړه په راتلونکو شلو یا پنځه ویشتو کلونو کې شوې وي او دا هم چې پروژې به ددوی پر اقتصاد څومره اغېز وکړي. دا خبره په دې مثال کې رڼېږي. یوه هیواد ته ددې لپاره میلیونونه ډالر پور ورکول کیږي چې له روسیه سره يې د دوستۍ مخه ونیسي. زه باید دا وړاندوینه وکړم چې دا مرستې په کومو زیربنايي پروژو کې ډېرې ګټورې ثابتیدای شي، د برېښنا په بند کې؟ د ریل ګاډي د پټلۍ په نصبولو کې؟ او که د مخابراتي سیستم په نصب کې؟ فرض کړئ یو هیواد د برېښنا اسانتیا ته لومړیتوب ورکوي. اوس زما کار دا دی چې د پروژې ګټه سنجش کړم او دومره يې باید وښیم چې د پور اخیستو ته جواز برابر کړي. په هره محاسبه کې حساس عنصر (تولیز ملي عاید یا GNP ) دی. اوس په دې وخت کې هغه پلان کامیابیږي چې ددې عاید کچه یکې لوړه ثابته شي، په بله وینا دا چې، که پر یوه پلان کار

کېږي نو زه باید دا وښییم چې ددې تشکیل به د GNP په لوړولو کې ډېره زیاته مرسته وکړي.

ددې ټولو پلانونو تر شا اصلي کیسه دا ده چې لوی شرکتونه باید د پروژو په عملي کولو کې ډېره زیاته ګټه وکړي او د پوروړي هیواد خو ټاکلي کورنۍ باید د خاورو په څېر پیسې ترلاسه کړي. له بلې خوا پوروړي هیوادونه د اوږدې مودې لپاره له اقتصادي کمزورۍ سره مخ شي، حتی تر دې چې مخامخ د پورراوړیو ( پور ورکوونکو) هیوادونو سیاسي غلامان شي. د پور پیسې چې څومره ډېرې وي موږ ته ښه دي. موږ ته دا ارزښت نه لري چې پوروړو هیوادونو بېوزله وګړي د یوې اوږدې مودې لپاره له ډېرو بنسټیزو اسانتیاو ( روغتیا، زده کړو، کورونو )... بې برخې کېږي.

ما او کلاډین د GNP په لوبه څرګند بحث کاوه، مثلاً دا چې GNP باید لوړه وښودل شي، که څه هم ګټه یوازې د شرکت خاوند ته وي او نور ملت تر ستوني په پورونو کې ډوب شي. له دې حالته یوازې همدا پایله اخیستل کېږي چې شتمن لا شتمن شي او بېوزله لاپسې بېوزله شي؛ خو په ارقامو کې باید پرمختګ وښودل شي.

د عادي امریکانو په څېر د (ماین) ډېرو کارکوونکو هم داسې فکر کاوه چې موږ هیوادونو ته بندونه، لارې، پلونه او نور شیان جوړوو او احسان پرې کوو. زموږ په رسنیو او ښوونځیو کې همدا یو سبق راکول کېږي چې زموږ په یو اقدام کې هم ځان غوښتنه هدف نه وي. ما دا خبره ډېره اوریدلې چې ویل به یې ( که هغوی زموږ بیرغ سیځي، زموږ د سفارت مخې ته مظاهرې کوي، نو موږ هغه هیواد ولې نه راوځو او نه یې پرېږدو چې پراته وي او د خپلې بېوزلۍ په خوند پوه شي؟)

داسې خبرې زیاتره هغه خلک کوي چې باسواده وي او ډېر سندونه یې

ترلاسه کړي وي. دوی په دې نه پوهېږي چې موږ په نړۍ کې سفارتونه يوازې د خپلو ګټو د خونديتوب لپاره جوړ کړي دي او د همدې سفارتونو برکت دی چې امريکا له نيمې پېړۍ راهيسې په يوې نړيوالې امپراتورۍ اوښتې ده. دوی له دومره سندونو سره بيا هم په ناپوهۍ کې د اتلسمې پېړۍ هغو جاهلانو ته ورته دي چې ويل يې؛ دا ځايي امريکايان چې د خپل هيواد خپلواکۍ لپاره جګړه کوي په اصل کې د شيطان لمسي دي.

څو مياشتو کې زه د اندونيزيا جاوا وچې ته راونېدم، ماته وويل شو چې دا د ځمکې پر مخ تر ټولو پرنفوسه سيمه ده، پردې سربېره دا مسلمان هيواد له تېلو ډک دی او کمونيستي فعاليتونه پکې ښه درز روان دي.

کلاډين راته په خپل ځانګړي انداز وويل :

(له ويتنام وروسته به دا زموږه دويمه فاميلي (کالوني) وي. موږ بايد اندونيزيا لاس ته راوړو، ګني که له کمونيستي بلاک سره يو ځای شوه نو... )

جمله يې نيمه پرېښوده، په خپلې ګوتې راکش کړې، زړه وړونکې موسکا يې وکړه او زياته يې کړه :

(اوس ستا کار دا دی چې د اقتصاد په اړه بايد يو هيله من، بلکې مبالغه اميز راپور وليکې، په هغه کې بايد وويل شي چې د انرژۍ د نوي ستيشن او ويش سره به په هغه ځمکه د خوښيو چينې وبهيږي. ددې راپور له مخکې به USAID او نړيوال بانک ته د پور ورکولو جواز په ګوتو ورشي. ددې کار لپاره تاته لويه جايزه په نظر کې نيول شوې ده، تر دې وروسته به ته د نورو پلانونو جوړولو لپاره ډېرو ښکلو ځايونو ته تللای شې. د ټولې نړۍ لارې به ستا پر مخ پرانستې وي.)

بيا يې راته د سپارښتنې په ډول وويل :

( ستا کار به ډېر ستونزمن وي، ځکه د بانک کارپوهان به درپسې درځي، هغوی په همدې معاش اخلي چې راپور کې باید ستونزې پیدا کړي، څومره چې ستا راپور کې ستونزې ډېرې وي همدومره به د هغوی په ګټه وي.)

یوه ورځ مې کلاډین ته وویل :جاوا ته چې کوم ټیم ځي لس کسان په کې نور هم دي، زه خبر شوی یم چې ټول یې زما په څېر روزل شوي دي، خو هغې ډاډ راکړ، راته یې یې وویل چې هغوی ټول انجینران دي، د هغوی کار برېښناکوټ، سړکونو، وېش سیستم او نورو شیانو طرح کول دي، چې هر څه پوره ښکاره شي؛ خو د راتلونکي په اړه وړاندوینه کول یوازې ستا کار دی. انجینران چې کوم پلان جوړوي د هغه پراختیا ستا په راپور پورې اړه لري او د پور کچه به هم ستا د شننو له مخې ټاکل کېږي، اوس به ته پوه شوی یې چې د ټولې لوبې اصلي لوبغاړی ته خپله یې.

زه به چې هر وخت د کلاډین له اپارتمانه راووتم په لاره به مې دا فکر کاوه چې دا زما کار به سم وي که نه؟ په زړه کې به مې دا وېره حتمن راسره وه چې زه ښه کار نه کوم. زما د ماشومتوب محرومیتونو زه نه پرېښودم، ما فکر کاوه چې MAIN به زما د ژوند ټولې هیلې او ارمانونه پوره کړي، بیا به مې ویل چې مېړمن که مې خبره شي څه به راته وایي؟ ځان به مې په دې ډاډه کړ چې یو ځل ژوند جوړ کړم بیا چې هر څه کېږي هغه ساعت او هغه مصلحت.

یوه ورځ مې کلاډین سره خپله اندېښنه شریکه کړه، هغې راته وویل ساده کېږه مه! دلته چې یو ځل راننوتې بیا ترې نشې وتلای، دې ګرداب ته له ورکوزیدو مخکې یو ځل ښه فکر وکړه. زه یې د خبرې تل ته کوز شوم او خبرې یې راباندې وېره خپره کړه. په همدې فکر کې د کامن ویلت واټ ته ورسیدم، د ډارټ مت کوڅې ته ورتاو شوم او ځان ته مې ډاډ ورکاوه چې زما

مساله یوه استثناء ده.

یو مازیګر چې ما او کلاډین له کرکې د واورې ورېدو ننداره کوله راته کړل یې چې موږ د یوه مستقل کلب په څېر یو، موږ ته ډېره حق الزحمه راکول کیږي او ددې لپاره راکول کیږي چې د نړۍ هیوادونه د نوي استعمار پر مټ له میلیونونو ډالرو بې برخې کړو. ستا یو مسئولیت دا هم دی چې د نړۍ ستر مشران (رهبران) دې شبکې سره د ملګرۍ لپاره چمتو کړې او دا شبکه یوازې د امریکا د ګټو لپاره کار کوي. دوی که یو ځل زموږ په جال کې ولویدل بیا بې زموږ له وفادارۍ بله لار نه لري. موږ د خپلو سیاسي، اقتصادي او پوځي ګټو د خوندیتوب لپاره پر دوی حساب کولای شو. ددې کار په بدل کې به دا سیاسي رهبران د خپل سیاسي شخصیت لوړولو لپاره خپلو خلکو ته لوی صنعتي پارکونه، بندونه او هیوایي ډګرونه ورکوي، چې له امله به یې امریکایي ساختماني او صنعتي شرکتونه بنایسته ډېرې ګټې ترلاسه کوي.

په همدې مازیګر زه د خپلې نوې دندې او ادارې په تاریخي شالید پوه شوم. کلاډین راته وویل چې پخوا به نور هیوادونه په پوځي قوتونو او وېرې استعمار کیدل، خو له دویمې نړیوالې جګړې وروسته، د شوروي اتحاد په رامنځته کېدو او د اتومي وسلې اختراع اوس پوځي بریدونه او استعمار له خطر سره مخ کړي دي.

دا خطر له ١٩٥١ ز کال نه راپیدا شو، هغه وخت ایران د تېلو له یوه انګلیسي شرکت نه بغاوت وکړ، ویې ویل چې دوی د ایران تېل او خلک استثماروي. هغه شرکت د اوسني (بریتیش-پترولیم) پخوانی بنه وه، پایله دا شوه چې د ایران منتخب ولسمشر محمد مصدق د تېلو (نفتو) ټول کوهیان ملي کړل، تېپي شوي انګلستان په دویمې نړیوالې جګړې کې د

امریکا ملتیا وکړه، خو دواړه هیوادونه له دې ویرېدل چې که پوځي برید کوي؛ نو شوروي اتحاد ته به بهانه په لاس ورشي او د ایران په ملتیا به ددوی په مقابل کې ودرېږي.

امریکايي حکومت د بحري ځواک پر ځای د CIA مامور کرمټ روز ویلټ ور ولېږه دا د ولسمشر روز ویلټ لمسی و. ویلټ هوښیاري وکړه، د شخړو په ځای یې مهم خلک راخپل کړل، بیا یې ځینې خلک منظم کړل او کوڅو ته یې راوویستل، په دې کار سره مصدق په خلکو کې خپل محبوبیت وبایله او ناوړه وګڼل شو، بلاخره د مصدق زوال راغی او پاتې عمر یې په زندان کې تېر کړ، چې ورپسې د امریکا په مرسته محمد رضا شاه واک ته ورسید. په دې توګه کرمټ روز ویلټ یو نوی ماموریت پیل کړ، چې ما هم پکې اوس برخه اخیسته. (۱)

د کرمټ روزویلټ مکر او فریب د منځني ختیځ تاریخ ته نوی اړخ ورکړ، تر دې چې د امپراتورۍ پخوانۍ حربې پرېښودل شوې. تصادفاً دا هغه وخت و چې د اتومي وسلو لومړني ازمېښتونه پیل شوي وو او کوریا او ویتنام له امریکا نه ښې منډې ویستې وې. ۱۹۶۵ز کال کې مې NSA سره مرکه وکړه، دې وخت کې په دې پوه شوم چې که امریکا هغسې نړیواله امپراتوري غواړي لکه نکسن او جانسن یې چې خوبونه لیدل؛ نو په همغې تګلارې باید مخ ته ولاړه شي چې کرمټ روز ویلټ منځني ختیځ کې عملي کړې وه. دا یوازینې لاره وه چې بې د اتومي وسلې له خطره پرې روسیه ته ماتې ورکول کېدای شوه.

دې تګلارې هم خطر درلود، کرمټ روز ویلټ د CIA غړی و، که نیول شوی وای؛ نو پایله به یې ډېره بده وه. ده امریکا ته د لومړي ځل لپاره هغه ماموریت ترسره کړ چې د یوه بهرني حکومت تخته یې چپه کړه. پلان دا و

چې په راتلونکي کې داسې نور ماموریتونه هم باید شوي وای؛ نو ځکه په احتیاط ټينګار کېده او سپارښتنه کېده چې په دې ماموریتونو کې باید په هېڅ صورت د امریکایي حکومت مستقیمه لاسوهنه ثابته نه شي.

ددې پلانونو او پروژو خوشبختي دا وه چې په اوپایمې لسیزې کې یو انقلاب راغی، په دې انقلاب کې نړیوال شرکتونه، ادارې، نړیوال بانک او IMFاداره رامنځته شول. په نړیوال بانک او IMF ادارو کې د امریکا تر څنګ زموږ اروپايي امپراتورۍ جوړوونکو ملګرو هم پانګونه کړې وه. د مشترکو ګټو پر بنسټ ددې نړیوالو ادارو، شرکتونو او حکومتونو تر منځ ښې اړیکې رامنځته شوې وې.

ما چې د بوسټون د سوداګرۍ په ښوونځي کې زده کړې کولې په هغه وخت کې دې ستونزو ته د حل لارې لټول کېدې، چې د روز ویلټ او CIA د امریکاي استخباراتي سازمان اړیکو پیدا کولای شوې. حل یې ډېر اسان او منطقي و. د امریکا استخباراتي شبکې او NSA باید د راتلونکي وخت اقتصادي جنایتکار وپېژني او په نړیوالو ادارو کې یې وګوماري. امتیازات او معاشونه به یې د دولت پر ځای خصوصي سکتور ورکوي. که په کوم ځای کې یې شوم پلان رسواء هم شي نو تور به یې د حکومتي پالیسۍ پر ځای پر شخصي سوداګریزو فعالیتونو پورې کېږي. کوم شرکتونه چې دا خلک ګوماري امتیازات یې ورته د دولتي دوایرو او نړیوالو بانکونو لخوا ورکول کېږي. دا معلومه ده چې ددې ټولو شیانو زور له عادي مالیه ورکوونکو وځي او د خوند خبره دا ده چې دې سره بیا هم هر څه د کانګرس په لاس کې دي. دې ټولو چارو ته چالاکۍ، نړیوالې سوداګرۍ او ازادۍ د معلوماتو ډال په لاس ورکاوه. (۲)

کلاډین د خبرو په پای کې وویل تا ولیدل چې موږ یوازې د تېرو نسلونو پر

افتخاره لري یو، دا کار له مورږ مخکې نسلونو په هغه وخت کې لا پیل کړی وچې ته په لومړي ټولګي کې وې.

## حوالې

۱ .ددې ماموریت په لا ډېرو معلوماتو لپاره وګورئ :

"All the Shah's Men: Am American Coup and the Roots of Middle East Terror" Stephen kinzer.

۲: "Contract Support: What Did the Vice - Presedent Do for Halliburton?

نیویارک خپرونې، ۲۳ فیبروري، ۲۰۰۴.

## دریيم فصل

# اندونیزیا : اقتصادي جنایتکارو ته تریخ سبق

ما د څېړلو مسلکي معلوماتو ترلاسه کولو تر څنګ د اندونیزیا په اړه هم کتابونه لوستل. کلاډین مشوره راکړې وه چې یو هیواد ته له تلو دمخه بې چې درسره معلومات هر څومره ډېر وي، همدومره به دې کار اسانه وي او ما یې په همدې مشورې له زړه عمل کاوه.

کولمبس چې په ۱۴۹۲ ز کال کې سمندري سفر پیل کړ، هغه غوښتل چې همدې اندونیزیا ته لاړ شي چې هغه وخت د (مسالو جزیرې) په نوم یادیده. په ټول استعماري دور کې دا ساحه د امریکا له وچو ډېره مهمه او ګټوره ګڼل کېده. دا سیمه له یوې خوا د ښکلو لباسونو، خوندورو مسالو او د شاهي ځمکې (جاوا) له امله د شاهي تاج الماس ګڼل کېده او له بلې خوا بیا د هسپانویانو، المانیانو، پرتګالیانو او انګلسیانو تر منځ د شخړو او ټکر ټکی هم و. بلاخره هالنډ په ۱۷۵۰ ز کال کې ټولو ته ماتې ورکړه.. که څه هم دوی په اندونیزیا واکمني ترلاسه کړه خو د شاوخوا سیمو او وچو نیولو نږدې یوه نیمه پېړۍ وخت ونیوه. په دویمه نړیواله جګړه کې چې جاپان پر اندونیزیا برید کاوه ددوی پوځیانو مقاومت ونه کړ او له امله یې اندونیزیایانو ته ډېر زیان واوښت. جاپان چې وسله وغورځوله؛ نو د سیو کارنو په نوم یو رهبر راپورته شو او خپلواکي یې اعلان کړه. بالاخره څلور کلنه جګړه د ۱۹۴۹ ز کال د دسمبر په ۲۷مه نېټه پای ته ورسیده، هالینډ خپل بیرغ ښکته کړ او د واک واګې یې هغو خلکو ته وسپارل چې په میراث کې ورته یوازې درې سوه کلنه غلامي پاتې شوې وه او نور په هیڅ نه پوهېدل. سیوکارنو د نوې جمهوریت لومړی ولسمشر و، خو پر اندونیزیا حکومت کول

د هالنډيانو تر ماتولو لويه مسئله وه. دا نږدې د ۱۷۵وچو ټولګه وه، چې له بېلابيو عناصرو تشکيل شوې وه. په دې ځمکه بېلابېل قبايل، تمدنونه، لسګونه ژبې، ځايي لهجې او بېلابيل قوتونه وو چې په خپلو منځونو کې به يې ټکر راته. د پېړيو دښمنۍ هم پکې وې، وژنې پکې هره ورځې کېدلې. سيوکارنو عجيب مهم کار وکړ، په ٦٠ کال کې يې پارلمان لغوه کړ او په ٦٣ ز کال کې يې ځان تلپاتې ولسمشر اعلان کړ.

د وسلې او پوځي روزنې په بدل کې يې د نړۍ له کمونيستي قوتونو سره اړيکې پراخې کړې، د کمونيستي رهبرانو د خواخوږۍ ترلاسه کولو لپاره يې په روسي وسلې سمبال پوځ خپل ګاونډي هيواد ماليزيا ته وليږه، چې په ټوله جنوب ختيځه آسيا کې کمونيستي انقلاب رامنځته شي.

مخالفتونو زور واخيست او په ۱۹٦۵ ز کال کې حکومت وپرځيد. د سيوکارنو د مېرمن د هوښيارتوب په برکت سيوکارنو له مرګه وژغورل شو، لوړپوړي چارواکي او ملګري يې دومره بختور نه وو. دې پېښو د هغو پېښو ياد تازه کړ چې په ايران کې شوې وې، وروسته بيا هغه کمونيستي ډلې پرې وګڼل شوې چې له چين سره يې نږدې اړيکې لرلې. د پوځي قوت پر بنسټ عام وژنو کې له درې سوو تر پنځه سوو زرو کسان وژل شوي وو او د پوځ مشر جنرال سوهارتو په ۱۹٦۵ ز کال کې واک ترلاسه کړ. ۱

تر ۱۹۷۱ ز پورې امريکايي حکومت خپلې هڅې ګړندۍ کړې چې اندونيزيا له کمونيزم نه راوباسي. اصلي لامل يې دا و چې د ويتنام د جګړې پايلې نورې د بارو وړ نه وې، په ۱۹٦۹ کال کې امريکايي ولسمشر نيکس خپل ځواکونه بېرته راوغوښتل او په نړيواله تګلاره کې يې ځان ته د ځای جوړولو هڅې وکړې. د تګلارې اصلي موخه ددې تاثر ختمول وو چې هيوادونه يو پر بل پسې د کمونيزم غېږ ته لويږي. څو مرکزونه ډېر د پام وړ وو چې

اندونیزیا پکې ډېر ارزښت درلود. د MAIN د برښنا پروژه د همدې تګلارې یوه برخه وه چې په ختیځه آسیا کې یې د امریکا پنجه قوي کوله.
د امریکا د بهرنۍ پالیسي اصلي ټکی دا و چې سوهار هم باید د ایران د شاه په څېر د امریکا په لاس کې وي. امریکا دا فرصت هم درلود چې دا هیواد د سیمې نورو هیوادونو ته یوه نمونه وګرځوي. امریکا دا هم ویل چې له اندونیزنیا نه ترلاسه شوې ګټه به په ټوله اسلامي نړۍ او په ځانګړې ډول منځنۍ اسیا مثبته اغېزه وکړي. که دا یې مهم محرک ونه شمېرو نو مهمه خبره دا وه چې په اندونیزیا کې نفت (تېل) هم وو. هېڅوک ددې تېلو په اندازه نه پوهېدل خو د تېلو د شرکتونو کارپوهان په دې پوهېدل چې مقدار یې ډېر زیات دی.
ما د بوسټون په کتابتون کې ډېره احساساتي مطالعه کوله، د راتلونکو پلانونو فکر مې کاوه. فکر مې کاوه چې MAIN سره له کار پیلولو وروسته به مې د بزګرۍ ساده ژوند په ښکلي، ارامه او عصري ژوند بدل شي. ما چې له کلاډین سره کوم وخت تېر کړی و هغه راته د خپلو زرینو خوبونو تعبیر ښکاریده، دا وخت راته ډېر په زړه پورې و، ما فکر کاوه چې د ښوونځي د وخت کومه سزا چې ما ګاللې په راتلونکي ژوند کې به ترې خلاص شم.
زما په ژوند کې یوه بله مهمه خبره راغله او هغه مې مور او پلار سره زما د اړیکو بې خونده کېدل وو. ما فکر کاوه هغوی به حتمن وایي چې زه دوه مخی ژوند کوم، ما ددې ژوند اصلي لامل همدا خفګان ګاڼه چې مور او پلار مې زه په زوره واده ته اړیستی وم. ما فکر کاوه چې خپلې کورنۍ سره زما اړیکې د کار له امله ممکن کمزورې شوې وي، خو چې فکر مې وکړ نو پوه شوم چې له کلاډین سره اړیکې په دې حالت کې لوی لاس درلود. ما ورته دا خبره نه کوله خو هغه خپله هوښیاره وه. په هر صورت ما پرېکړه وکړه

چې موږ به جلا جلا اپارتمانونو کې اوسېږو.

په ۱۹۷۰ ز کال کې اندونیزیا ته زما له روانېدو یوه میاشت مخکې زه کلاډین کره لاړم، ومې لیدل چې د خوړو په واړه مېز بېلابېل ډول پنیرونه او کلچې ایښې وې، تر څنګ یې Bordeaux شرابو بوتل هم ایښی و، ماته یې یو د سلامتۍ جام را وړاندې کړ او ویې ویل: مبارک شه، ته بریالی شوې، ته اوس له موږه یو یې.

دا خبره یې په موسکا وکړه خو زه پوه شوم چې په موسکا کې یې خلوص نه و. نږدې نیم ساعت ناست وو، شراب چې په ختمیدو شو؛ نو په عجیب نظر یې راوکتل او ویې ویل: زموږ ددې ناستې په اړه چاته په غلطۍ کې هم ونه وایې، لهجه یې ډېره جدي وه. زیاته یې کړه: که چاته دې ووېل نو هېڅکله به دې ونه بښم او زه به منکره شم، وبه وایم چې بېخي مې لیدلی نه یې. بیا یې رډ راوکتل، دا لومړی ځل و چې د خطر زنګ مې احساس کړ، یوازې په سرې موسکا مې بسنه وکړه : زموږ دواړو په اړیکه خبرې به ستا ژوند نه ستونزمنوي. زه حیران شوم او خپله هم ووېرېدم. بیا یوازې د پروډیشنل سنټر خواته روان شوم او په ټول پلان مې اعتراف وکړ. رښتیا دا ده چې موږ ټول وخت په همدې اپارتمان کې تېر کړی و، زموږ د لیدنو هېڅ ډول اسناد او شواهد نه وو او MAIN اداره هم پکې له هېڅ اړخه ښکیل نه وه. ما یې تر یوه حده په دیانت داری باور هم کاوه، هغې ماته داسې دهوکه نه وه راکړې لکه مور او پلار مې چې د ټیلټان او مډل بري په اړه راکړې وه.

## حوالې :

١ -د اندونيزيا او تاريخ په اړه يې د لا ډېرو معلوماتو لپاره :

" Indonesia: Peoples and Histories": Jean Gelman Taylor -

- "Indonesian Destinies" Theodore Frien

ځلورم فصل

# له کمونیزم د یوه هیواد خوندیتوب

اندونیزیا هغه هیواد و چې ما پکې باید ذرې راتلونکې میاشتې تېرې کړې وی. ددی هیواد په اړه زما انګېرنه ډېره تخیلي وه. ما چې څو کتابونه لوستي وو پکې هغه کې دا شیان انځور شوي وې: د ښځو پر غاړه سیرانګ (ځانګړی مالایي لباس)؛ ښایسته او زړه وړونکې بالایي نڅاګرې؛ اور سره لوبیدونکې جاودګران؛ اور غورځوونکي غرونه او په شنو اوبو کې روانې کښتۍ. تر ټولو په زړه پورې راته د هغه لرغونې هسپانوي ډوله تور بادبانه کښتیو تصور و چې بګي چیریکي جنګیالي به پکې ګرځېدل. دا هغه جنګیالي وو چې اروپایي کښتۍ چلوونکي یې وېرولي وو، هغوی به چې له کوره راوتل نو خپلو شوخو ماشومانو ته به یې ویل شم شئ ګني بګي جنګیالي مو تښتوي. دې ټولو خبرو زما په زړه کې شور جوړ کړی و.

ددې هیواد په کیسو او افسانو کې ځینې له اصل نه هم لږ لوړ ښودل شوي وو؛ مثلاً غوسه ناک دیوتا (الهه)، قبایلي مشران او نور. پردې سربېره ځینې نورې کیسې هم وې چې له میلاده مخکې له دې غرونو راپیل شوې وې، د آسیا له غرونو راوښتي، د ایران دښتې وهلي او زموږ په ذهنونو کې مېشتې شوې وې. ددې هیواد د جزیرو کیسه ایز نومونه لکه جاوا، سماترا، سلادیسي او نور هغه نومونه وو چې د انساني ذهن د خپرولو لپاره یې بسنه کوله. دا هیواد د تصوف، اسطورو او اغېزناک ښایست هیواد دی، دا له سترګو فنا هغه خزانه وه چې کولمبس لټوله خو پیدا یې نه کړه. دا یوه داسې شهزادګۍ وه چې هسپانیې، هالنډ، پرتګال او جاپان ټولو ورته لاس رسی درلود خو تشه لمن ترې راوګرځېدل، دا ځمکه د ډېرو خلکو خوب او خیال و.

زما هیلي ډېرې وې، فکر کوم تلوسه همداسې وي. خو د کولمبس په څېر باید ما هم په خپلو افکارو کې نرمي راوړې وی. ما باید دا احساس درلودی چې د بخت ستوری حتمن هسې نه ځلیږي لکه موږ یې چې فکر کوو. په اندونیزیا کې خزانې وې خو هغه لعل پکې نه و چې زه یې په تمه ورغلی وم. زه د ۱۹۷۱ ز کال د ګرمۍ په موسم کې اندونیزیا پراخېدونکې پلازمېنې جاکارتا ته لاړم او حقیقت دا دی چې دا څو لومړۍ میاشتې راباندې هلته ډېرې سختې تېرې شوې.

په دې ځای کې ښایستونه وو، په رنګین سارنګ پوښلې ښځې، ګلونه، شنه ښونه، زړه راښکونکې نڅاګرې، د سایکل رکشې او پرې د رنګونو رنګه نقاشي؛ ددې تر څنګ پکې د استعمار د دوخت ځینې ودانۍ او د لوړو مینارو لرونکې جوماتونه هم وو. ددې ښایست تر څنګ ښار ځینې بدرنګه داغونه هم لرل. بې لاسونو خلک؛ د استعمار د دور ښایسته نهرونه چې اوس پکې یوازې چټلې بهېدله؛ نوې پیغلوټې چې د څو پېسو په بدل کې به ځان پلورلو ته چمتو کېدې؛ له وښو جوړې جونګړې (کوډلې) چې د چټلو سیندونو په غاړه به د ډېرانونو په منځ کې جوړې شوې او بسته کوربنۍ به پکې اوسېدلې؛ د موټرو غړونه او بدبویه ګازات... دا هغه جاکارتا وه چې به یوه وخت کې یې څو ښایسته او بدرنګه مخونه لرل. په همدې جاکارتا کې به له یوې خوا د مسالو او ښونو ښایسته خوشبویې او له بلې خوا د چټلو ویالو بد بویونه سره په جنګ وو.

غربت او بیوزلي مې پخوا هم لیدلې وه، په نیوهمشپایر کې زما ځینې ټولګیوال ډېر بې وزله وو، په کوډلو کې به اوسېدل او په ژمي کې به چې د حرارات درجه تر صفر ښکته شوه نو دوی به په زړو کورتیو (جمپرونو) او شکېدلې بوټانو کې ښوونځي ته راتلل. ډېره موده وروسته به یې لامبل او له

بدنه به یې بد بوی خوت. ما په اکوادور کې له بیوزلو بزګرو سره د هغوی په جونګړو کې شپې کړې دي، د هغوی خوراک به یوازې جوش کړې غله او الوګان وو، ما بیوزلي له ډېر نږدې لیدلې ده؛ خو په جاکارتا کې مې چې کوم حالت ولید فکرمې یې هم نه کاوه.

زموږ ډله د هیواد په ښکلي هوټل انټرکانټینینټل کې میشته شوه. دا د یوه امریکایي شرکت هوټل و. په دې دور کې دې شرکت په ټولې نړۍ کې داسې او په همدې نوم هوټلونه درلودل. په دې هوټلونو کې به بهرنیان او خصوصاً د تېلو سوداګر او د هغوی کورنۍ اوسیدلې. دلته چې راورسیدو زموږ ډلمشر چارلي الینګ په لومړۍ شپه د هوټل پورتني پوړ ته د ډوډۍ خوړلو لپاره دعوت کړو.

چارلي به خپل ډېر وخت د جنګي ناولونو او لویو جنرالانو د ژوند لیکونو په لوستو تېراوه. د ویتنام د جګړې ډېر کلک پلوي و او د پوځي مینې له امله به یې تل پوځي لباس په غاړه کاوه، په دې شپه یې هم خړه پوځي دریشي اغوستې وه چې ډېر نښانونه پرې ځړېدل.

زموږ له ښه راغلاست سره سم یې یو سیګار ولګاوه او د شمپاین ګلاس یې پورته کړ: (زموږ د ټولو د خوښۍ په نوم)، دې سره موږ هم ګیلاسونه وشرنګول او په ګډ غږ مو وویل (زموږ د ټولو د خوښۍ په نوم).

د سګرټ دود یې پوو کړ، خونې ته یې په نقادانه نظر وکتل، بیا یې وویل (دلته به ښه وخت ولرو) بیا یې کړل( اندونیزیایان به راباندې ډېر پام وکړي او تر څنګ یې د امریکا سفارت هم راسره مرسته کوي، خو دا باید هېره نه کړو چې موږ باید دلته یو ماموریت ترسره کړو). ځینو اسنادو ته ځیر شو ویې ویل: (جاکارتا په نړۍ کې تر ټولو د ډېر نفوس لرونکې ځمکه ده، موږ دلته د برښنا د یوې سترې پروژې د ماسټرپلان جوړولو لپاره راغلي یو؛ خو دا د

اصلي خبرې يوه وړه برخه ده.)

اړ جدي شو، زياته يې کړه: ( دا په ياد ولرئ چې موږ بايد دا هيواد د کمونيزم له پنجو وساتو، اندونيزيا لرغونی او له غمېزو ډک تاريخ لري، په شلمه پېړۍ کې دا هيواد له يوه بل امتحان سره مخ دی او زموږ مسئوليت دا دی چې دا هيواد بايد پرې نه ږدو؛ چې د ويتنام، لاووس او کمبوډيا له برخليک سره مخ شي. ددې موخې لپاره زموږ د برېښنا پروژه مرکزي ارزښت لري. له نفتو(تېلو) پرته برېښنا بل هغه يوازينی عنصر دی چې په مرسته يې موږ د پانګوال او جمهوري نظام قوت او پايښت ثابتولای شو.)

يو دود سګرټ يې کش کړ، له ځينو اسنادو تېر شو : ( او تر کومه ځايه چې د تېلو خبره ده؛ نو تاسو خپله پوهېږئ چې زموږ خپل هيواد تېلو ته څومره اړ دی، په دې برخه کې مو اندونيزيا هيواد ښه مرستيال ثابتيدای شي. دا ماستر پلان چې عملي کيږي دې ته مو هم پکې پام وي، چې د تېلو د صنعت او د هغوی د مرستيالانو ټولې اړتياوې ( لکه بندرونه، پايپ لاينونه، ودانيز شرکتونه او نور...) بايد ورته د برېښنا په همدې ٢٥ کلنې پروژې کې برابر شي.

له اسنادو يې سترګې راپورته کړې او مخامخ يې ماته راوکتل : ( دښمن قوي ګڼل هوښياري ده، خو د کمزوري ګڼلو ساده ګي يې ونه کړې، زه پوهېږم ته به نه غواړې چې يا زموږ او يا هم د وړو اندونيزيايي ماشومانو خون درتر غاړې شي، او دا به دې هم رضا نه وي چې اندونيزيا دې د کمونيزم تر سور بيرغ لاندې ژوند وکړي.)

په دې شپه چې زه په خپل کټ کې پريوتم؛ نو کلاډين مې رايادة شوه. د بهرنيو قوتونو په اړه خبرې يې ذهن ته راغلې. ما د خپل ځان د ارامولو لپاره په ښوونځي کې د ستر اقتصاد (Macro economics) درس راتازه کړ. اخر

چې سترې شوم نو ځان ته مې دا ډاډ ورکړ چې زه غواړم دا هیواد د منځنیو پېړیو له اقتصادي حالته نوي صنعتي حالت ته بدل کړم او همدې کار لپاره راغلی یم خو ورسره په دې هم پوهېدم چې دا به ماته عادي خبرې وي. د هوټل له ښکلې ودانۍ، شنو چمنونو او حوضونو هاخوا به خلک تر لیرې لیرې ځایونو په همدې کوډلو کې اوسیږي، ماشومان به پاکې اوبه او خواړه نه لري او همداسې به مري او یو حقیقت دا و چې نوي زیږیدلي ماشومان هم په وژونکو ناروغیو اخته وو.

په کټ کې له څو ځله اوښتو وروسته دې پایلې ته ورسیدم چې چارلي او ډله یې دلته یوازې د خپلوشومو اهدافو د ترلاسه کولو لپاره راغلي دي. موږ دلته په اصل کې د امریکا د ګټو لپاره راغلي وو. موږ یوازي د خپلې طمعې او ځانغوښتنې لپاره کار کاوه، د اندونیزیایانو د ژوند ښه کول مو هدف نه و. د کارپویټوکراسي Corporatocrarcy کلیمه مې ذهن ته راغله، نه پوهیږم چې دا کلیمه مې مخکې هم چېرته اوریدلې وه او که خپله مې جوړه کړه؟ دا کلیمه د اشرافو د هغې طبقې لپاره ښخې مناسبه ده چې غواړي په ټوله نړۍ خپل حکومت جوړ کړي او همدې لپاره کار کوي.
دا هغه خلک دي چې د خپلو ګټو لپاره کار کوي، یوه خبره پکې دا ده چې د دولت له لوړو پوړیو نیولې تر لویو شرکتونو او سوداګریزو پولو ټولو کې ګرځیږي. د نړیوال بانک اوسنی مشر رابرټ میکنا مارا یې ښه بېلګه ده. دا سړی د فورډ شرکت مشر و. تر هغه وروسته د ولسمشر کینډي او جانسن په دورو کې د دفاع وزیر و او اوس د نړۍ تر ټولو قوي مالي اداره رهبري کوي.

زه په دې باور هم شوم چې زما ښوونکو راته د ستر اقتصاد اصطلاح سمه نه ده تشریح کړې. هغوی په دې نه پوهېدل چې اقتصادي پرمختګ د لوړو

خلکو لوړول او د ټيټو خلکو ټيټول دي. د پانګوال نظام د لا ښه او قوي کولو یوه پابله دا هم ده چې ټولنه د منځنيو پېړيو جاګیردارانه نظام ته ورته یوه نظام ته ورستنیږي. زما ښوونکي کېدای شي په دې پوهېدل خو هېڅکله یې ددې اعتراف ونه کړ. لامل به ښايي همدا و چې لويو لويو شرکتونو مو کالج سره مالي مرستې کولې، که دې استادانو له حقيقته پرده پورته کړې وای له دندو به خلاص شوي وو، ښځي همداسې لکه په ويلو يې چې زما دنده هم ختمیدای شي.

ما په هوټل کې ټولې شپې په همدې اندېښنې تېرې کړې، خو ددې طوفان دفاع زما طبيعت هم منله. د ښوونځي او پوهنتون نه په فارغيدو کې مې ډېرې سختې وګاللې، له ډېرو ستونزو وروسته مې په یوه ارام او هوسا ژوند کې قدم اېښی و.ما د قلارې ساه په دې خاطر هم واخيسته چې د خپل تمدن په نظر کې مې يو ستر کار کاوه، زه د یوه برياليي او قدرمن اقتصاد پوه په لاره روان وم، ما هماغه کول چې د سوداګرۍ په ښوونځي کې ورته زورل شوی وم، ما د پرمختګ يو داسې ماډل عملي کاوه چې د نړۍ سترو پوهانو منلی و.

زیاتره شپې به مې ځان په دې اراماوه چې یوه ورځ به له دې ټولې لوبې پرده پورته کړم، بیا به همداسې د یوه جنګي ناول په لوستلو ویده شوم.

## پنځمه فصل

# ځان پلورل

موږ پوولس کسيزې ډلې په جاکارتا کې شپږ شپې وکړې، په دې وخت کې مو د امريکا په سفارت کې حاظرې ورکوله، له چارواکو سره مو کتل، ځان مو منظماوه او د حوض په غاړو به مو ارام کاوه. ما فکر نه کاوه چې هوټل کې به دومره ډېر امريکايان اوسيږي. د نفتو او ودانيزو (ساختماني) شرکتونو د رئيسانو ښايسته مېرمنې به مې چې ليدلې ډېر خوند به يې راکاوه. دې مېرمنو به ورځ په حوض او شپه په هوټل کې دننه او بهر رستورانتونو کې تېروله.

بيا چارلي زموږ ډله د بنډونګ په نوم غره ايز ښار ته بوتله. ددې ځای هوا معتدله او غربت يو څه کم و. دلته د ويسما (Wisma) په نوم يو ميلمستون کې ميشت شو. ددوی خدمات معياري وو، يو منيجر (مدير)، اشپز، بڼوال او ډېر شمېر خدمتګاران مو لرل. دا ودانۍ د استعمار په وخت کې جوړه شوې وه او ډېر ارام او خوندي ځای و. دالان يې د چايو کروندو ته مخامخ و. د چايو کرونده د غرونو په لمنو او څنډو کې د جاوا تر اور غورځوونکي غره رسيدلې وه. دلته موږ ته يوولس ټويټا موټرې راکړل شوې او هر يوه مو ځانګړی موټروان او ژباړن هم درلود. تر څنګ يې د لوبو د ځينو کلبونو غړيتوب هم راکړل شو. د دولتي برېښنا شرکت (پروشان اومم لستريک نګارا يا PLN) خونې يې د دفتر په توګه راکړې وې.

په بنډونګ کې مې لومړی ورځې له چارلس او هوورډ پارکر سره په کتنو تېرې کړې. هوورډ نږدې اويا کلن و او دلته له راتګ دمخه يې په نيو انګلينډ برېښنايي سيستم کې د مشر وړاندوېونکي (Chief forecaster) په

توګه کار کاوه. دلته يې کار دا و چې د جاوا په جزيره کې د راتلونکو پنځه ويشتو کلونو د برښنا د اړتيا او قوت په اړه وړاندوينه وکړي. تر څنګ يې بايد د جزيرې عمومي مقدار د ښارونو او سيمو په تناسب ويشلای وی خو دا چې د برق تقاضا له اقتصادي ودې سره ژوره اړيکه لري؛ نو ددې وړاندوينې ډېره تکيه زما په اقتصادي تخمينونو وه او د نورې ډلې مسئوليت دا و چې زموږ د وړاندیونو پر بنسټ ماستر پلان طرح کړي. په بله وينا د پاور پلانټ يا برښناکوټې ځای او ډيزاين، لېږد او ويش، تارونه او پايې او ددې سيستم ګټه او پرمختګ ټول زموږ د وړاندوينو پر بنسټ ټاکل کېدل. په ناستو کې به چارلي زما د کار پر ارزښت پرلپسې ټينګار کاوه، يوې خبرې به يې زه ډېر ځورولم او هغه دا چې ويل يې د ټولې پروژې هيله ښيوونکې اړخ بايد خلکو ته وړاندې کړم. کلاډين رښتيا ويلي وو چې د ټول ماسترپلان مرکزي ټکی زه يم.

هغې راته ويلي وو چې دلته به مو لومړی څو ورځې د حقايقو په راټولولو تېرې شي.

هارورډ، چارلي او زه په دفتر کې د ولې له لرګي جوړو څوکيو کې ناست وو. کړکيو ته پردې راځړېدلې وې، چې د لرغونو جګړه ايزو کيسو انځورګري پرې شوې وه، چارلي له سګرټه يو غټ کش وکړ:

(انجينران به اوس د برښنا د شته سيستم، د بندونو د وړتيا، سرکونو، پټليو او نورو اسانتياو حالت او معلومات راټول کړي.)

بيا يې په سګرټ ما خواته اشاره وکړه:

( ته بايد زر خپل کار پيل کړې، د لومړی مياشت تر پايه بايد هارورډ په دې پوه شي چې د نوې ګرډ لاين راتګ څه اقتصادي معجزه کولای شي. په دويمه مياشت کې بايد ټول معلومات ولري، يعنې د هرې سيمې په اړه

معلومات باید راټول شوي وي. وروستی میاشت به ډېره مهمه وي، په دې میاشت کې به تش ځایونه ډکوو، په دې پړاو کې به موږ ټول یو ځای سره کېنو او په دې به ځان ډاډه کوو، چې د اړتیا وړ ټول مواد او معلومات راټول شوي دي، موږ به د منني له احساس سره کورونه ولوټو، همدا زما شعار دی او د بیا راتګ هېڅ اړتیا باید پېښه نه شي.)

هوورډ د یوه مهربانه مشر ځانګړنې لرلې، خو ډېر غوسه ناک و، فکر یې کاوه چې ژوند ورسره درغلي کړې، دی په دې ډېر خفه وه چې په نیوانګلینډ برېښنایي سیستم کې یې ولې لوړپوړی مقام ترلاسه نه کړه. ماته یې څو ځله ویلي وو چې: ( ماته ځکه پام نه کېده چې ځان مې د شرکت له پالیسیو سره نه جوړاوه)، بیا په جبرې ډول تقاعد شو، مېرمن سره یې چې جوړه رانغله په کور ناستی ورته سخت شو او په دې توګه یې په MAIN کې د مشاور دنده واخیسته. دا یې دویم مسئولیت و، انیار او چارلي دواړو راته ویلي وو چې ده سره پام کوه (ځان ترې ساته)، ویل یې چې ډېره غوسه ناک، تریخ او حرامي انسان دی.

ورو ورو دا ښکاره شوه چې هاوورډ زما ډېر ځیرک استاد و. له بده مرغه دا اعتراف مې هغه وخت نه وکړ، دې ته کلاډېن هغه درس نه  و ورکړی چې ماته یې راکړی و. دا یې لکه چې ډېر ضدي او کمزوری ګاڼه. یا به یې فکر کړی و چې دا دلته د لنډې مودې لپاره راځي. په هرصورت، ددې خلکو په نظر دا رښتیا هم یوه مسئله ثابته شوه، هاوورډ ټول حالت له نږدې وکاته اوپوه شو چې څنګه کار باید ترې واخلي. پوخ هوډ یې کړی و چې ددوی د لاس آله به نه ګرځي. آین او چارلي چې پرې کوم نومونه ایښي وو، ټول سم وو. په ضد کې یې یو ټکی دا و چې ځان یې د هغوی فکر او ارادې ته نه تسلیماوه. ده لکه چې د اقتصادي جنایتکار نوم اوریدلی و او پوهېده چې

د کومې ناوړه موخې لپاره ترې کار اخیستل کیږي؛ خو ده ورسره نه منله.
چارلي سره له یوې ناستې وروسته یې زه یوې خنډې ته کړم، د اوریدو آله (د کنیو لپاره) یې په غوږ کړې وه او تر کمیس لاندې یې د غږ د لوړو او ټیټولو تنۍ کیکاږلې.
هاوورډ ورته په شوخۍ وویل: (دا زما او ستا تر منځ خبره ده). موږ په خپل عمومي دفتر کې د کړکۍ خواته ولاړ وو، له کړکۍ مو بهر نهر ته کتل چې چټلې اوبه پکې روانې وې، یوې پیغلې پکې لامبل او د خپل عورت د پټولو لپاره یې د سارنګ ټوټه په خپل بدن بیا بیا راجوړوله. چارلي وویل: (دا خلک غواړي تا په دې باوري کړي چې ددې هیواد اقتصاد اسمان ته پورته کېدونکی دی. چارلي ظالم دی، ته هوښیار اوسه چې په خپل جال کې دې بند نه کړي.)
ما داسې فکر کاوه چې دا خبرې مې کومې کندې ته غورځوي، خو غوښتل مې دا هم ومنم چې چارلي په حقه دی او زما ژوند خو هسې هم په همدې تېریده چې په MAIN کې خپل باداران خوښ وساتم:
( دا خبره خو رښتیاده چې دا اقتصاد به ډېر لوړ شي)، زما سترګې په هماغه ښځې خښې وې چې په نهر کې یې لامبل. په همدې وخت کې مې وویل : ( ته وګوره چې څه روان دي)، ( ښه دا خبره ده)، وبنګیده، ما چې څه ته لیدل هغه ورته نه ښکاریدل : ( ته له مخکې دوی سره ملګری یې، همداسې ده کنه؟)
په نهر کې د یو څه حرکت شو، له ښځې مې سترګې واوښتې، ګورم چې د پوخ عمر یو سړی بیغمه راغی، پطلون یې پرانیست او د نهر په غاړه حاجت رفع کولو ته کېناست، پیغله جلۍ یې هم په کیسه کې نه شوه، هماغسې یې لامبل ... . ما له کړکۍ مخ را واړوه، هاوورډ ته مې وکتل او مې ویل:

(زه به ځوان يم خو دنيا مې ليدلې ده، دا درې کاله وشول چې په جنوبي امريکا کې اوسيږم، ما په خپلو سترګو ليدلي چې تېل راووځي نو څه کيږي، هر څه ډېر زر بدليږي.)

هغه راباندې ملنډې وهلې وويې ويل: (ما هم دنيا ليدلې او له ډېره وخته مې ليدلې ده، ځوانه زه درته زه يوه خبره کوم، زه ستا له تېلو او شته خرافاتو سره هېڅ کار نه لرم. ما ټول عمر د برښنا د قوت وړاندوينه کړې ده.

زه پوهېږم چې د (روټ ۱۲۸) مشهورې ميسا چوسيټ معجزې بوستن ته څه کړي دي او زه درته دا په ډاډ ويلای شم چې تر اوسه د برښنا قوت په کال کې له اتو تر نهو سلنو نه دی زيات شوی، چې دا يې تر ټولو لوړه سحطه ده او معقوله يې شپږ سلنه ده.)

ما په ځير ور وکتل، تر يوه ځايه پوه شوم چې خبره يې سمه ده، ځکه نو زه دفاعي حالت ته لاړم، زه پوهېدم چې د هغه قانع کول به ډېر سخت وي ځکه چې زما خپل ضمير چيغې وهلې.

( هارورډه! دا بوستن نه دی، دا داسې هيواد دی چې تر اوسه يې خلکو برښنا نه ده ليدلې، دلته هر څه بدل دي.)

مخ يې رانه واړوه، لاس يې د ځه مره په اشاره وخوځاوه، په غوسه يې وويل : (ورځه او هر څه وپلوره، زما پکې کار نشته چې ته هر څه کوې)، د خپل مېز له شا يې څوکۍ راکش کړه او پرې کيناست : (زه د برښنا په اړه د هغو حقايقو پر بنسټ راپور جوړوم چې سم راته ښکاري، دا له هېڅ ډول دروغ اقتصادي شننې يا سروې سره اړيکه نه لري)، بيا يې پسنل راواخيست او په کاغذ يې ليک پيل کړ.

دا يوه داسې ننګونه وه چې سترګې مې پرې نه شوې پټولای، زه يې مېز ته ودريدم، ورته مې وويل:

(که زه یو داسې راپور چمتو کړم، چې ټول یې هیله لري، یعنې تر کالیفورنیا هم ستره اقتصادي خوشالي وي او ته د برښنا د ۶۰ سلنه زیاتوالي خبره وکړې چې له بوستن سره مساوي کیږي؛ نو باور وکړه چې بدل به شي.)

هغه خپل پنسل په مېز وویشت او برګ یې راوکتل : (بې ایماني، ټګي ... او ستاسو همدا کار دی.) دې سره یې زما د دفتر نورو همکارانو ته لاس ونیوه بیا یې زیاته کړه: (تاسو خپلې ارواوې په شیطانانو پلورلي دي، ستاسو یوازینی موخه دا ده چې خلک تېرباسئ او پیسې وګټئ.) بیا یې د دروغو خندا وکړه، لاس یې تر کمیس لاندې تېر کړ او ویې ویل : (زه مې د غوږ دا ماشین بندوم، چې کار وکړم.)

دې خبرو یې زه سخت ولړزولم، بهر وواتم او د چارلي په دفتر ورغلم، په نیمایي لاره کې ودریدم ، ښځي نه پوهېدم چې څه کوم، بېرته راتاو شوم، په زینو ښکته شوم، له دروازې ووتم، اسمان شین و، سترګې مې وګرځولې، پیغلې نجلۍ لمبا ختمه کړې وه او له نهر بیرون راوته، سیرنګ یې سم له ځانه تاو کړی و، پوخ عمر سړی نه و، څو ماشومانو په نهر کې لوبې کولې، یوبل ته یې چیغې وهلې او اوبه یې سره شیندلې. یوه مشره ښځه تر زنګنونو په اوبو کې ولاړه وه او غاښونه یې پاکول، هاخوا بلې ښځې کالي مینځل.

ما وې که ستونی کې مې څه نښتي دي، د سیمټو په یوې ټوټې کیناستم، هڅه مې کوله چې د نهر بد بوی ته پام ونه کړم، ډېره هڅه مې وکړه چې اوښکې وزغمم، زه په دې نه پوهېدم چې ولې خفه یم.

د هاوورډ دا خبره مې په غوږونو لګیده چې (ستاسو موخه یوازې پیسې ګټل دي)، هغه په اصل کې زه له خوږې (تېپي) ګوتې نیولای وم.

وړو ماشومانو پر یو بل اوبه اچولې او خوږې چیغې یې څلورو خواوته خپرې وې. ما په دې فکر کاوه چې څه کولای شم، څنګه به ددې ماشومانو

غونډې بيغمه شم؟ هو ددوی معصوميت او خوښي چې مې په غور ولیده دې پوښتنې ارام نه پرېښودم، دوی خواران نه پوهېدل چې په دې چټلو اوبو کې لمبا دوی له څومره لوی خطر سره مخ کړي دي. يو په ملا کړوپ سپين ږيری سړی امسا په لاس بيټ بيټ د نهر په غاړه روان و، يوې شېبې ته ودرېد، شوخو ماشومانو ته يې وکتل، بيا يې په کړشپه خوله خندا خپره شوه.

ما فکر کاوه چې په هاووړډ باور کولای شم او که دواړه سره يو شو دا ستونزه حل کولای شو، همدې سره مې په قراره ساه واخيسته، يو کاڼی مې راواخيست او نهر ته مې وغورځاوه، د هغې د څپو په ختميدو سره په ما کې د خوښۍ يوه څپه پيدا شوه، زه پوهېدم چې زه د هاووړډ په څېر ګام نشم پورته کولای، هاووړډ مشر و، ډېر تريخ و، د خپل شخصيت د جوړلو لپاره يې له ټولو شته فرصتونو ګټه پورته کړې وه؛ نو ښکاره وه چې اوس يې په دې ګام څه زيان نه ليده. خو زه ځوان وم، اوس مې ايله ژوند پيل کړی و او دا مې نه غوښتل چې پايله مې د هاووړډ په څېر شي.

زه چې دې چټلو اوبو ته ځير شوی وم، نو د نيو همشپاير د غرونو په سر د خپل ښوونځي منظره مې سترګو ته شوه، هلته مې خپلې رخصتۍ يوازې تېرولې، نورو ملګرو به مې له نڅا او موسيقۍ خوند اخيست او چکرونه به يې وهل، ورو ورو راباندې نهيلي زور شوه او زه يوازې شوم. په دې شپه خپل کټ کې پريوتم، هغه خلک راياد شول چې زما ژوند ته راغلي وو، هاووړډ، چارلي، کلاډين، اين، انيار او فرينک کاکا. ما فکر کاوه چې که دې خلکو سره نه وی مخ شوی اوس به مې ژوند څنګه و؟ چېرته به وم؟ دلته خو به هېڅ نه وم. بيا مې د خپل راتلونکي په اړه فکر وکړ، زه به چېرته ځم؟ ډېر فکر مې وکړ چې دا پوښتنه ځواب کړم ... . چارلي خو راته ښکاره

ویلي وو چې له ما او هاوورډ په راپورونو کې لږ تر لږه د اولس سلنه زیاتوالی ښودلو تمه لري، زه څه ډول راپور ورکړم؟بیا مې ذهن ته یوه خبره راغله چې آرام یې کړم، ما ویل چې دا خبره مخکې ولې نه رایادیده؟ ښکاره ده دا پریکړه زما نه وه. هاوورډ خو لا مخکې ویلي وو چې هغه څه به کوي، چې ښه او سم ورته ښکاري. زما په راپور یې هیڅ اغېز نه کاوه، ما خو خپلو بادارانو ته د ښې اقتصادي ودې راپور ورکولای شو او خوشالولای مې شول، خو هاوورډ بیا خپلواک و. زما کار په ماسټر پلان کوم اغېز نه درلود، خلکو راته څو ځله زما د کار ارزښت په ګوته کړ، خو زه پوهېدم چې خبره یې غلطه وه، په ذهن مې فشار کم شو او له خوبه مې ښه خوند واخیست. څو وروسته هاوورډ سخت اسهال شو، موږ زر د کاتولیک روغتون ته ور وست، ډاکټرانو دوا ورکړه او سپارښتنه یې وکړه چې زر یې امریکا ته ولیږدوو. هاوورډ موږ ته وویل چې د اړتیا وړ ټول مواد یې راټول کړي دي او په بوستن کې به ترې په اسانه راپور جوړ کړي، د تلو په وخت کې یې راته وویل : (د اعدادو او ارقامو جادوګرۍ ته اړتیا نشته، ته که ددې اقتصادي پرمختګ د فریب لپاره هره وړاندوینه کوې ویې کړه، خو زه یې هېڅکله ددې فریب برخه نه ګرځم.)

## شپږم فصل

# زما څېړنيزه ونډه

له اندونيزيايي حکومت، اسيايي پرمختيايي بانک او USAID سره سره د ترون لپاره مو بايد له هغه مرکزونو ليدنه کړې واى چې په ماستر پلان کې يې يادونه شوې وه. ددې کار لپاره زه وټاکل شوم، چارلي خبره داسې وکړه: (تا د امازون حالت ليدلی، ښه پوهېږې چې له حشراتو، مارانو او چټلو اوبو سره څه وکړې.)

له يوه موټړوان او يوه ژباړونکي سره مې ښايسته ډېر ځايونه وليدل او ډېرو خفه کوونکو ځايونو کې پاتې شوم. له ځايي چارواکو او سياسي رهبرانو سره مې وکتل او د اقتصادي ودې په اړه مې د هغوی نظريات واوريدل خو دا احساس مې وکړ چې زياتره يې د معلوماتو له ورکولو وېرېږي. هغوی له ما وېرېدل، همدا يوه خبره يې کوله چې له لوړو مقاماتو سره وګورئ او يا په جاکارتا کې له دولتي ادارو او ولسمشر سره خبرې وکړئ، ما به کله کله ويل چې ګني پر ضد مې کومه دسيسه جوړېږي.

داسې سفرونه لنډ وي، په دوه درې ورځو کې خپل دفتر ته هم تلم راتلم، کومې ښځې چې دا چارې تنظيمولې يو زوی يې له ما څو کاله کشر و، نوم يې تورزمان و خو له مور پرته نورو ټولو ورته ريزي ويل، ده په يوه ځايي پوهنتون کې اقتصاد لوسته او زما کار سره يې علاقه ونښوده، زه وېرېدم چې حتمن به رانه دنده غواړي، ماته يې د اندونيزيايي ژبې سبق هم پيل کړ.

اندونيزيا چې له هالنډه خپلواکي واخيسته نو د ولسمشر سيوکارنو لومړيتوب دا و چې اندونيزيايي ژبه بايد عامه شي. په دې ټوله سيمه کې تر درې سوو ډېرې ژبې ويل کيږي. د سيونارکو دا فکر ښه و چې اندونيزيا يو ګډ کلتور

ته اړتيا لري چې له ډېرو وچو ( جزيرو) او بې شمېره تمدنونو يو متحد هيواد جوړ کړي. د ژبپوهنې يوه نړيواله ډله يې جوړه کړه او اندونيزيايي ژبه يې رامنځته کړه، ددې ژبې بنسټ مالايي ژبه وه خو ډېر بدلونونه پکې راغلل او ګرامري پيچلتياوې يې ترې وويستې، له ۱۹۷۰ ز کال راپدې خوا خلکو دا ژبه پيل کړې وا ورسره يې خپلې ژبې هم ويلې.

ريزې تکړه ښوونکی و او ډېرې ښې ټوکې به يې هم کولې، زه په دې پوهېدم چې د شوار او هسپانوي ژبو په پرتله باشا (اندونيزيايي) ژبه ډېره اسانه ده.

ريزې يو موټرسايکل درلود او د ښار له خلکو سره زما پېژندګلوي يې خپل مسئوليت ګاڼه. يو ماښام يې راته وويل: (زه به تاته د اندونيزيا هغه مخ دروښيم چې تا لا نه دی ليدلی.) زه يې ځان سره په موټر سايکل سپور کړم او روان شو.

موږ ډېرسيلونه وکړل د نانځکو ننداره، روايتي موسيقي، اورلوبه، مداري او پهېري ( کهنه فروشان)، دې خلکو هر څه پلورل له زړو امريکايي منع شويو فيتو (کيسټو) نيولې تر ځايي نايابه لاسي شيانو.

په اخر کې بيا يو (کافي شاپ) ته لاړو، د ځوانو نجونو او هلکانو ګڼه ګوڼه پکې جوړه وه، خولۍ يې په سر کړې وې او ويښته يې داسې جوړ کړي وو لکه په ۱۹٦۰ ز کال کې به چې په (بيټلز) ننداره کې کېدل. خو ځانګړتيا پکې دا وه چې هر يو کس پکې اندونيزيايي و.

يوه مېز ته خلک ناست وو، ريزي ورسره زما پېژندګلوي وکړه او ورسره کيناستو، د انګليسي ژبې په ويلو کې درجې بېلابېلې وې، خو ټولو ويلای شوه. زما اندونيزيايي خبرې يې وستايلې او ډاډ يې راکړ. د ژبې په موضوع يې بحث پيل کړ او ماته يې وويل چې امريکايان ولې زموږ ژبه نه زده

کوي؟ ما خواب نه درلود، ما دا وضاحت هم ونه کړ چې زه يوازينی لويديځوال ولې دلته راغلی يم، ځکه دلته هغوی ټول په ښو هوټلو او کلبونو کې چکرې وهي.

دا شپه به مې تل په ياد وي، ريزي او ملګرو يې ماسره د خپلو په څېر چلند وکړ، ددوی په ليدو مې د خوښۍ احساس وکړ. ددوی ښار، خواړه، موسيقي، لونګين سګرټ چې ددوی د ژوند برخه وه، ټوکې ټکالې، لنډه دا چې زه ددوی په هر څه کې شريک وم. داسې فکر مې کاوه چې د پيس کور شپې بيا راغلې دي. بيا مې ويل چې ولې په فرسټ کلاس ( په الوتکه کې لومړۍ درجه ځای) کې سفر کوم؟ که زه په هغه کې سفر وکړم داسې ډېر ملګري به له لاسه ورکړم. شپه چې پخيده مجلس هم خوږيده مانه يې پوښتنې کولې، د ويتنام د جګړې په اړه يې زما نظر وغوښت، هغوی دې (غير قانوني بريد) ډېر وېرولي وو او چې پوه شول احساسات مو سره ورته دي، نو بيا ډېر ارام شول.

زه او ريزي د شپې ناوخته مېلمستون ته راستانه شو، توره تياره وه، ما ترې له زړه مننه وکړه، د بيا ناستې ژمنه مو وکړه، يو بل ته غاړې وتو او خپلو خونو ته لاړو.

د ريزي او ملګرو بنډار يې دا شوق راکړ چې له MAIN ډلې جلا بايد ډېر وخت تېر کړم. په سبا يې زما او د چارلي ناسته وه، ښکاره مې ورته وويل چې له ځايي خلکو د معلوماتو په راټولولو کې بوخت يم، بله دا چې د راپور لپاره حقايق بايد د جاکارتا له رسمي دفترونو ترلاسه کړم؛ نو دواړو دا ومنله چې يوه يا دوه اونۍ بايد په جاکارتا کې پاتې شم.

چارلي راسره خواخوږي وښووده، خو ما په زړه ګوړې ماتولې چې وخت به په خپله خوښه تېر کړم، سيل به وکړم او ښو هوټلونو کې به شپې وکړم.

جاکارتا ته چې ورسیدم عقده مې ختمه شوه، ژوند راته بل ډول ښکاریده، جاکارتا کې راته خپل امریکایي هیوادوال بل ډول ښکاریدل، ښایسته مېرمنې یې ډېرې ښې نه ښکاریدې، کړکیو ته نصب شوي سیخان ډېر ځرګند ښکاریدل، مخکې مې پرې فکر نه و کړی، د ښکلي هوټل خواړه بې خونده وو.دلته په دې هم پوه شوم چې سیاسیون او سوداګر راسره په ناسته کې څومره څیرک وو، ما مخکې په دې خبره فکر نه کاوه خو اوس داسې فکر کوم چې ښه پرې نه لګیدم، په پېژندګلوۍ کې به یې ماته د باښا ژبې هغه لغتونه کارول چې په قاموس کې د پلټونکي او رازونو ټولونکي په هعنا وو. ما ترې دا خبره پټه کړې وه چې زه په باښا ژبه پوهېږم، ژباړونکی مې هم دومره پوهېده چې په څو ټکو پوهېږم، ما یو قاموس اخیستی و، چې له دوی به جلا شوم هغه کې به مې پلټنه کوله.

ما سره څو ځله دا پوښتنه پیدا شوه چې دا القاب د ژبې پېښه وه او که د قاموس ناسم تعبیر؟ هڅه مې وکړه چې همداسې باور وکړم. خو ما چې ورسره څومره وخت تېراوه په دې پوهېدم چې زه ورته یو مداخله کار ښکارم. په دې هم پوه شوم چې ماسره د مرستې امر ورته له لوړو مقاماتو راغلی او دوی اړ دي چې ویې مني، نور زه هم نه پوهېدم چې امر به له کومه راغلی وي. کوم لوړپوړی چارواکی؟ بانکدار ؟ پوځي جنرال؟ یا د امریکا سفارت؟ زه یوازې په دې پوهېدم چې دا خلک مې خپل دفتر ته ورغواړي، ښه روغبړ کوي، چای راکوي ، مرسته راسره کوي، خو ددې ټولو کارونو ترشا یو کینه هم شته چې راسره پالي یې.زه د خپلو پوښتنو په ترلاسه شویو ځوابونو شکمن وم، ځکه ماته ناشونې وه چې ژباړونکي سره دفتر ته ننوځم او چې چاسره وغواړم ووینم. که څه هم وخت به مو له مخکې اخیسته. د کار دا طریقه ډېره بده نه وه، خو تشریفاتو کې ډېر وخت ضایع کېده، ټیلیفوني کار

په نشت حساب و. موږ اړ وو چې په ګڼه ګوڼو او تنګو کوڅو کې مزلونه وکړو او ساعتونه تېر کړو، حال دا چې ځای به رانه څو سوه متره لیرې و. هلته په رسیدو به مو دېرې فورمې ډکولې، بیا به یو سکرتر راپیدا شو، مخامخ چلند به یې ډېر ښه و، جاوا کې دا رواج و، په موسکا به یې رانه وپوښتل چې څه ډول معلومات غواړم، بیا به د کتنې پر ځای د کتنې وخت راکول کېده. د ملاقات وخت به طبعاً څو ورځې وروسته و او وخت به دومره و چې د معلومات چمتو شوې دوسیه پکې راکړل شي، صنعتکارانو به خپل پنځه او لس کلن پلانونه راکول او بانکدارانو به اسناد لرل. دولتي چارواکو به یوازې د هغو پلانونو لست راکاوه چې ددوی په تخته به لیکلی و، عمل ته به پاتې و او اقتصادي وده به یې ډېروله. دا ټول په دې معنا وو: اندونیزیا د داسې یوې خوشالۍ په درشل ولاړ هیواد دی چې ښایي کوم بل هیواد به ددې خوشالیو خوند څکلای وي. ما یو داسې کس هم ونه لید چې په دې کار یې شک کړی وي او بدل معلومات یې راته راکړې وي. زه چې بنډونګ ته راستون شوم په خپلو تجربو مې فکر کاوه، د خفګان کومه خبره حتمن وه، فکر مې کاوه چې په اندونیزیا کې زما کار یوازې یوه لوبه ده، دا د قطعو لوبه وه چې موږ به پکې پرې پټولې. موږ پر یو بل باور نه شوکولای او نه مو پر هغو موادو باور کاوه چې یو بل سره به مو تبادله کول. دا ډېره جدي لوبه وه، اغېز یې ډېر اوږدمهالی و او کلونه وروسته به د میلیونونو خلکو په ژوند راڅرګندیده.

اووم فصل

# ازمېښت

ريزي باندونګ ته زما په راستنيدو ډېر خوښ و، راته يې ويل چې : (نن شپه دې يوې مېلې ته بوځم، دا د نانځکو تر ټولو ښه ننداره ده، بېګا ته يې ځانګړې ننداره ده.)

په موټرسايکل يې د ښار هغو برخو ته بوتلم چې زه ترې ناخبره وم. داسې سيمو ته لاړو چې د اندونيزيا روايتي کورونه پکې اباد وو، چتونه يې له کاشي (Tiles) جوړ شوي وو، د معبدونو په څېر ښکاريدل، د استعمار د دور لويې ودانۍ پکې نه ښکاريدې. خلک غريب وو، خو چلند يې له فخر ډک و. کالي يې زاړه و خو پاک ستره به يې اغوستل، هر ځای ته به چې تلو په ورين تندي به مو ښه راغلاست کېده. يو ځای کې ودريدو ماشومانو رامنډې کړې، زه يې لمس کړم او زما کالی يې وکتل، يوې وړې ماشومې راته د سور ياسمين خوشبويه ګل په ويښتو کې وتومبه.

موټرسايکل مو تياتر (ننداري) ته نږدې د سرک پر څنډه ودراوه، ډېر خلک راغلي وو، شپه رڼه او ښکلې وه. موږ که څه هم د پخواني بندونګ په مرکز کې وو، خو په سرکونو څراغونه وو، د اسمان رڼو ستورو سترګونه وهل، په هوا کې د لرګيو، موم پليو او لونګو خوږه خوشبو ګډه وه.

ريزي په خلکو کې ورک شو، بېرته له خپلو ملګرو سره راغی، هماغو وو چې په کافي شاپ کې موسره کتلي وو، ماته يې تود چای، کيک او سيټ Sate راکړ، سيټ يو ډول ميده شوې غوښه ده چې د موم پليو په تېلو کې سره کيږي. غوښې ته ځير شوم، څکه يوې ښځې راته په خندا وويل چې بېخي تازه غوښه ده، همد اوس پخه شوې ده.

موسيقي پيل شوه، د (ګيما دلانګ) جادوګر غږ راته د مندر د زنګونو شرنګار رایاد کړ.

ريزې راته په ګپ کې وويل: (دلانګ ټوله موسيقي خپله پيدا کوي، د هرې ژبې نانځکه پيدا کوي او بيا يې په خبرو راولي، موږ به يې تاته ژباړه وړاندې کوو.)

دا ډېره ښه ننداره وه، فلکلوريکي کيسې يې له اوسني وخت سره تړلې وې. زه وروسته پوه شوم چې دلانګ جاودګر دی، چې د مدهوشۍ يو حالت راولي او خپل کار کوي، يعنې خلک ځان سره عادت کوي، تر سلو ډېرې نانځکې وې او هر يو خپل غږ ويست، هغه شپه مې اوس هم نه هېرېږي او نه به هېره شي، پردې سربېره داسې شپه هم وه چې زما پر راتلونکي ژوند يې ژور اغېز وکړ.

د لرغوني رامايڼ له اقتباساتو وروسته يې د ولسمشر نيکس نانځکه (ګوډاګی) رامخته کړه، ښځي ورته وه، امريکايي ولس مشر ته يې د سام کاکا کالي اغوستي وو، د ستورو لرونکې لوړه خولۍ او ښايسته دريشي، ورسره يو بله نانځکه هم وه چې رسمي دفتري دريشي (Suit) يې وراغوستې وه، د دې نانځکې په لاس کې يو ډول و چې د ډالرو نښه ($) پرې جوړه شوه، په خپل اوزګار لاس يې د نيکس په سر د امريکا بيرغ داسې رپاوه لکه غلام چې خپل بادار ته پکې وهي.

ددې دواړو تر شا د منځني او ليرې ختيځ يوه نقشه را پيدا شوه، بېلابېل هيوادونه په چنګک کې راځړيدلي وو، نيکسن نقشې ته لاړ، ويتنام يې راخلاص کړ، خپل مخ ته يې رانږدې کړ، هغه چيغه کړه، چې ژباړه يې داسې وشوه ( د نه زغملو وړ، ډېران، بې معنا)، بيا يې هغه په ډول کې واچاوه او نورو هيوادونو سره همداسې وشول.

زه ددې په ليدو ډېر حيران شوم چې ددوی وروستي نښه شوي هيوادونه د لېرې خيتځ کمزوري نظامونه نه دي، بلکې د منځنۍ آسيا ټول هيوادونه، فلسطين، کويټ، عربستان، عراق، شام او ايران وو، بيا افغانستان او پاکستان ته ور وګرځيد. هر ځل به يې چې کوم هيواد خپل ډول ته اچاوه، ځيني بد توري به يې ورسره کارول.

خلک ښخي په جوش راغلی وو، په ډول کې به چې کوم هيواد ورزيات شو خلکو به چيغې کړې، خندا ګانې، درد او غوسه، په يوه وخت خلکوکې همدا درې واړه ځپې ليدل کېدې. ما داسې احساس هم وکړ چې د نانځکې ځيني خبرې په خلکو بدې ولګيدې، زه لږ وويرېدم ځکه په دوی کې زه ډېر بدل وم او د شخړې پر وخت کېدای شوای زه په نښه شوی وی. وروسته بيا نيکسن داسې خبره وکړه چې زما سر يې را وګرځاوه:

(دا نړيوال بانک ته وسپارئ، وبه ګورو چې د اندونيزيا د شتمنۍ په تروړلو زموږ د خزانو ډکولو لپاره څه کولای شي؟) له نقشې يې اندونيزيا را واخيسته او غوښتل يې ډول ته يې ور واچوي، په همدې وخت کې له سيورې يوه بله نانځکه راووته او مخ ته راغله، دا د کوم اندونيزيايي کس ګوډاګی و چې باتک کميس او خاکي رنګ پطلون ور اغوستل شوی و، په خپلو کاليو يې يوه نښه هم لګولې وه چې له هغه يې نوم څرګنديده. ريزې وويل دا د بنډونګ يو مخور سياستوال دی.

دا نانځکه د نيکسن او دويم کس منځ ته راغله او چيغه يې کړه: (بس يې کړئ، اندونيزيا خپلواک هيواد دی) خلګو يې په ملاتړ چيغې کړې، دې سره بيرغ لرونکي کس خپل بيرغ راواخيست او د نيزې په شکل يې د اندونيزيايي په سينه ورخښ کړ، اندونيزيايي په ډېرو سختيو مړ شو، خلکو توهينوونکې چيغې ووهلې، نيکسن او ډول لرونکې کس زموږ مخې ته

ودریدل، خلکو ته یې وکتل او له ستهیجه ووتل.
ما ریزي ته وویل چې زه باید اوس لاړ شم.
هغه د خواخوږی په ډول خپل لاس زما په اوږه کېښود او ویې ویل: (مه وېرېږه، هر څه سم دي، هغوی شخصاً تاسره هېڅ کار نه لري) خبره مې زړه ته نه لویده.
بیا تول کافي شاپ ته لاړو، ریزي او ملګرو یې ډاډه کړم چې د نیکسن او نړیوال بانک د ډرامې په اړه یې له مخکې معلومات نه درلودل، یو ځوان پکې وویل چې ددې ننداره په اړه څوک نه پوهېږي چې څه پکې ښودل کیږي.
ما په لوړ غږ وویل، دا ننداره یې لکه چې زما په ویاړ جوړه کړې وه، یو راته په خندا وویل، ستا خودي ښخي ډېره ده، بیا یې زه په ملا وټپولم: (ستاسو امریکایانو خپل انداز دی.)
ماته مخامخ کس راته وویل: (اندونیزیایان له سیاسته ډېر معلومات لري، امریکایان داسې ننداره نه ګوري؟)
یوه ښکلې جلۍ راته مخامخ ناسته و، په پوهنتون کې یې انګلیسي لوسته، هغې وپوښتلم : (ته خپله نړیوال بانک سره کار نه کوې؟)
ما ورته وویل چې زه له اسیاسي پرمختیایي بانک او USAID اداري سره کار کوم؛ نو بیا یې وپوښتلم چې : (دا دواړه یو نه دي؟) زما ځواب ته په تمه نه شوه زیاته یې کړه : (هر څه د همدې نن شپې له ننداړې سره سم نه دي؟ ایا ستاسو دولت اندونیزیا او نور هیوادونه د انګورو یوه غونچه نه ګڼي ، چې کوم یې خوښ شي هغه ترې واخلي او نور وغورځوي؟ انګلستان وساته، چین له ستوني تېر کړه، اندونیزیا خپل ځای ته ورسوه.)
یوې بلې ښځې وویل: ( زموږ د تېلو وروستی څاڅکی وزبیښئ.)

ما غوښتل چې خپله دفاع وکړم، خو نه مې شوه کولای. ما دلته په راتګ فخر کاوه چې په یوه ځای کې د امریکا پر ضد یوه ننداره وړاندې کیږي او زه له خپل ځایه پورته نه شوم، که مې دا فکر کړی وی چې دا زما شخصیت حمله وه هم په حقه وم، ما غوښتل هغوی ته وښیم چې وګوره زه دومره جرات لرم چې دا هر څه زغمم. ما دا هم وربښکارول چې زه د خپلې ډلې یوازینی غړی یم چې بهاشا مې زړه کړې او غواړم چې ستاسو کلتور خپل کړم او تر څنګ یې مهمه خبره دا ده چې ددې نندارې یوازینی بهرنی نندارچي یم، خو فکر مې وکړ چې دوی سره بحث نه کول هوښیاري ده. ددې پر ځای مې هڅه وکړه چې ددوی خبرو ته ډېر پام وکړم، زه په دې پوه شوم چې دوی څه فکر کړی چې دالانګ له ویتنام پرته یوازې مسلمان هیوادونه جلا وښودل.

د انګلیسي محصلې وخندل او یې ویل ( لکه چې اصل پلان همدا دی.)

بل کس وویل: (ویتنام لنډمهالې معامله ده، لکه نازیانو ته چې هالنډ و، یوازې یوه وسیله، یا د ټوپ تخته چې پښه پرې کیښودل شي او ګام واخیستل شي.)

ښځې خپله خبرې پسې وغځوله: (اصلي هدف خو اسلامي نړۍ ده.)

زما نوره حوصله ختمه شوه، د اعتراض په ډول مې وویل : (تاسو دا نشئ ویلای چې امریکا د اسلام پر ضد ده.)

(ښه ؟ دا له کله؟ ته د ټواین بي (آرنولد، جي ټاین بي) په نوم خپل یو مورخ ولوله هغه په پنځوسمه لسیزه کې وړاندوینه کړې ده چې په راتلونکي پېړۍ کې به اصلي جګړه د پانګوالو او سوسیالیستانو تر منځ نه؛ بلکې د عیسویانو او مسلمانانو تر منځ وي.)

ما په حیرانۍ وپوښتل: ( ټواین بي رښتیا داسې ویلي دي؟)

( هو، Civilization on Trail او The world and the West ، کتابونه يې ولوله.)

ناستو کسانو يو بل ته وکتل، باور يې نه کېده چې زه به داسې کم عقله پوښتنه کوم، بيا يې خبرې داسې په قلاره پيل کړې لکه يو ناپوه انسان يې چې مخاطب وي :

(ځکه چې ټول لويديځ او د دوی مشره امريکا اوس په دې پسې راخيستې چې ټوله نړۍ ونيسي او د تاريخ تر ټولو لويه امپراتوري رامنځته کړي، دوی خپلو موخو ته ډېر نږدې دي، اوس خو يې شوروي اتحاد مخه نيولې، خو دوی به سترې شي. ټواين بي همدا خبره نيولې وه چې روس خو هېڅ مذهب نه لري، دا نظريه کوم بنسټ نه لري، تاريخ دا ښودلې ده چې عقيده يعنې روح او په ستر ذات د باور اصلي بنسټ دی او دا شتمني يوازې موږ مسلمانانو سره شته، د ټولې نړۍ په پرتله دا خلک موږ سره ډېر دي، تر عيسويانو هم ډېر، نو ځکه به تر هغه انتظار کوو، چې قوي شو.)

يوه بل کس يې خبره پخه کړه: (موږ به وخت ته په تمه شو او بيا به د مار غوندې خپل ګوزار وکړو.)

زه بيواکه شوم او ومې ويل : (دا فکر هم وېرونکی دی، ددې د بدلولو لپاره موږ څه کولای شو؟)

ښځې زما سترګو ته راوکتل ويې ويل: ( دومره مه ځانغوښتونکی کيږه، ته بايد پوه شې چې په نړۍ کې ستاسو له ماڼيو او مغازو پرته نور شيان هم شته، خلک له لوږې مري او تاسو خپلو موټرو ته د تېلو په غم کې يئ. ماشومان له تندې مري او تاسو د فيشن په مجلو سر ټيټ کړی دی، زموږ په خبر ملتونه د غربت او بېوزلۍ په ګرداب کې ډوبيږي خو تاسو مو د مرستې چيغې او فريادونه هم نه اورئ، څوک چې درته دا خبرې کوي په

هغوی ځان کړنوئ، په هغوی د انقلابي او سوسیالیست ټاپه لګوئ او غلي کینئ. تاسو دا بېوزله خلک غلامان کوئ، داسې مه کوئ، دې خواته د ټیله کولو پر ځای ورته د خپل زړه دروازې پرانیزئ، اوس وخت لږ دی، که تاسو په ځان کې بدلون رانه ولئ نو بربادي مو نصیب ده.)

تر دې څو ورځې وروسته د اندونیزیا هغه بانفوسه سیاستوال چې په ننداره کې یې د نیکسن مخه نیولې وه؛ کوم موټروان په موټر وواهه، ویې واژه او د تل لپاره ورک شو.

# اتم فصل

## عیسی علیه السلام : له نوې زاويې

دا ننداره او د هغې ښځې خبرې مې تر ډېره په ذهن کې وې، د بندونګ هغه شپې زما فکر او احساس ته نوې بڼه ورکړه.

په اندونيزيا کې د خپلو فعاليتونوپه غبرګون مې هېڅکله سترګې نه وې پټې کړې، خو زما احساسات پر غبرګون زورور وو، ما خپل احساسات د منطق او تاريخ په مثالونو او بيولوژيکي غوښتنو تېر کړي وو، ما خپله مداخله تل د انساني اړتياوو برخه ګڼلې وه او په دې مې ځان مطمين کړی وچې زه، انيار، چارلي او زموږ نور ملګري يوازې هغه څه کوي چې خلکو تل کړي دي، يعنې خپل او د خپلې کورنۍ لاسنيوی، په دې کې نوې خبره نشته.

خو له اندونيزيايي ځوانانو سره خبرو زه د مسئلې بل اړخ ليدو ته چمتو کړم. ددوی له زوايې مې چې وکتل، نو داسې احساس مې وکړ چې ددې ځانغوښتنې پر بنسټ بهرنۍ پاليسي نه راتلونکو نسلونو ته خدمت دی او نه يې خونديتوب پکې شته. په ساده ټکو کې يې د اوږدمهالي فکر نشت تعبيرولای شو. ددې ماهيت او ترکيبي عناصر داسې وي لکه د سوداګريزو شرکتونو کلني راپورونه او يا هم د ټاکنو پر وخت د سياستوالو د بهرنۍ پاليسۍ لرونکی پلان.

د خپل راپور لپاره په ارقامو پسې څو ځله جاکارتا ته لاړم، هلته يوازې وم، په دې مسايلو مې فکر وکړ او په يوه کتابچه کې مې يادښتونه هم واخيستل، په هغه ښار کې ښه وګرځېدم، سوالګرو ته مې خيرات ورکړ، نڅاګرو او د کوڅو له ماشومانو سره مې خبرې وکړې.

په همدې وخت مې د بهرنيو مرستو په څرنګوالي هم فکر وکړ. دا خبره راته

ځرګنده شوه چې پرمختللي هیوادونه مخ پر ودې هیوادونو کې د بېوزلۍ او لوږې د ختمولو لپاره څه کولای شي. ما فکر وکړ چې بهرنۍ مرستې د خدای لپاره نه وي، ددې ترشا حتمن ځینې موخې شته. دا پوښتنه راسره پیدا شوه چې دا مرستې کومه پټه موخه لري که نه او که لري یې څه بدلون باید پکې راشي؟ ما هیله لرله چې زما او نور هیوادونه به هم د نړۍ د بېوزلو او رنځورو خلکو د مرستې لپاره څه اقدام وکړي، خو په دې ډاډه وم چې داسې نه کیږي او که کیږي هم نو زموږ د مداخلې بنسټیز محرک به بل څه وي.

ما به تل له ځانه دا پوښتنه کوله چې که بهرنۍ مرستې د استعمار لپاره کیږي؛ نو دا ناسم کار دی؟ زه به تل چارلي غوندې خلکو ته پسخیدم، هغه پر خپل نظام دومره کلک باور درلود چې غوښتل یې په ټوله یې دنیا په شین زور ومني. زه په دې شکمن وم چې د محدودو وسایلو په لرلوسره به د نړۍ ټول خلک د امریکا په څېر ژوند ځنګه وکړي، حال دا چې په امریکا کې خپله ډېر خلک د لوږې ښکار دي او زه خو په دې هم نه پوهېدم چې د نړۍ ټول ملتونه ربښتیا هم غواړي چې زموږ په څېر ژوند وکړي که نه؟

د تاوتریخوالي، خفګان، اعتیاد، طلاق او جرمونو په اړه زموږ خپلې شمېرې دا ښيي چې که څه هم موږ د انساني تاریخ په ښو ملتونو کې راځو خو کېدای شي چې زموږ په ټولنه کې خوښۍ تر نورو ډېرو لږې وي، نو بیا موږ ولې غواړو چې نور خلک دې زمانه تقلید وکړي؟

کلاډین لکه چې ددې ټولو شیانو په اړه راته ویلي وو، هغه وخت زه نه پوهېدم چې هغه راته څه وایي. دا ټول علمي دلایل که یوې خواته شي نو زه په دې حقیقت پوهېدلی وم چې زما د ساده توب دوره پای ته رسیدلې ده، ما په خپله کتابچه (روزنامچه) کې ولیکل:

( آیا د امریکا په متحده ایالاتو یو کس هم بې ګناه ( معصوم) شته؟ په دې کې شک نشته چې لوړ پوړي وګړي پکې ډېره برخه اخلي، خو دا هم حقیقت دی چې زموږ په شان میلیونونه خلک باید د اوسني وخت لپاره د وروسته پاتې هیوادونو له استعمار مستقیه یا غیر مستقیه منه وکړي. د اندونیزیا غونډې ېبوزله هیواد نه وسایل او مزدوران راتلل، هغوی موږ ته کار کاوه او لږ شمېر به یې د ېبرته ستنیدو جوګه پاتې کېدل. بهرنیو مرستندویه پورونو دا خبره باوري کوله چې د یوه هیواد بچی او لمسي یرغمل نیول کیږي. هغوی دې ته اړ کېدل چې خپل طبیعي وسایل زموږ شرکتونو ته راکړي، له زده کړو، روغتیا او نورو خدمتونو لاس ومینځي او زموږ پور پرې کړي. دا رښتیا ده چې د فابریکو، هوایي ډګرونو او صنعتي پارکونو د رغونې په بهانه زموږ شرکتونو له دوی د پور ډېره برخه وصول کړې ده ، خو دا فورمولونه په زیاتره ځایونو کې صدق نه کوي. دوی دا عذر وړاندې کوي چې ډېر شمېر امریکایان په دې حقایقو نه خبریږي، خو دا عذر د دوی د بې ګناهۍ استدلال نه کوي. دا خلک ناخبره دي، د ناسمو ارقامو په وړاندې کولو یې ذهن بدل شوی دی، خو بې ګناه ورته په هېڅ صورت نه شو ویلای.)

زه هم په هغو خلکو کې یم چې خلکو ته ناسم معلومات وړاندې کوم او په خپله ګناه اعتراف هم کوم.

د یوې سپیځلې نړیوالې جګړې تصور هم ځوروونکی و خو ماداسې فکر کاوه چې دا کار شونی دی. ما فکر کاوه چې که د جهاد په نوم دا جګړه ونښته؛ نو د مسلمانانو او عیسویانو به لړه او د مخ پر ودې او پرمختللیو هیوادونو به ډېره وي، البته مسلمانان پکې مخکې کېدای شي. موږ پرمختللي هیوادونه وسایل کاروو او مخ پر وده هیوادونه راته دا وسایل چمتو

کوي. دا د پخوانی سوداګریز استعمار په نوې بڼه تکرار و. دا يو داسې نظام و چې زورواکو پکې له محدودو وسايلو د کمزورو ډېر وسايل ترې تروړلای شول.

ما د تهواين بې کتاب نه و لوستی خو له تاريخه په دې پوه شوی وم چې که له يوه ملته تر ډېره وخته د هغوی وسايل استثمار شي؛ نو بغاوت رامنځته کيږي. ما د بېلګې په ډول د امريکا انقلاب او تهام پين راياد کړل. زما په ياد دي انګلستان چې ماليات وضع کړل دليل يې دا ووې چې موږ به د فرانسويانو او نيوزلنډيانو پر وړاندې د خپلو کورونو دفاع کوو ، خو کوم خلک چې له دې حالته اغېزمن شوي وو هغوی برعکس بل ډول فکر کاوه.

پين په خپل ستر کتاب (Common sense) کې خپلو هيوادوالو ته يو وړانديز کړی دی. دا په اصل کې د هماغې (اروا) تصور دی چې ځوانو اندونيزيايي ملګرو هم راته راکړی و. ده د يوه تصور ،د يوه ستر ذات په عدل باور، خپلواکی او مساوات درس ورکړی و، چې دا درس د انګليسي نظام د لوړپوړې طبقې پرضد و، مسلمانانو يو پر لوی ذات باور درلود او بل يې ويل چې پرمختللي هيوادونه د ټولې نړۍ د استثمار حق نه لري. لکه څنګه چې د انګليسي استعمار پر ضد امريکايان په يوه خبره سره راټوليدل همداسې مسلمانانو د خپل دين لپاره جګړې ته ملاګانې تړلې دي او لکه څنګه چې په ۱۷۷۰ ز کال کې انګليسانو کړي وو، هماغسې اوس موږ هم په مسلمانانو د ترهګرۍ تور پورې کوو او تاريخ يو ځل بيا تکرارو.

زه خو وايم هغه به لا څنګه نړۍ وي چې امريکا او شوروي اتحاد پکې يرغلونه ونه کړي او خپل قوت يوازې د بيوزلۍ له منځه وړلو، زده کړو او روغتيا ته وقف کړي او له دې اسانتياو زموږ هيوادوال هم ګټه پورته کړي. ما تل په دې فکر کړی چې که موږ وغواړو بيوزلي ختمه کړو او خپل

چاپېريال وساتو؛ نو په راتلونکو نسلونو مو څه اغېز کولای شي. زه خو فکر نه کوم که زموږ مشرانو به دا فکر کړی وي چې د ژوند په خوند او اسانتياوو يوازې د امريکايانو حق دی؛ نو بيا موږ ولې د استعمار پراخوونکی پلان عملي کوو، حال دا چې همدې استعمار سره په مبارزه مو مودې تېرې کړې دي.

په اندونيزيا کې مې وروستۍ شپه وه. له خوبه ويښ شوم، څراغ مې روښانه کړ، فکر مې کاوه چې په خونه کې راسره کوم بل څوک هم تشه، د هوټل د خونې مېزونو، څوکيو، کړکيو او کړکيو ته پرتو پردو ته ځير شوم، ستړی ويده شوم. په خوب کې مې عيسی عليه سلام وليد، هماغسې ښکاريده لکه په ځوانۍ کې به مې چې له عبادت وروسته ورسره خبرې کولې، توپير يې دا و چې زما په ځوانۍ کې يې ويښته سره او پوټکی سپين و خو اوس يې ويښته تور او پوټکی غنم رنګه و. هغه ټيټ شو او په کوم څه يې په خپلو اوږو پورته کړل، فکر مې وکه صليب به وي، خو چې ومې ليدل چې د موټر ايکسل دی او د ټاير ډرم (تبی) ورپورې نښتې ده، دا يې په خپل سر پورته کړی و، له تندي يې د مبلايلو غوندې وينه راڅڅيده، بيا سم ودريد، زما سترګوته يې راوکتل او ويې فرمايل: (که زه بيا دې نړۍ ته راغلم نو په بل ډول به مې وګورې) ما وپوښته چې ولې؟ هغه راته ووېل چې نړۍ بدله شوې ده.

د سبا رڼايي خپره شوې وه، پوهېدم چې اوس خوب نه راځي، کالي مې بدل کړل، لاندې ښکته شوم او د حوض او باغ پر څنډو وګرځېدم، سپوږمۍ له د څوارلسمې د جانان په مستۍ وه د ګلونو خوشبويانو په هوا کې څپې وهلې، زه په يوه څوکۍ کيناستم او فکر مې کاوه چې زه دلته څه کوم؟ د ژوند پېښو دې ډګر ته ولې راوستی يم او مهمه دا چې اندونيزيا ته يې ولې راوستی يم؟ زه په دې پوهېدم چې ژوند مې بدل شوی دی، خو دا

معلومات راته نه وو چې دا بدلون څومره شديد دی.

له راستنيدو وروسته مې له اين سره په پاريس کې وکتل چې کېدای شي اړيکې مو سره ښه شي خو په دې لنډه موده کې مو ايله جنګونه وکړل. که څه هم په دې موده کې ډېرې ښايسته او ځانګړې شپې هم راغلې خو دا مو محسوسه کړه چې زموږ غوسه او اوږدې شخړې مو يو ځای کېدو ته نه پرېږدي. پردې سربېره مې ژوند ته ځينې داسې نور عوامل هم راننوتي وو چې دې ته مې نه شول ويلای. په نړۍ کې يوازې يو داسې انسان و چې ما ورسره دا ټول مسايل شريکولای شول او هغه کلاډين وه. ما يې په اړه ډېر فکر وکړ، زه او اين د بوسټون په لوګان هوايي ډګر يوځای ښکته شو او په بيک بی کې مو لارې سره جلا شوې.

## نهم فصل

# د ژوند جوړولو فرصت

په اندونيزيا کې د تېرې شوې مودې اصلي ازمېښت په MAIN کې کېده. سهار تر هر څه د مخه د پروډيشنل سنټر مرکزي دفتر ته لاړم. زه هلته له لسګونو نورو کارکوونکو سره لفټ ته په تمه ولاړ وم، په همدې وخت کې خبر شوم چې د MAIN اتيا کلن اجرايوي مشر ميک هال ، انيار ته ترفيع ورکړې ده او د پورټ لينډ د سيمه ايز دفتر مشر کړی يې دی. اوس مې بايد برونو زمبوټي ته راپور ورکولای.

برونو ډېر خوږ انسان و، د ويښتو د رنګ له امله به خلکو نقره يي ګيدړ باله، دا په زړه راښکون کې له مشهور فلمي ستوري کيري ګرانټ سره برابر و. دا وړتيا يې لرله چې که چا به يې واک وګواښه؛ نو ماته به يې خوړله، خپل مسلک يې انجينري وه خو په اداره او سوداګرۍ کې يې ماسټري لرله. د اقتصاد سنجونې له ټولو برخو سره بلد و. دا دٔ MAIN د اليکټرو پاور ډويژين او زموږ د نړيوالو پروژو و مرستيال مسئول و. دا خبره ښکاره وه چې د دده له زوړ لارښود او سرپرست له تقاعد وروسته به همدا نقره يي ګيدړ د هغه ځای ناستی کېده. د MAIN د نورو کارکوونکو غوندې زه هم له برونو زمبوټي وېرېدم.

د غرمې له ډوډۍ لږ وخت مخکې زه د برونو دفتر ته وغوښتل شوم، د اندونيزيا په اړه مو دوستانه خبرې اترې وکړې، بيا يې يوه داسې خبره وکړه چې ما له خپله ځايه توپ کړ: (زه هارورډ پارکر ګوښه کوم، ډېر تفصيل ته اړتيا نشته، بس دومره پوه شه چې هغه په حقيقت سترګې پټې کړې دي.) داسې وموسيد لکه له خپل دې منفي کاره چې خوند اخلي، په دې خبره مې

ګوتې پر يوه کاغذ ټکولې: (د کال اته سلنه: د فشار په اړه يې دا وړاندوينه کړې، څوک به يې ورسره ومني؟ دا خبرنې يې د اندونيزيا په اړه کړې ده، هلته فرصتونه ډېر او اسانتياوې بې شمېره دي!) بيا هغه زما سترګو ته ځير شو، موسکا يې ورکه شوه: (چارلي انګورت راته ويلي دي، ستا وړاندوينه بېخي په هدف ده او له اولسو تر شل سلنه فشار بېخي سم ثابتوي، همداسې ده؟)

ما ډاډ ورکړ چې په دې کې هېڅ شک نشته.

هغه ودريد، لاس يې ماته را اوږد کړ او ويې ويل: مبارک شه، تاته به اوس ترفيع درکړل شي.

په دې وخت کې به دا ښه وای چې ما بيرون په کوم ښايسته هوټل کې له ملګرو سره دا شېبه نمانځلې وای، خو ذهن مې له کلاډين سره بوخت و، زما تادي وه چې د خپل پرمختګ زيرى او د اندونيزيا تجربې ورسره شريکې کړم. په ما يې ډېر ټينګار کړى و چې له بهرنيو هيوادونو راته زنګ راونه وهې. زه چې بېرته راغلم نو زړه مې په دې ډېر خفه شو چې پخواني ټيليفون يې قطع شوى و او نوې شمېره يې ما نه لرله، په همدې پسې زه هم ورک وم.

په پخواني اپارتمان کې يې يوه ځوانه جوړه (ښځه او خاوند) ميشته وه، وخت د ډوډۍ و، خو زه په دې باور وم چې دواړه مې له پالنګه راجګ کړي وو، زما مزاحمت پرې بد لګيدلی و خو يوازې دومره يې راته وويل چې د کلاډين په نوم څوک نه پېژني. ما د کور خاوند ته ځان د کلاډين د تره زوى ور وپيژاند او د معلوماتو هڅه مې ترې وکړه، خو د هغوى له اسنادو ښکاريدل چې په دې نوم کومې ښځې ته يې کور په کرايه نه دى ورکړى او د کور لومړي خاوند يې ويلي وو چې چاته به مې نوم نه ښيي. په پروډشنل

سنټر کې MAIN ته اړوند دفتر کې راته وویل شول چې دا نوم ورسره نه دی ثبت شوی، یوازې دومره یې وویل چې یوه ځانګړې مشاوره لري خو ماته یې نه شي ښودلای.

تر مازیګره ستړی شوی وم او زړه مې هم ګډوډ و او تر دې سخته دا چې اوږده سفر مې ذهن ببخي خراب کړی و. زه بېرته خپل تش کور ته راغلم، چوپتیا خپره وه، یوازیتوب خوړلم، فکر مې کاوه ټولو پرېښی یم، خپل پرمختګ راته بې معنا ښکاریده او کله به مې داسې فکر کاوه چې زما په غاړه کې یوه لوحه ځړېږي او [illegible]. لیکلي مې دي چې زه د پلورلو توکی یم.

نهیلی په کټ کې پریوتم کلاډ[illegible]ه وکارولم او پرې یې ښودم، څو ساعته مې تشو دیوالونو ته کتل، [illegible]یا م[illegible] له [illegible]ان سره قوي اراده وکړه چې نهیلۍ ته به نه تسلیمېږم او دې سره مې دحپلو احساساتو دریځې بندې کړې.

بلاخره پر ځان واکمن شوم، پاځېدم، یو بوتل بیر مې وڅښل او تش بوتل مې په مېز وویشت، له کړکۍ مې بیرون وکتل، په کوځه مې لکه چې هغه ولیدله چې ما خواته را روانه ده، زه دروازې ته روانیدم، خو یو ځل بیا مې ور وکتل، ښځه رانږدې شوې وه، ښایسته وه، په لاره تګ یې ببخي کلاډین ته ورته و خو کلاډین نه وه. زړه مې ډوب شو، احساسات مې اول په غوسه او بیا په وېره واوښتل.

په مخ کې مې د کلاډین څېره راڅرګنده شوه، په ګولیو سوری سوری شوه او ولویده، هغه ووژل شوه! پام مې بدل کړ، د ویلیم څو ګولۍ مې واچولې او پریوتم.

سبا سهار د MAIN له ادارې یوه زنګ له خوبه راویښ کړم، ددې څانګې مشر مورمینو ښښه وغوښته چې زما خوب یې راخراب کړ، خو ویې ویل چې نن مازیګر بایددفتر ته راشې، تاته یوه خبر لرم.

زه د هغه له وینا سره سم دفتر ته ورسیدم، ومې لیدل چې برونو له خپلې ژمنې هم یو څه زیات کړي دي، زه یې نه یوازې دا چې د هارورډ په ځای ټاکلی وم؛ بلکې موقف مې هم د ارشد اقتصادپوه شوی و، دې سره مې امتیازات هم لوړ شوي و، خو خبرې خوشالي رانه کړه.

مازیګر مې ځان سره جانګی (نېکر) او بیر واخیستل او د چارلیست سیند په غاړه ګرځېدم، هلته کیناستم، د بادباني کښتیو سیل مې وکړ، غوښتل مې چې د اوږد سفر او ستړیا ترخه رانه هېر شي. ما ځان ته دا قناعت ورکاوه چې کلاډین راسره یوازې یوه رسمي کاري اړیکه لرله او اوس به بل ماموریت ته تللې وي. تل یې په چُپ اوسېدو ټینګار کاوه، کېدای شي خپله راته زنګ راووهي، مورمینو رښتیا ویل زما ستړیا او افکار سره لیرې شوي وو.

په څو راتلونکو اونیو کې مې هڅه کوله چې د کلاډین په اړه فکر ونه کړم، خپل ټول پام مې دې ته کړ چې د اندونیزیا د اقتصادی حالت راپور خنګه ولیکم او د هاوورډ په وړاندوینه کې ځنګه سمونه وکړم. ما په هماغه ډول شننه چمتو کړه چې مشر مې غوښته، یعنې د بند له کار خلاصیدو وروسته په هر کال کې د برق په مصرف کې نولس سلنه زیاتوالی، ترې وروسته اتو کلونو کې اوولس سلنه او پاتې نورو پنځه ویشتو کلونو کې پنځلس سلنه.

د پور ورکولو د نړیوالو ادارو په ناسته کې ما د خپلې مطالعې لنډیز وړاندې کړ. د هغوی کارپوهانو ډېرې جامع او سختې پوښتنې وکړې، دې وخت کې زما احساسات په اوسپنیز هوډ واوښتل، هماغسې لکه ښوونځي کې مې چې ښودلي وو، د بغاوت پر ځای له ټولو د مخکې کېدو اراده، خو د کلاډین یادونه رانه چاپېر وو. په ناسته کې یو ځوان و چې په آسیایي پرمختیایي بانک کې یې دنده لرله، ده غوښتل چې لوی نوم وګټي، زه یې چې څو

پرلپسې ساعتونه ښه په عذاب کړم نو د کلاډين هغه نصيحت رایاد شو، چې ويل يې: (په راتلونکو پنځه ويشتو کلونو څوک پوهېږي، چې څه به کېږي، هسې هم تحمين دی، ته هم بايد دومره ښه اوسې لکه څومره چې دې سيال دی ، اصل شی پر ځان باور دی.)

زه په دې باوري شوی وم چې په خپل کار کې تکړه يم، ځکه کومو خلکو چې زما په کار نظر ورکاوه او پرېکړه يې پرې کوله، تر دې ټولو مې په مخ پر وده هيوادونو کې ډېر ژوند کړی و او دې هېڅ توپير نه کاوه چې د ځينو عمرونه يې زما دوه چنده وو. زه په امازون کې وم او د جاوا تر هغو سيمو تللی يم چې بل څوک ورته شايد زړه ښه نه کړي. ما ځينې داسې روزنې هم اخيستې وې، راته پکې ويل شوي وو چې لوړپوړي چارواکي بايد څنګه په خپلو خبرو او مهمو ټکو پوه کړم. په دې هم ډاډه وم چې د نوي نسل زلمی يم او زموږ ټول کار له اعدادو او شمېرو سره دی. د اقتصاد په باريکيو هغه زلمی چې د خپلو هيلو او غوښتنو پر مټ يې په ځوان عمر کې د خپلې بريا وزرې ورپولې، مخکې او د رابرټ مکينا مارا تر زړه ورسيد. رابرټ مکينا مارا، دا هغه کس دی چې ذ اعدادو او ارقامو، امکاناتو، د منلو نظر او حسابي ماډل (نمونې) پربنسټ يې ځانته د شهرت مانۍ رغولې وه. خو زه فکر کوم چې په دې کار کې يې دخپلې انا (خودۍ) پربنسټ ولاړ جرات هم شامل دی.

ما غوښتل چې له مکينا مارا او خپل مشر برونو، دواړو نه تقليد وکړم. له مکينا مارا مې د خبرو کولو چل زده کړ او حرکات مې له برونو راخپل کړل، پردې سربېره مې ددې له ځانګړې ادا او په لاس کې راځوړند لاسي بکس هم ډېره ګټه واخيسته. ځان پسې چې مخ واړوم په خپلو ترخو حيران شم، حقيقت دا دی چې زما مهارت بېخي محدود و، زما په زده کړو کې چې کوم

کمی باټې و هغه مې په خپل جرات پوره کړ، له نیکه مرغه دا سکه وچلیده او بلاخره د متخصصینو دې ډلې زما راپور ومانه.

وروسته مې بیا د تهران، کارکاس، ګویتې ملا، لندن، ویانا او واشګنټن کې په بې شمېره ناستو کې ګډون وکړ، له ډېرو مهشورو خلکو سره مې ولیدل چې د ایران شاه، د بېلابېلو هیوادونو پخواني ولسمشران او مکینا مارا هم پکې وو. د لومړني ښوونځي په څېر ډېر خلک وو، زه په دې حیران وم چې زما د نوې دندې او د پور ورکولو په نړیوالو ادارو کې تر بریا وروسته راسره څنګه د خلکو چلند بدل شو.

په لومړیو کې د پاملرنې اصلي مرکز زما رئیس و. ما ځان د یوه میرلن په شکل لیده چې پر یوه هیواد جادویي امسا وهم، هغه ځایونه روښانوم او صنعت پکې دسمسورو ګلونو غوندې راټوکوم. بیا دا جادو مات شي. ما چې کله د ځان او تر لاس لاندې خلکو محرکات وشنل نو ځان سره مې وویل چې په اندونیزیا کې د چټل نهر په غاړه چې کوم خلک ژوند کوي، د هغوی پر ستونزو د پوهېدو او له منځه وړلو لپاره د بې شمېره القابو او تحصیلي اسنادو اړتیا نشته. زه په دې باور وم چې د اعدادو او ارقامو دا جادو به انسان په راتلونکي کې له ستونزو سره مخ کوي. زه به چې څومره په هغو خلکو پوهېدم چې پرېکړې به یې پر ټولې نړۍ اغېز کاوه؛ همدومره به مې د هغوی په موخو او وړتیا هم شک پیدا کېده. زه چې کله هغه څېرې د کنفرانس د مېز شاته ناستې وګورم نو خپله غوسه نشم قابو کولای.

بلاخره دا صحنه بدله شوه، ورو ورو پوه شوم چې دا خلک د خپل کار په شموالي باوري دي. د چارلي په څېر دوی ټولو هم ویل چې کمونیزم او ترهګري دوه بد قوتونه دي. دوی دا خبره نه منله چې دا دواړه قوتونه ددوی او ددوی د مشرانو د پرېکړو په غبرګون کې رامنځته شوي دي. دوی فکر

کاوه، چې د خپل هیواد، خدای او اولاد پر وړاندې ځینې مسئولیتونه لري او ترسره کولوپاره یې باید دا نړۍ د پانګوالۍ خواته کش شي. ددې تر څنګ د سولې د بقا Survival of the fittest له نظریې سره هم تړلي وو، دوی فکر کاوه چې له نیکه مرغه د یوې جونګړې پرځای په ممتازه طبقه کې پیدا شوي . دا یې مسئولیت ګاڼه چې خپله نیکمرغي راتلونکو نسلونو ته هم ولېږدوي. ددوی په اړه زما نظر د تردید ښکار و، کله به مې دسیسه کوونکې بلل او کله به مې ویل چې دوی غواړي په ټوله نړۍ قبضه او انحصار وکړي. ورو ورو مې امریکا له کورنیو جګړو وړاندې (ودېریو) سره تشبیه کړه، دا هغه خلک وو چې یوه ضعیفه نظام کې راټول وو، فکر او ګټې یې شریکې وې، دا هغه خلک نه وو چې پټ کمینونه به یې نیول. دا ټولواکه او د غلامانو په شتون کې رالوی شوي وو. ددوی په ختېه کې دا خبره ګډه شوې وه چې ګنې په کافرو (بې دینو) خارنه وکړي او د بادارانو د مذهب او د ژوند د دوول له مخې پکې بدلون راولي. که کوم خلک به یې د فلسفیانه نظر له مخې د غلامۍ مخالف هم وو، بیا به یې هم دا حالت د شرایطو له مخې جایز باله. دوی ویل که دا نظام ختم شي په اقتصادي او ټولنیز نظام کې به ګډوډي رامنځته شي. نن سبا د لویو شرکتونو خاوندان هم په همدې فکر دي او یاد چوکاټ کې مناسب کېني.

ما په دې هم فکر پیل کړ چې جګړه، د وسلو تولید، له سیندونو اوښتل او د تمدنونو چپه کول د چا په ګټه دي؟ ما سره دا پوښتنه هم پیدا شوه چې د لوږې، ناروغۍ او چټلو اوبو له لاسه خلک ومري نو ګټه یې چاته رسیږي؟ ورو ورو مې احساس کړه چې اوږدمهاله ګټه خو به یې حتمن چاته رسیږي، خو لنډ مهالې ګټه یې هغو ته ده چې په لویو لویو پوستونو کار کوي، لکه زما رئیس او زه، له مادي اړخه خو همداسې ده.

دې نه څو پوښتنې راپیدا شوې، دا حالت ولې راغی؟ دومره دوام یې څنګه وکړ؟ آیا ځواب یې هماغه پخوانی متل (د سستو مال د چستو) دی؟ یعنې واکمنه ډله غواړي چې همدا نظام دوام وکړي.

دا ځواب به شاید نیمګړی وي، چې یوازې قوت ګڼي ددې حالت د دوام لامل دی؟ که څه هم پورته متل نه ډېر څه څرګندېږي خو زه داسې فکر کوم چې د جبر ډېر شمېر نور قوتونه هم کار کوي. د اقتصاد د لیسې یو ښوونکی مې رایادیده، چې له شمالي هنده راغلی و. هغه به موږ ته پر محدودو وسایلو، د اړتیا پر زیاتېدو او د جبري کار په اصولو لکچر راکاوه. د هغه د فکر له مخې په سلسله مراتبو ولاړو ټولو پانګوالو نظامونو کې د امر (حکم) یوه سخته لړۍ وي، په دې نظام کې څو لوړپوړي چارواکي د بېلابېلو سطحو ماتحتو کارکوونکو او تر ټولو ټیټه درجه کارونکو یو لښکر کنټرول کوي. په اقتصادي اصطلاح کې همدا د کارکوونکو لښکر په اصل کې غلامان دي. بلاخره په دې پوهېږو چې دا نظام روان دی او موږ یې ملاتړ په دې خاطر کوو،چې شرکتونو یو باور راکړی دی او هغه باور دا دی چې خدای غواړي دا کاروباري خلک دې د پانګوال نظام په لوړو پوړیو کې وي، خپل پلویان دې وګوماري او په ټوله نړۍ دې د خپلو ګټو دا نظام حاکم کړي.

موږ لومړي خلک نه یو چې دا کار کوو، موږ نه مخکې خلکو هم کړی دی، په تاریخ کې یې نوملړ ډېر اوږد دی، د شمالي افریقا لرغونې امپراتورۍ، منځنی ختیځ، آسیا، پرویشیا، یونان، روم، صلیبي جنګیالي او د کولمبس له دور وروسته ټولو اروپایي نظامونو همدا کار کړی. د استعمار همدا عمل تل د لوږې، وژنو، قطحۍ، بربادۍ او نسل وژنې لامل شوی او اوس هم داسې کوي. دې حالت تل د همدې امپراتوریو د خلکو په ضمیر د پرمختګ په

نوم یو بار اچولی دی او په ټولنه کې یې نارامي زیاته کړې ده. ددې پابله دا ده چې د انساني تاریخ تر ټولو لوړ او ستر تمدن نن د ځان وژنې، نشه یي توکو او نورو بدمرغیو په لومړي قطار کې ولاړ دی.

ما په دې پوښتنو ښه فکر وکړ، خو په دې ټولې لړۍ کې ددې هر څه شاته په خپله ونډه مې فکر ونه کړ. د ځان په اړه مې یوازې دا فکر وکړ چې دا پوښتنې د یوه اقتصادي جنایتکار نه؛ بلکې د یوه ارشد یا مشر اقتصادپوه په توګه کړې دي. ماته دا هر څه ډېر پر ځای او جایز ښکاریدل. که د جواز تصدیق ته یې اړتیا وای نو زما د پېسو سند یې شاهد و. ماته ټولې پیسې د MAIN یوه شخصي شرکت راکولې. NSA، یا بلې دولتي اداره مې نه مې یوه ټکه هم نه ده اخیستې، په دې دلایلو مې ځان تر یوه حده مطمئن کړی و.

یو مازیګر برونو خپل دفتر ته وروغوښتم، زما د څوکۍ شاته راتاوشو،په اوږه یې لاس راکیښود او ویې ویل: تا ډېر ښه کار کړی دی، ددې د منني په توګه درته د ژوند جوړولو یوفرصت درکوم، دا فرصت هغه خلکو ته هم په سختۍ نصیب کیږي چې ستا دوه چنده عمر لري.

لسم فصل

# د پانامې اتل ولسمشر

دا د ۱۹۷۲ ز کال د اپریل میاشتې کیسه ده. په دې باراني شپه زه د پانامې په نړیوال هوايي ډګر (توکومینTocumen )کې ښکته شوم. د هغو ورځو له رواج سره سم موږ څو تنه لوړپوړي چارواکي په یوې ټکسي کې سپاره شو. دا چې زه په هسپانیوي ژبه پوهېدم مخ کې څوکۍ کې کېناستم. له ښیښې مې بهر کتل، په یو ځای کې پر یوې لوحې د یوه سړي انځور رانښکاره شو، پراخه ټنده او روښانه سترګې یې ښکاریدې، خولۍ یې کږه په سر کړې وه، ما وپېژنده، همدا د پانامې نوی اتل و او عمر طوریجو Omar Torrijos نومیده. ما سفر ته دخپل معمول له مخې چمتوالی نیولی و، یعنې د بوستون د عامه کتابتون د ریفرنسونو برخې نه مې پوره ګټه اخیستې وه. زه پوهېدم چې طوریجو ولې په خلکو ګران دی، یو لامل یې دا و چې د پانامې د خپلواکۍ او پر کانال د خپلې واکمنۍ کلک پلوي وو. ده ژمنه کړې وه چې په خپل حکومت کې به پانامه له شرمیدلي تیندکه حتمن خلاصوي.

پانامه تر کانال کیندلو دمخه د کولمبیا برخه وه، په همدې وخت کې مشهور فرانسوي انجینر فردینانت لیسپس پرېکړه وکړه چې د منځنۍ امریکا په خاکنا کې به یو نهر کني او له دې لارې به اتلانتیک سمندر له اقیانوس سمندر سره تړي. ۱۸۸۱ ز کال کې فرانسوي انجینر په دې سترې پروژې کار پیل کړ او په همدې وخت کې له پرلپسې ستونزو سره مخ شو. بالاخره دا پروژه په ۱۸۸۹ ز کال کې د مالي ستونزو له امله ودریده، دا ناکامي په خپل ځای خو له همدې امله تهیودر روز ویلټ یو بل خوب ولید. د شلمې پېړۍ په پیل کې د امریکا متحده ایالاتو له کولمبیا یوه غوښتنه وکړه. دا

غوښته د یوه تړون وه چې له مخې به یې خاکنا د شمالي امریکا یوه کنسرسیوم ته سپارل کیږي، خو کولمبیا دا غوښتنه رد کړه.

دا د ۱۹۰۳ ز کال خبره ده چې ولسمشر روز ویلټ د ناشوایل په نوم یوه پوځي بیړۍ هلته ولیږله. پوځیانو د ځايي پوځ یو قومندان وواژه، پانامه یې یو خپلواک هیواد اعلان کړ او یو لاسپوڅې حکومت یې رامنځته کړ. د پانامې کانال لومړي تړون لاسلیک شو، له مخې به یې د کانال دواړو خواو ته یو امریکایي زون (ساحه) رامنځته کیږي، د امریکا پوځي مداخلې ته قانوني رنګ ورکړل شو او په عملي توګه په دې خپلواک هیواد امریکا قابضه شوه.

د حیرانتیا خبره دا ده چې پر تړون د امریکا د بهرنیو چارو وزیر HAY او یو فرانسوي انجینر فلپ بناو واریلا هم لاسلیک کړی و، چې دا خپله د اصلي تیم (ډلې) غړي هم وو. د پانامې د یوه وګړي لاسلیک هم پرې نه و، اصلي خبره دا ده چې پانامه په شین زور له کولمبیا جلا شوه، لامل یې دا و چې دوی تړون وکړي، د امریکا لاس پوځي شي او دا تړون په اصل کې د یوه امریکایي او فرانسوي تر منځ شوی و. که تېر وخت ته وګورو نو دا ښکاري چې پیل یې هم یوه معجزه غوندې وه. ۱

تر نیمې پېړۍ ډېر وخت د پانامې په تورو او سپینو هغه د ګوتو په شمېر پانګوال واکمن وو چې امریکا سره یې نږدې اړیکې لرلې. دا کیڼ لاسي چارواکي وو، هر هغه ګام یې پورته کړ چې د امریکا ګټې یې تضمینولې. د لاتینې امریکا دچارواکو په څېر د پانامې چارواکي هم له واشنګټن سره جوړ وو او د امریکا د ګټو لنډه معنا د هر هغه حرکت ځپل وو چې د کمونیزم ورم ترې خاته. پر دې سربېره نیمه نړۍ کې په کمونیزم ضدو حرکتونو کې ای ایس ای او NSA مرسته کوله. له لویو سوداګریزو امریکایي شرکتونو ( لکه

راک فیلر ستنډرډ ایل کمپني، یونایټډ فروټ...) سره مرسته کول هم ددوی مسئولیت و. دې حکومتونو فکر کاوه چې که له خپل ملت سره مرسته وکړي، هغوی به له اقتصادي پلوه ښه، په خیټه ماړه شي او له احتیاجه خلاص شي؛ نو دا به ګني د امریکا د ګټو ضد خبره وي.

ددې خدماتو په بدل کې د پانامې حکمرانې طبقې په ډېرو ډالیو او امتیازاتو نازول کېدې. پانامې په ۱۹۰۳ ز کال کې خپلواکي اعلان کړه او تر ۱۹۶۸ ز کال پورې امریکایي پوځونو څو څو ځله د ددې کورنیو د ګټو ساتلو لپاره د هیواد په ملکی مسایلو کې مداخله وکړه. هغه وخت ما په اکوادور کې کار کاوه، چې د پانامې په تاریخ کې ناڅاپي بدلون راپیل شو، د یو انقلاب په لړ کې د پانامې د وروستي آمر ارنلفوآرایس حکومت چپه شو او عمر طوریجو د ولسمشر په توګه راڅرګند شو. ده خپله په انقلاب کې عملي ونډه نه وه اخیستې. ۲

د پانامې په ټیټې او منځنۍ طبقو کې طوریجو ته په درنه سترګه کتل کېدل. خپله هم د سینټیا په یوه کلي کې رالوی شوی و او له مور او پلاره یې زده کړې کړې وې. د ملي ګارد په کرښو کې یې چټک پرمختګ وکړ. نیشنل (ملي) ګارډ د پانامې لومړی پوځي یونټ و چې ۶۰ مه لسیزه کې په غریب ولس کې ډېر مشهور شو، له بیوزلو خلکو سره د ډېرې خواخوږۍ له امله د طوریجو شهرت پیل شو، هغه به په کوڅو کې ګرځېده او عامو خلکو سره به یې لیدل، سیاسیونو هغو ځایونو ته د تللو فکر هم نه کاوه. اوزګارو خلکو سره به یې د کار په پیدا کولو کې مرسته کوله او زیاتره به یې له خپله جیبه هغو کورنیو سره مرسته کوله چې ناروغي یا بله کومه ستونزه به یې لرله. ۳

له ژوند سره ده مینه او بیوزلو سره مرسته یې یوازې تر پانامې محدوده نه

وه، بلکې له پولو هم اوښتې وه، ده ویل چې که څوک د کومې ستونزې له امله ددوی هیواد ته راځي نو بې له عقیدوي توپیره به تابعت ورکول کیږي. په دې کې د دواړو سیاسي افکارو خلک شامل وو. د چیلي د پینوشي مخالفین چې کیڼ اړخي وو او د کاسترو ښي لاسې مخالفه ګوریلا ډله دواړو ته دلته پناه ورکړل شوې وه. ډېرو خلکو دا د امن نښه ګڼله. ددې ځانګړنو له امله طوریجو په نیمه کره کې ډېر زیات مشهور شوی و. ورو ورو یې دا شهرت پسې زیاتېده او طوریجو یو داسې مشر و چې خپل ژوند یې شخړو حل کولو ته وقف کړی و. دې مخالفتونو د لاتیني امریکا هیوادونه د یو بل پر ضد درولي وو. مثلاً هنډوراس، ګونټې مالا، آل سولیډرو، انکاراګوا، کیوبا، کولمبیا، پیرو، ارجنټاین، چیلي او پیراګوی.

د طوریجو وړوکې هیواد یوازې دوه میلیونه نفوس درلود او د ټولنیزو اصلاحاتو یوه بېلګه وه. دا هغه انسان و چې نړیوال رهبران یې له یوه نوي جوش او ولولې سره بدل کړل. په دې نړیوالو رهبرانو کې د قذافي په څېر امپراتور هم و او تر څنګ یې هغه خلک هم وو چې د شوروي اتحاد د وېشلو نقشې به یې جوړولې. ۴

په پانامه کې مې دا لومړی شپه وه، ترافیکي اشارې ته ودریدو، پورته په لوحه ددې شخص تصویر راځړېده او سترګې یې ماته نیولې وې. زه ترې ډېر زیات اغېزمن وم، ښایسته، زړور او زړه راښکونکی شخصیت و. په بوستون کتابتون کې مې چې څومره وخت تېر کړ په دې خبره پوه شوم چې دا شخص په خپلو باورونو ډېر کلک ولاړ دی. په خپل تاریخ کې یې دا لومړی ځل و چې پانامه د واشنګټن یا بل هیواد برخه نه وه. طوریجو د چین او شوروي هېڅ یوې خبرې ته غاړه کېښنوده. په ټولنیزو اصلاحاتو یې باور درلود، چې له دې لارې یې بیوزلو خلکو سره مرسته کول غوښتل. خو

خانګړې خبره پکې دا وه چې له کمونیزم سره هم ډېر جوړ نه وو. په دې او کاسترو کې یو توپیر دا وچې ده له امریکا خپلواکي غوښته خو د هغو له مخالفینو سره یې ملګري نه کوله.

په بوستون کتابتون کې مې یوه داسې ځانګړې مجله هم تر سترګو شوه چې طوریجو یې بیل ډول شخصیت معرفي کړی و. مجلې ویلي وو چې طوریجو د امریکا د زبرځواکۍ د لیوالتیا په ختمولو د لاتیني امریکا هیوادونو تاریخ بدلولای شي. لیکوال پیل له Manifest Destiny کړی و، دا نظریه په ۱۸۴۰ ز کال کې په امریکایانو کې ډېره مشهوره وه او منځپانګه یې دا وه چې د شمالي امریکا فتح د الله تعالی لخوا ټاکل شوی تقدیر دی. دا د انسان نه؛ بلکې د خدای پرېکړه ده چې اندین (ځایي اوسېدونکي)، ځنګلونه او مېښې له منځه یوړل شي. پردې سربېره د سیندونو مخې تاوول او له مزدورانو او طبیعي سرچینو یې استثمار هم ددې الهي پرېکړې یو جز ګڼل کېده.

دې لیکنې زه اړ کړم چې ټولې نړۍ ته د امریکا د لید په اړه فکر وکړم. په ۱۸۲۳ز کال کې ولسمشر جیمز مونرو د Monroe Dectorine نظریه وړاندې کړه، پر دې یې ګام واخیست او دویم قدم یې د تقدیر لیک Manifest Destiny نظریه شوه. له ۱۸۵۰ نه تر ۱۸۶۰ کلونو پورې له همدې نظریې ګټه پورته شوه او له مخې یې وویل شول چې په ټوله نیمه کره د امریکا ځانګړی حق دی. دا هم پکې راغلي وو چې که په منځنۍ او شمالي امریکا کې کوم هیواد دا پالیسي ونه مني برید پرې کېدای شي. تیډي روز ویلیټ د همدې نظریې له مخې په ډومنیکن جمهوریت او وینزویلا کې د مداخلې جواز ترلاسه کړ. بلاخره له کولمبیا د پاناما تش په خوله (خپلواکي) هم د همدې نظریې پایله وه. تر دې وروسته د امریکا د

جمهور رئیسانو یوه بله لړۍ پیل شوه، دوی هم په همدې نظریې د عمل په ترځ کې د دویمې نړیوالې جګړې تر پایه خپل بین الامریکایي فعالیتونه بشپړ پراخه کړل. د شلمې پیړۍ په وروستۍ نیمایي کې چې امریکا له کمونیزم نه خطر احساس کړ همدغه نظریه یې په ټوله نړۍ کې خپره کړه چې ویتنام او اندونیزیا یې د یادونې وړ هیوادونه دي. ۵

اوس داسې ښکاریدل چې د امریکا په لاره کې یوازې یو کس ولاړ دی. زه پوهېدم چې دا لومړی کس نه دی. تر دې مخکې کاسترو او آلینډې هم همداسې کړي وو. خو د طوریجو ښه والی دا و چې له کمونیزم نه یې جلا کار کاوه او دا دعوه یې هم نه کوله چې دده خوځښت (تحریک) ګني کوم انقلاب دی. ده به ساده خبره کوله چې پانامه خپل حقونه لري او یو حق پکې پر هغه کانال واک دی چې همدا هیواد او ددې هیواد خلک یې په دوو برخو ویشلي دي. تر څنګ به یې دا هم ویل چې ددوی حقونه هم د امریکا د حقونو هومره قانوني او سپېڅلي دي.

طوریجو په دې هم نیوکه کوله چې د کانال دواړو خواو ته پرته امریکایي ساحه کې یو ښوونځي او یوه پوځي اکاډمي جوړ شوي او له کلونو راهیسې پکې د لاتینې امریکا د چارواکو اولادونو ته د زده کړو بلنه کیږي. له شمالي امریکا بهر بله داسې هېڅ اداره نشته چې ددې ادارو سیالي دې وکړای شي. دلته دوی ته د جګړو، پوځي ماموریتونو او وسلو روزنه ورکول کیږي. موخه یې دا وه چې کمونیزم سره مبارزه وکړي او خپل د نفتو شرکتونه او نورې پانګې خوندي وساتي. دوی ته دا فرصت هم ورکول کېده چې له لوړپوړو امریکایي چارواکو سره نږدې اړیکې جوړې کړي.

دې اسانتیاوو ته له څو شتمنو کورنیو پرته، د لاتینې امریکا ټولو وګړو په بده سترګه کتل. ددې ادارو په اړه ویل کېدل چې وژونکې ډلې (Death

Squad) او ځورونکي (Torturers) روزي او همدا خلک بیا د نړۍ په ډېرو ملتونو کې دله ایز نظامونه رامنځته کوي. طوریجو ښکاره اعلان وکړ چې د پانامې د کانال په څنډو کې داسې روزنیزې اداري نه شي زغملای. ٦

د ښایسته جنرال څېره او ترې لاندې لیکل شوی شعار مې چې ولیدل نو په زړه مې ویره ننوته.

شعار و چې:

( د عمر فکر خپلواکي ده او تر اوسه داسې توغندی نه دی جوړ شوی چې فکر ووژني.)

ما فکر کاوه چې په شلمه پېړۍ کې لا د پانامې کیسه پای ته نه ده رسیدلې خو طوریجو کوم ستونزمن یا غالباً د یوې غمیزې حالت ته روانه کړې وه.

له ترافیکي اشارې چې تېر شو په خپل موقف مې فکر وکړ، زه دلته د یوه ترون پوره کولو لپاره راستول شوی وم. دا ترون په راتلونکي کې د MAIN لومړی ستر حقیقي پرمختیایي ماسټر پلان و. ددې پلان له مخې به دې واړه هیواد کې نړیوال بانک، نړیوال پرمختیایي بانک او USAID ادارو ته د میلیونونو ډالرو د پانگونې جواز په لاس ورته. دا یو دام و چې پکې به ښکیل کېدو وروسته به پانامه په پورونو کې ډوبېده او بېرته به خپل لاس پوڅي حالت ته ستنیدله.

تیکسي چې روانه شوه د جرم د احساس یوه قوي څپه راباندې راغله، خو زر مې په شا وتبموله. اوس مې د څه پروا لرله؟ د جاوا په معامله کې مې لاس اورد کړی و. ځان مې پلورلای و ... اوس مې نو د ژوند جوړولو له ټولو فرصتو ښه گټه اخیستی شوه. په یوه څپه کې زه ښه مشهور، شتمن او واکدار کېدای شوم.

## حوالې

۱ د لا ډېرو معلوماتو لپاره لاندې کتابونه ولولئ:

- "The path Between the Seas: The Creation of the panama canal ۱۸۷۰-۱۹۱٤"- David Mc Cullough.
- "Protrait of the Panama Canal: From construction to the Twenty-First Century: William Frair.

۲

اپریل میاشت ۱۹۵۸ مخ "Zapta Petorbeum Corp." "Fortun" ۲۴۸.

- "Initiative in Enegry: Dresser industries, inc, ۱۸۸۰-۱۹۸۷" Darwin Payne.
- Inside job: The Looting of America's savings and loans"- Stere pizzo.
- "Dark Alliance: The CIA, the Contras, and the Crack Cocaine Explosion"- Gary Webb.
- "They Will Be Done, The conquest of the Amazon: Nelson Rockfeller and Evangelism in the Age of Oil"- Gerard Colby Charlotte Dennet.

۳

- "The Memoirs orf Manuel Noriega, America's prisoner"- Manuel Noriega with Peter Eisner.
- "Omar Torrijos herrara, Ideario.
- "Conversations With the General" – Graham greene.

٤

- "Conversations with the General" – Graham Greene.
- "The Memoirs orf Manuel Noriega, America's prisoner". Manuel Noriega with Peter Eisner.

٥

- " A Language Older then words" Dirrick Jensen.

٦ د ۴ شمېرې لاندې ياد شوي کتابونه.

## يوولسم فصل

# پانامه د قزاقانو پر وړاندې

په سبا راته د پانامې حکومت يو کس د چکر راکولو لپاره راواستاوه. نوم يې فيډل و او په ما دستي ښه ولګېد. دا لوړ دنګ سړی په ليدو کې ښه درون او خوداره انسان معلوميده. پلار نيکه يې له بوليور سره يو ځای د هسپانيې پر ضد د خپلواکۍ جګړه کړې وه. ما ورته وويل چې تامسن پين مې خپلوانو کې راځي. بيا يې راته وويل چې Common sense کتاب يې په هسپانوي ژبه لوستی دی نو زه ښخي احساساتي شوم. هغه انګليسي ويله خو چې پوه شو زه يې په مورنۍ ژبه ( هسپانوي) رواني خبرې کولای شم، نو احساسات يې د ليدو وړ وو.

راته يې وويل: (ستا ډېر هيوادوال له کلونو دلته اوسيدلي خو زموږ ژبه يې يو ټکی هم نه ده زده کړې.)

فيډل زه د ښار خوشالو سيمو ته بوتلم، دا ځای يې نيوپانامه باله. لوړې ښيښه يې ودانۍ مو چې وليدې نو فيډل راته کړل، دلته نړيوال بانکونه دومره ډېر دي چې په ريو ګرينډې (د مکسيکو جنوب ته پروت هيواد) کې به هم دومره نه وي.

بيا يې زياته کړه: زموږ هيواد ته زياتره خلک امريکايي سويټزر لنډ وايي، ښايي همدا لامل وي چې له خپلو اړوندو خلکو ډېرې پوښتنې نه کوو.

مازيګر چې لمر په بحرالکاهل کې ډوبيده نو موږ په هغه لار واچول چې د خليج له لوړو ژورو سره ښنګ په ښنګ روانه وه او لويو بيړيو پکې لنګرونه اچولي وو. ما فيډل وپوښته چې په کانال کې څه خبره ده؟

هغه موسکی شو: دلته هر وخت دا حال وي، اوږده قطارونه نوبت ته ولاړ

وي. نږدې نیمایي بیړۍ یا جاپان ته ځي یا ترې راځي، له امریکا هم یو څه ورزیات.

ما ومنله چې دا راته یو خبر دی.

بیا یې وویل: زه ورته ډېر حیران نه یم، ځکه د شمالي امریکا خلک د نړۍ په اړه ډېر نه پوهېږي.)

بیا یو ښایسته پارک کې تم شو، له لوحې داسې ښکاریدل چې دا یوه کلا وه او دې کلا ښار د انګلیسي قزاقي جنګیالیو له یرغله خوندي ساته. یوې کورنۍ د مانښامنۍ میلې چمتوالی کاوه. په کورنۍ کې مور، پلار، زوی او لور وو، تر څنګ یې یو بل سپین ږیری سړی هم و چې د ماشومانو نیکه ښکاریده. ما چې ددې خلکو اطمینان ته وکتل نو په ما کې یې هم یو اطمینان راپیدا کړ. مور چې ورنږدې شو مېرمن او خاوندیې موسک شول او په انګلیسي یې راته ښه راغلاست وویل. ما ترې وپوښتل چې سیالانیان یاست؟ سړی موسکی شو او راپاڅیده.

په ډېر فخر یې څرګنده کړه چې (زه اوس د کانال په ساحه کې د درېیم نسل استازی یم. د کانال له جوړیدو درې کاله وروسته مې نیکه دلته راغلی و، هغه به د کچرو او تیکټر په مرسته بیړۍ کش کولې ، بیا یې پاخه عمر سړي ته اشاره وکړه، دا مې پلار دی، انجینر و او زه هم د همده په پله روان یم.)

ښځې له خپل خسر او ماشومانو سره په کار کې مرسته کوله، تر شا یې سور لمر په شنو اوبو کې ډوبیده، دیر ښایسته او زړه راښکونکی منظر و، ماته یې د مونیټ Monet انځورګري رایاده کړه، ما ترې وپوښتل چې تاسو امریکایي وګړي یئ؟

په حیرانتیا یې راوکتل ویې ویل: (بالکل ! د کانال ساحه (کېنال زون) د

امريکا سيمه ده.) هلک رامنډه کړه، پلار ته يې وويل چې ډوډۍ تياره ده.
(ستا زوی به د څلورم نسل استازيتوب کوي؟ ) ومې ليدل چې لاسونه يې د
دعا په انداز اسمان ته پورته کړل او ويې ويل: (زه هره ورځ دعا کوم چې
خدای ده ته هم همدا فرصت ورکړي، په زون (کانال زون) کې ژوند ښکلی
دی.) بيا يې لاسونه ښکته کړل او د فيډل سترګو ته يې وکتل: (زه هيله
من يم چې نيمه پيړۍ خو به پرې موږ واکمن يو، دا د طوريجو په نوم
ټولواک ډېر خطرناک دی، ډېره کيسه يې راخيستې ده.)
اوس زه بايد زه تللی وای، په هسپانوي ژبه مې ورته وويل: (الوداع، زه هيله
لرم چې ته او کورنی دې دلته خوښ اوسئ او د پانامې د تمدن په اړه ډېر
څه زده کړئ.)
په غوسه يې راوکتل : (زه ددوی ژبه نه وايم) همداسې يې خپل زوی خواته
منډه کړه.
فيډل رانږدې شو، زما په اوږه يې لاس کيښود، لږ زور يې ورکړ او ويې
ويل: ډېره ډېره مننه
بېرته چې ښار ته ستانه شو فيډل يوه داسې ځای ته بوتلم چې کارونه يې
ټول خام وو، ويې ويل: دا زموږ تر ټولو بده سيمه ده، خو له دې ځايه به ته
پوه شې.)
په کوڅو کې چټلې اوبه ډنډ وې، زاړه او خام کورونه داسې ښکاريدل لکه له
کلونو زړې کښتۍ چې د چټلو اوبوپه غاړه ولاړې وي. څنګه چې په دې
کلي ورننوتو د پرسيدلو خېټو لرونکو ماشومانو رامنډې کړې، دې سره يو وړم
زموږ موټر ته رانږدې شو. موټر چې روان شوم نو ماشومانو کاکا کاکا راغږ کړ او
د خيرات غوښتو لپاره يې لاسونه را اوږده کړل، دې سره جاکارتا رايادہ شوه.
کورونه په چونه سپين شوي وو، په ځينو يې د زړه نښې رسم شوې وې اود

هلک او نجلی نومونه پرې لیکل شوي وو، خو په ډېرو نورو یې بیا امریکا ضد شعارونه کښل شوي وو لکه: (سور مخو! خپلو کورونو ته لاړ شئ)، (زموږ په کانال کې چټلي مه اچوئ)، ( سام کاکا (انکل) د غلامانو سوداګر)، (نیکسن باید پوه شي چې پانامه ویتنام نه دی). یو شعار پکې داسې و چې زما زړه یې ولړزاوه (د خپلواکۍ په لار مرګ د عیسی علیه سلام لاره ده.) او په دې شعارونو کې بیا ځای پر ځای د عمر طوریجو انځورنو راځړول شوي وو.

فیډل راته وویل: (دا د سکې بل مخ دی، زه رسمي اجازه لرم او ته امریکایي وګړی یې؛ نو کانال ته په تلو کې هېڅ ستونزه نه لرو.) د شنه اسمان په څنډو لا سرخي خپره وه چې د کانال ساحې ته لاړو، ما چې کوم څه غوښتل لیدل هغه لږ لرې وو. ددې ځای شتمني بې سارې وه. لویې سپینې ودانۍ، ښکلي میدانونه، ښایسته کورونه، د ګلف میدان، لویې مغازې او سینما. . . .

فیډل وویل: دا ربښتیا ده چې دلته هر څه د امریکا ملکیت دی. ټوله سوداګري، مغازې، سقاوې، سینګارتونونه، هوټلونه ... یعنې هر څه او دا ټول د پانامې له قوانینو او مالیاتو معاف دي. دلته اوه د ګلف میدانونه دي، ځای په ځای د امریکا پوسټ دفترونه دي، امریکایي ښوونځي او محکمې پکې فعالیت کوي، یعنې ربښتیا دا ده چې دا د حکومت دننه بل حکومت ددی.

(دومره سپکاوی!) له خولې مې بیواکه دا خبره ووتله.

فیډل راوکتل او ویې ویل: (هو! دې حالت ته همدا جمله مناسبه ده) بیا یې د ښار یوې څنډې ته اشاره وکړه (هلته د سړي سر کلنی عاید ۱۰۰۰ ډالره دی او د بیکارۍ کچه یې ۳۰٪ ده او هغه خام کلي ته چې لاړو هلته خو دا

عايد تر زرو هم نه رسيږي او يو نيم پکې چرته په سخته کوم روزګار پيدا کولای شي.)

ما وپوښتل : ( ددې لپاره څه کېږي؟)

په سترګو کې يې غوسه په خفګان واوښته، را وېې کتل، سر يې ټيټ کړ : (مور څه کولای شو؟ زه نور نه پوهېږم خو د طوريجو له لاسه چې څه کيږي کوي، که په دې لاره يې سر ځي بيا به هم دومره کوي چې له وسه يې پوره وي، دا داسې سړی دی چې د خپل ولس لپاره جنګيږي او که يې سر پکې ځي هم دريغ ترې نه کوي.)

مور چې د کانال له ساحې راوتو فيډل راته په خندا وويل: (نځا دې خوښيږي؟) زما ځواب ته په تمه نه شو، زياته يې کړه : (راځه اول به ډوډی وخورو، بيا به درته د پانامې يو بل انځور وښييم.)

## دولسم فصل

# سرتېري او نخاګرې

تر دوډۍ خوړلو وروسته په یوه تیاره کوڅه ننوتو. فیډل مشوره راکړه چې په دې لاره باید پیاده لاړ نه شم: (دلته چې کله راتلې نو تر مخامخ دروازې حتمن په ټیکسي کې څه، دې ځای نه هاخوا بیا د کانال ساحه پیل کیږي.) زه یې د لاس په اشاره پوه کړم.

هغه موټر چلاوه، پراخه ځای له موټرو ډک و، تش ځای یې ولید او موټر یې پکې ودراوه. یو بوډا سړی زموږ خواته راغی، فیډل ورکوز شو، هغه یې په خېټه وټپاوه، بیا یې د موټر په بنیښه یې لاس کېښود، په لاس کې یې ورته یو لوټ ونیوه ورته وویل: (دا ګوره په ما ډېر ګران دی، پام پرې کوه.)

له تمځایه راووتو، کوڅې ته چې ننوتو، ګورم چې کوڅه رڼاګانو په سر اخیستې. دوه ماشومان مو په منډه له څنګه تېر شول. دوه لرګي یې په لاس کې وو چې د ټوپکو غوندې یې یو بل پرې په نښه کول او په خوله به یې ډزې ورسره کولې. یو د فیډل له پښو سره ولګید، ماشوم ودرید، شاته یې وکتل بیا یې په هسپانوي ژبه ښښنه وغوښته.

فیډل خپل دواړه لاسونه د خواړه ماشوم په اوږو کېښودل، ویې ویل: (هېڅ خبره نشته، څه نه دي شوي، خو ته راته دا ووایه چې تا او ملګري دې په څه شي ډزې کولې؟)

بل ماشوم هم راورسیده، له لومړي ماشومه یې خپل دواړه لاسونه داسې تاو کړل لکه د هغه د ساتنې مسئولیت چې ترسره کوي، ویې ویل: (دا مې ورور دی، هر څه چې وشو، پرې خفه یم.)

فیډل په نرمه لهجه وویل: (ته مه خفه کیږه، هېڅ ام نه دي شوي، ما ترې

يوازې دا وپوښتل چې په چا مو دزې کولې؟ زما يادېږي چې يو وخت به ما هم داسې لوبې کولې.)

دواړو ماشومانو يو بل ته وکتل، موسکي شول او مشر يې وويل: (مور د کانال د ساحې جنرال په نښه کړی و، هغه غوښتل مور سره مې بداخلاقي وکي او زه يې ببرته خپل اصلي ځای ته لېږم.)

فيډل د سترګو په کونج کې راوکتل ، ويې ويل: (اصلي ځای يې چېرته دی؟ ماشوم ځواب ورکړ : (خپل کور يې ، يعنې امريکا.)

(ښه ستا مور دلته کار کوي؟)

دواړوماشومانو په ډېر فخر د کوڅې په سر کې يوې روښانه لوحې ته اشاره وکړه: (هو، هلته، په هغه بار (مېکده) کې کار کوي. )

فيډل دواړو ته په لاس کې يوه يوه سکه کېښوده او ورته يې وويل: (اوس ځئ، خو ګوره پام کوئ، رڼا کې لاړ شئ، تياره کې مه ځئ.) دواړوماشومانو منته وکړه او منډې يې کړې.

په تلو تلو کې راته فيډل وويل چې د پانامې ښځو ته د ځان پلورلو (فحاشۍ) اجازه نشته. ددې کار لپاره له بهره ښځې راوستل کيږي. دوی په بار کې کار کولای شي، نڅا کولای شي، خو د ځان پلورلو اجازه نه لري.

موږ يوه بار ته ورننوتو، يوې مشهورې امريکايي سندرې په لوړ غږ د خلکو غوږونه څورول. په دروازه کې څو لوړ دنګ امريکايي پوځيان ولاړ وو. د دريشۍ له نښو يې ښکاريدل چې پوځي پوليس (مليټري پوليس MP) دي.

فيډر يوه بار خواته بوتلم، ستېج مې چې وليد درې ځوانو مېرمنې پرې نڅيدې، له سر پرته يې نور بدن لوڅ و، يوې يې د ماڼو (کښتۍ چلوونکي) خولۍ په سر کړې وه، بلې شنه پوځي اودربيمې يې د (کاوبوای) خولۍ په سر کړې وه. بدن يې زړه راښکوونکی و او ډېر يې خندل. داسې ښکاريدل

چې په خپلو کې کومه لوبه یا په نڅا کې سره سیالي کوي. ددوی موسیقي، نڅا او ستیج ښځی د بوستهون هغو ته ورته و خو یوازې لوڅو بدنونو یې توپیر درلود.

موږ ځانته لار وکړه او یو انګلیسي ویونکې ډلې سره یو ځای شو، که څه هم دوی بنیان او پطلون اغوستی و، خو له ویښتو یې ښکاریدل چې د کانال د ساحې د پوځي اډې اړوند دي. فیډل د یوې خدمتګارې په اوږه لاس کیښود، هغې چې مخ را واړاوه، له خولې یې چیغه ووته دواړه لاسونه یې له فیډل نه تاو کړ. د ځوانانو یوې ډلې ورته په ځیر راکتل، دا کار یې خوښ نه شو او د شکایت په ډول یې یو بل ته سره وکتل. خدمتګارې موږ یوه کونج ته بوتلو او نه پوهیږم له کومه ځایه یې یو مېز اودوه څوکی راپیدا کړې.

موږ چې څنګه په ځای کې کېناستو فیډل راسره په خواکې ناستو دوو کسانو سره په هسپانوي ژبه روغبړ وکړ. ددوی کالیو پوځیانو سره توپیر درلود، نیمه لستوني لرونکې کمیسونه او پرتوګونه یې اغوستي وو. خدمتګارې څو بوتله بیر راوړل اوبېرته لاړه. هغې چې مخ واړوه، فیډل یې پنډۍ زور کړه، هغې مخ را واړوه، ویې خندل او یوه هوایي مچکه (بوسه) یې فیډل ته راولیږله.

ما شاوخوا وکتل او ډاډه شوم چې بار کې شته ځوانان راته متوجه نه دي.

هغوی په نڅاګرو سترګې خښې کړې وې. په خلکوکې زیاتره هغه پوځیان وو چې انګلیسي خبرې یې کولې، ځیني نور خلک هم وو، لکه زموږ په خوا کې ناست خلک چې پانامایي وګړي وو. هغوی له لیرې پېژندل کېدل.

ځیني خلک په څوکیو کې ناست وو او ځینو نورو یې بیا دیوالونو ته تکیه ولاړ وو. دوی نیغ ولاړ وو، لکه د رمې سپی چې تل متوجې وي.

ښځې له مېزونو ګردچاپېره ګرځېدې، کله به د چا په غېږه کې کېناستې،

کله به يې په خدمتګارو چيغې وهلې او کله به يې په نڅا کې سندرې ويلې. کله کله به ستېج ته هم ورتللې، لباسونه يې ښځي تنګ او نري وو،يوې يې ويکټوريايي کميس اغوستی و او نقاب يې هم پر مخ و، يوې بلې يې بيا يوازې نيکر او سينه بند Bikini تړلي وو. دلته د ډېرو ښايسته ښځو د ښکلولو فرصت پيدا کېده. ما ځان سره فکر کاوه چې داسې ځومره ښځو به پانامې ته مخه کړې وي او کومو مجبوريو به خوارانې دلته راوستې وي.

په لوړه موسيقۍ کې مې فيډل نه تقريباً په چيغه دا وپوښتل چې دا ټولې بهرنۍ دي؟ د سر به خوځولو يې هو وکړل، بيا يې خدمتګارې ته اشاره وکړه او ويې ويل: (بې له دې، دا د پانامې ده.) زما په پوښتلو يې معلومات راکړل چې دا نورې ټولې له هاندوراس، السلويډور، نکاراګوا او ګويتمې مالا نه راځي. ما يو پيغور ورکړ چې ټولې مو ګاونډيانې دي، راته يې وويل چې نه دومره نږدې هم نه دي، زموږ په ګاونډيانو کې تر ټولو نږدې يې ستاړکا او کولمبيا دي. هغه خدمتګاره چې مېز يې راته برابر کړی و؛ بيا راپيدا شوه او د فيډل په پنډۍ کېناسته، فيډل يې ملا ورتښنوله ، بيا يې د سر په حرکت ستېج ته اشاره وکړه او ويې ويل:

(کلارئيسا ! زموږ د شمالي امريکا دې ملګرې ته ووايه چې دوی ولې خپل هيوادونه پرېښي دي.) درې نوې نجونې راغلې، په ستېج ولاړو پخوانيو نجونو نه يې خولې واخيستې ، هغوی ستېج نه ښکته شوې او خپل کالي يې واغوستل.

د موسيقۍ سُر بدل شو، نوې راغلې چې ځومره له موسيقۍ سره برابرېدې همدومره يې کالي وتل، کلارئيسا خپل چپ لاس اوږد کړ او ويې ويل: (ستا په ليدو خوشاله شوم) پاځېده او زموږ تش بوتلونه يې ټول کړل زياته يې کړه : (او د فيډل د پوښتنې په ځواب کې به ووايم چې دا نجونې دلته له

وېرې او وږنو راتښتيدلي دي، زه تاسو ته نور بیر راوړم.)
هغه چې روانه شوه فیډل ته مې وویل : (ته يې ښکاره ولې نه وایې چې
دوی دلته د امریکایي ډالرو ګټلو لپاره راغلي دي.)
(سمه ده ! خو ددې خبرې څه ځواب دی چې دا ټولې له هغو ملکونو راغلي
چې فاشست جابرانه نظام پکې پلي دی.)
زما سترګې ستېج ته واوښتې، درې واړو نجونو په کړس خندل او د پلورونکو
خولې يې د فوټبال په څېر هاخوا دیخوا غورځوله. ما د فیډل سترګو ته
وکتل او ومې ول : ( ته خو به ټوکې نه کوې؟)
هغه په جدي لهجه ځواب راکړ، ښخي نه، کاشکې دا ټوکې وای، له دوی
ډېرې يې له خپلو کورنیو بې برخې دي، د چا پلار نشته، د چا ورور نشته، د
چا خاوند نشته او د چا مئین نشته. دوی د مرګ او ځور په غېږه کې رالویې
شوي دي ، اوس ورته دا نڅا او نڅاګري دومره بده خبره نه ده، دوی دلته
پیسې ګټې، بیا به لاړې شي چېرته به نوی ژوند پیل کړي، د چایو کوم
هوټل یا دوکان به جوړ کړي او خپل ژوند به کوي.
بار (میکدې) سره نږدې غالمغال شو، دده پام ور واوښت، ومې لیدل چې
خدمتګارې یوه پوڅي ته ګوته وڅنډله، هغه يې لاس ونیوه او مټ يې پرې
تاو کړ، جینۍ چیغې کړې او په ګونډو شوه. پوڅي په کړس وخندل او خپلو
ملګرو سره يې مستي پیل کړه، ټولو په لوړ غږ خندل، خدمتګارې غوښتل په
خپل خوشې لاس په سرتېري وار وکړي. هغه يې لاس نور هم تاو کړ، د
دردله امله د نجلۍ څېره واوښته.
د ملټري پولیسو منصوبینو دا حالت لیده او غلي ولاړ وو. فیډل پورته شو او
بار خواته يې منډه کړه، زموږ خواته ناست یوه کس يې مخه ونیوله، ورته يې
وویل : (ودریږه وروره ! اوس به هر څه سم شي.)

د ستيج خواته يو لوړ پانامه يي وګړی رانښکاره شو، د پيشو غونډې يې بې له کومه غږه بيا په يو شېبه کې د پوځي سر ته ولاړ و، په يوه لاس يې د پوځي مرۍ ونيوله او په بل لاس يې د هغه په مخ اوبه ور واړولې. خدمتګاره له منځه ووته، ځو نورو پانامايي وګړو پوځي ونيو او بار ته يې اړم کړ، څه يې ورته وويل خو ما وانه وريدل. بيا يې په دومره لوړ غږ وويل چې د موسيقۍ په شور کې مې هم واوريدل، په واضحه يې انګليسي لګيا شو: (تاسو ته دا خدمتګاره جايزه نه ده او اوس خو يوه هم نه شئ لمس کولای، تر څو مو چې پيسې نه وي ورکړي.)

اوس دواړه MP را روان شول. د پانامه يانو ګنې ګونې ته راغلل او ويې ويل : (موږ دی له دې ځايه بوځو) پانامه يي هغه پوځي ځمکې ته ښکته کړ او ورمير يې ورتاو کړ، پوځي له درده تاو شو، پانامه يي وويل :

(ته زما په خبره پوه شوې؟) له لاندې تيټ او لړځيدلی غږ راغی (ښه پوه شوم) بيا يې پوځي هماغو دوو ساتونکو ته ورټيله کړ او په غوسه يې وويل : (له دې ځايه ورکيږه نو.)

## دیارلسم فصل

# جنرال سره خبرې اترې

ددې بلنیک هیله مې نه لرله. د ۱۹۷۲ ز کال ددې سفر په یوه سهار خپل دفتر کې ناست وم، دا دفتر راته د پانامې د برېښنا دولتي شرکت راکړی و. زه له ارقامو سره بوخت وم چې یو کس ورو دروازه وټکوله. ما ورته د راتلو وویل او په زړه کې دې ته خوښ شوم چې له وچو ارقامو مې د پام بدلولو یوه بهانه پیدا کړه. ځان یې د جنرال موټروان راوپېژند او ویل یې چې د جنرال لیدلو ته باید ورسره لاړ شم.

یو ساعت وروسته د جنرال عمر طوریجو مخ ته ناست وم. ساده پانامه یي کالي یې په ځان وو، پطلون او د نیمه لستوڼي لرونکي کمیس، تنۍ یې تولې ترلې وې، قمیص یې خام آبي رنګ و، ځینې ځایونو کې یې ډیزاین نښې ښکارېدې، لوړ دنګ سړی و، د خپلو دومره مسئولیتونو سره بیا هم ډېر مطمئین ښکارېده، په پراخه تنده یې تور ویښتان پراته وو.

زما د اندونیزیا، ایران او ګویتی مالا د سفرونو په اړه یې راته وویل درې واړو هیوادونو سره یې لیوالتیا لرله خو د ایران له شاه محمد رضا شاه پلوي سره یې لیوالتیا ښځي زیاته وه. شاه په ۱۹۴۱ ز کال کې هله واک ته ورسید چې انګلیسانو او امریکایانو یې په ګډه د پلار حکومت په دې تور چپه کړ، چې ګوندې له هټلر سره پټې اړیکې لري. ۱

طوریجو راته وویل: (ته دا منلی شې چې یو ځوک دې د خپل پلار پر ضد دسیسه کې لاس ولري او هغه دې له واکه لیرې کړي؟)

د پانامې ولسمشر ددې پراخه هیواد له تاریخه ښه خبر و. موږ ښایسته شیبه په دې خبرې کولې چې په ۱۹۵۱ ز کال کې د ایران د شاه پر ضد ځنګه

خلک راپورته شول او خپل لومړی وزیر محمد مصدق یې جلاوطنۍ ته اړویسته.

طوریجو او بلکې ټوله نړۍ پوهېده چې د امریکا CIA په محمد مصدق د کمونېزم ټاپه لګولې وه او همدوی شاه هم بیا ځلي واک ته رواست. دا لکه چې په دې نه پوهېده یا به یې یادونه نه کوله چې ددې ټولو تر شا د روز ویلټ چالاکي او مکاري هم پرته وه اودا د استعمار د یوه نوي دور پیلامه وه. د نړیوالې امپراتورۍ د قیام لپاره چې کوم اور کرل شوی و دا یې لومړۍ سپرغۍ وه. دا ټولې کیسې ماته کلاډین کړې وې.

طوریجو خپلو خبرو ته دوام ورکړ : (شاه چې بیا پر واک شو نو څو انقلابي کارونه یې وکړل، ددې کارونو موخه صنعي پرمختګ و چې ایران نوي دور ته ننباسي.)

ما ترې وپوښتل چې د ایران په اړه څومره پوهېږي؟

ویې ویل: (دا معلومات، ساتل زما دنده ده. زه شاه ته په ښه سترګه نه ګورم، ځکه د خپل پلار د ځپلو لپاره بل سره ودریدل ښه نه دي، دی د واک ترلاسه کولو لپاره د CIA لاسپوڅې شو خو اوس چې د خپل هیواد د پرمختګ لپاره کوم کارونه کوي؛ نو که یو څه وخت ژوندی پاتې شي ډېر څه به ترې زده کړم.

( ته فکر کوې چې هغه نه ژغورل کیږي؟)

(دښمنان یې قوي دي)

( د نړۍ تر ټولو ښه ساتونکي به یې هم دفاع ونه کړای شي؟)

په تریخ نظر یې راوکتل : (د هغه په شخصي پولیسو (ساواک) کې ډېر ظالم خلک کار کوي، دې سره یې ملګري نه زیاتېږي او ډېر وخت دوام نه شي کولای.) یوه شېبه غلی شو، بیایې سترګې وګرځولې : (ته د ساتونکو

خبره کوي، زه هم یو څو لرم.) دروازې ته یې لاس ونیو ویې ویل: (ته څه فکر کوې، که ستا هیواد وغواړي چې مانه ځان بیغمه کړي؛ نو دا ساتونکي مې ترې ژغورلای شي؟)

ما ترې وپوښتل چې آیا رښتیا هم داسې خطر احساسوې؟

هغه داسې غبرګون وښود چې زه باید پر خپله پوښتنه پښېمان شوی وی: (ته پوهېږې چې موږ د پانامې کانال لرو او دا معامله تر آربنز او یونایټېډ فروټ ډېره ژوره ده.)

ما په ګویتمې مالا ډېره څېړنه کړې او د طوریجو د خبرې تل ته په اسانه ورسیدم، د سیاسي ارزښت له مخې د یونایټډ فروټ مسئله ددوی د پانامې له کانال سره برابره وه. دا شرکت د اتلسمې پېړۍ په وروستۍ لسیزه کې رامنځته شو، خو ډېر زر د منځنۍ امریکا د قوي شرکتونو په قطار کې ودرید. په ۱۹۵۰ ز کال کې جاکوب آربنز د اصلاحاتو په نامه د ګویتمې مالا ولسمشر وټاکل شو. دا ټاکنه د نیمايي کُرې لپاره د جمهوریت یوه نمونه وګرځېده او خلکو یې تود هر کلی وکړ. په دې وخت کې د ګویتمې مالا له درې سلنه کم خلک د هیواد د اولس سلنه ځمکې خاوندان وو. آربنز ژمنه وکړه چې قحط ځپلي خلک به له دې لوږې خلاصوي، تر ټاکل کېدو وروسته یې په پراخه کچه کرنیز اصلاحات راپیل کړل.

طوریجو بیا خبرې پیل کړې: (غریبې او منځنۍ طبقې په ټوله ګویتمې مالا کې د آربنز کړنې وستایلې، ما هغه خپل اتل (ایډیال) ومانه او په اړه مې یې ډېر فکر کاوه. زه پوهېدم چې یونایټډ فروټ شرکت یې کلک مخالف دی، ځکه هغه خپله د یوه سرسخته او لوی زمیندار شرکت و. په کولمبیا، کوسټاریکا، کیوبا، جمیکاو، نکاراګوا، سانټو ډومینګو او دلته پانامه کې یې

هم داسې ګټې خوندي وې او دا خبره هغه هېڅکله نه منله چې د آربينز له نظرياتو دې زمور په شان نور هيوادونه هم اغېزمن شي.

تر دې وروسته په هر څه پوهېدم. يونايټډ فروټ غوښتل د امريکا ولس او کانګرېس ته دا باور ورکړي چې آربنيز د روسيه کس دی او ګويتې مالا د روسيه د غېږې بچی دی. شرکت د خپلې موخې لپاره د عامه اړيکو يو قوي کمپاين پيل کړ، بلاخره په ۱۹۴۵ ز کال کې د CIA په زور حکومت بدل شو. امريکايي الوتکو په ګويتې مالا ښار بمبار وکړ او د جاکوب آربنز جمهوري حکوت يې نسکور کړ. ددې پر ځای کين لاسی ظالم ديکتاتور کارلوس کاستېلو ارماس واک ته ورسيد.

نوی حکومت د يونايټډ فرو ټ شرکت منندوی و. د منتې په ډول يې ټول رامنځته شوي کرنيز اصلاحات ختم کړل. د بهرنيو سوداګرو په ګټه او عايد يې لګيدلې ماليه ختمه کړه. د پټو رايو شمېرلوطريقه يې بنده کړه او زندانونه يې له خپلو مخالفينو ډک کړل. چا يې چې پر ضد خبره کوله هغه يې وځپل. د شلمې پيړۍ په پاتې کلونو کې چې په ګويتې مالا کې د ترهګرۍ او تاوتريخوالي کومې څپې راغلې؛ تاريخپوهان يې د يونايټډ فروټ شرکت، CIA او ديکتاتور کيستلو له لاسو ګڼي. ۲

طوريجو زياته کړه : (آربنز ووژل شو، سياسي قتل شو او شخصيت يې ووژل شو.) يوه شېبه غلی و، بيا يې کړل : (آمريکايي ولس د CIA دا چټلي څنګه ښه وبلله؟ زه په دومره اسانه نه څم. زما په پوځ کې زما خپل خلک دي.) بيا يې يوه ترخه موسکا وکړه : (په سياسي قتل هېڅ نه کيږي، زما د وژلو لپاره بايد CIA خپله لاس په کار شي.)

موږ دواړه څو شېبې په خپلو فکرونو کې ډوب وو. طوريجو دا چوپتيا ماته کړه، رامخکې شو غلي يې وويل : ( اوس زه بيشتل Bechtel سره مخ يم.)

ددې په اوریدو هک پک شوم، بیشتل د نړۍ تر ټولو ستر او قوي انجینري شرکت او په زیاتره پروژو کې د MAIN شریک دی. ما فکر وکړ چې د پانامې په ماسټرپلان کې زموږ په مخالفینو کې یو دا هم دی.

په حیرانتیا مې وپوښت : ( ته څه ویل غواړې؟)

(موږ غواړو د پانامې یو نوی کانال وکښو، دا کانال به د بحر له سطحې سره برابر وي او هېڅ خنډ Lock به نه لري. سترې بیړۍ به ترې په اسانه تېرېږي. زه باوري یم چې جاپان به یې حتمن مالي مسئولیت پر غاړه واخلي.)

( حتماً، ځکه هماغو له دې کاناله ډېره ګټه اخلي.)

( ته رښتیا وایي، که هغوی یې مالي مسئولیت واخلي؛ نو ښکاره خبره ده چې جوړوي به یې هم.)

ما ځان سره وویل چې د بیشتل کیسه خو ختمه شوه.

بیا یې وویل : (د معاصر تاریخ تر ټولو ستره ساختماني پروژه... ته پوهېږې په بیشتل کې څوک دي؟ نکسن، فورډ او د بوش لاسپوځي ( بوش په ملګرو ملتونو کې د امریکا سفیر و او فورډ د هاوس مانتړي لیډر او د جمهوري غوښتونکو ملي کنوانیسون مشر و) زه پوه شوی یم چې د جمهوري غوښتونکو ګوند واګې د بیشتل کورنۍ په لاسونو کې دي.)

دې خبرو زه ډېر ناآرامه کړم، زه له هغو کسانو وم چې ددې ټول نظام په منځ ته راتګ او دوام کې مې ونډه لرله اوطوریجو له دې نظامه کرکه لرله. خو زه په دې پوهېدم چې طوریجو زما له ونډې ښه خبر دی. زما کاري مسئولیت دا و چې طوریجو قانع کړم. په دې یې باید قانع کړم چې دا پروژه امریکایي شرکتونو ته ورکړي او له نړیوال بانکه ورته پور واخلي. خو زه پدې پوهېدم چې زما ټول منطق له یوه لوی دیوال سره ټکر کیږي او دې سړي سره

مخامخ کېدل اوس حتمي وو.

ما وپوښتل : ( جنرال صیب، زه مو ولې راغوښتی یم؟)

خپل ساعت ته یې وکتل، موسکی شو: (ښه ! راځه چې اوس خپلې خبرې وکړو، پانامه ستا مرستې ته اړتیا لري.)

ما حواس وبایلل : (زما مرستې ته؟ څه درته کولای شم؟)

هغه په خپله څوکۍ کې تکیه ووهله او ویې ویل : (موږ د پانامې کانال بېرته اخلو، خو یوازې دا کفایت نه کوي، موږ باید یو بې ساري ماډل (نمونه) جوړ کړو. موږ باید خپلو ورو ورونو ته دا باور ورکړو چې ددوی غم راسره دی او دا باید سپینه کړو چې زموږ خپلواکي پر موږ د چین، روسیه یا کیوبا احسان نه دی. موږ نړۍ ته دا ښیو چې پانامه یو بامسئولیته هیواد دی، له امریکا سره دښمنی نه کوو، خو دومره وایو چې خپل ټول قوت خپل بېوزله ولس ته وقف کوو.)

بیا یې پښه پر بله واړوله : (ددې کار لپاره باید یو داسې اقتصادي بنسټ رامنځته کړو چې په ټوله نیمه کره کې ساری ونه لري. برښنا! هو برښنا مو پکار ده، خو داسې برښنا چې زموږ لیرې پراته او بېوزله خلک ورته لاس رسی ولري او نرخ یې ټیټ وي، د لار او لېږ د وسایلو په اړه مې هم ورته فکر دی. پردې سربېره کرنه هم د یوه ځانګړي پام غوښتونکې ده، دا ټول کارونه په پیسو کیږي او پیسې به له کومه راځي؟ پیسې به ستاسو وی، د نړیوال بانک او د بین الامریکایي پرمختیایي بانک.

ماته رامخکې شو، زما سترګو ته یې وکتل او زیاته یې کړه : (زه پوهېږم ستاسو شرکت کار غواړي، کار ورته پیدا کیږي، خو د پروژو حجم به یې له اندازې او اړتیا ډېر زیات وي، لکه لویې لارې، بندونه، بندرګاه ... خو زموږ کیسه به لږه بدله وي. ته ماته هغه څه راکړه چې زموږ ولس ورته ربښتیا اړتیا

لري او زه به تاته ددې ټول کار درکړم، چې ته ورته اړتیا لرې.)

ده چې کوم وړاندیز کاوه، ښېخې مې تمه ترې نه وه. دده پلان مې چې واورید هک پک شوم او یوه عجیبه ولوله راکې په څپو شوه. دا خو د هغو ټولو خبرو رد و چې په MAIN کې مو زده کړې وې. دی د بهرنیو پورونو په اړه ښه پوهېده چې موخه یې یوازې د ولسونو پوروړي کول وو. دا مرسته یوازې ددې لپاره کېده چې پانامه د امریکا او سوداګرۍ تر لاس لاندې شي. ددې مرشتو یوازینۍ موخه دا وه چې پانامه د تقدیر د لیک (Manifet- Destiny) په لاره راونه شي او د تل لپاره د واشنګټن او وال ستریټ ګوتو ته ورشي. هغه په دې ښه پوهېده چې زموږ د نظام فرضیه څه ده، دا چې یو واکمن کس خاین او بې ایمانه شي، که کوم څوک داسې پیدا شو چې واک به یې د خپل ولس د ګټې لپاره کاراوه؛ نو دا بیا موږ ته خطر و. دا یو ډول بغاوت و چې د غبرګون یوه لړۍ یې پیل کولای شوه او زموږ نظام یې رسوا کولای شو.

د مېز شاته ناست کس ته ځیر شوم، هغه ډاډه و چې د پانامې د کانال له امله یې قوت درلود او همدې خبرې له یوې اندېښنې او بې باورۍ سره هم مخ کړی و. هغه باید ډېر احتیاط کړی وی. هغه له مخکې هم ځان ددې سیمې د رهبرانو رهبر ګاڼه. که د خپل ایډیال آربنز په څېر ده هم سینه سپر کړې وی؛ نو ټوله نړۍ به ددې ننداره لیدو ته په تمه وه. پوښتنه دا وه چې د امپراتورۍ جوړولو ددې نظام غبرګون به څه وي؟ بلکې اصلي خبره دا وه چې د امریکا غبرګون به څه وي؟ د لاتیني امریکا تاریخ له اتلانو (قهرمانانو) ډک پروت دی.

ما خپلو کارونو ته د جواز لپاره یوه کیسه جوړه کړې وه او کوم کس چې راته مخامخ ناست و هغه غوښتل چې دا کیسه باطله کړي. دې انسان به ډېرې

نیمګړتیاوې لرلې خو بحري قزاق نه و. هغه د هنري مارګن یا فرانس ډریک غوندې کس نه و چې د انګلیسي شاه د لیکونو په لړ کې یې بحري قزاقانو ته جواز ورکړی وی. په لویه لاره دده تر انځور لاندې کنبل شوی شعار ډېر بد نه و چې :

( د عمر فکر خپلواکي ده او په نړۍ کې داسې توغندی نه دی جوړ شوی چې فکر ووژني.)

ټام پین Tom Paineهم نړدې همداسې خبره کړې وه

ما په دې شعار فکر کاوه، زه دا منم چې افکار نه وژل کیږي خو تر شا یې چې کوم ژوندي خلک دی هغوی سره څه کیږي؟ ماسره یوه بله پوښتنه پیدا شوه، که طوریجو باید د شهادت لوړ مقام ترلاسه کړي نو زما کړنلاره به څه وي؟

موږ چې جلا شو؛ نو دواړه په دې پوهېدو چې د ماستر پلان پروژه به MAIN ته ورکول کیږي ، زما کار به دا وي چې موږ د طوریجو له پلان سره سمه بولي ووهو.

## حوالې

۱

- "The Shah's Last Ride: The Fate an Ally" William shwcross.
- "All the Shah's Men: An American coup...." Stephen knizer>

۲ د آربنز، یونایټډ فروټ پر ګویتې مالا د تاوتریخوالی په اړه ډېر څه لیکل شوي دي : لکه

- " A people's History of the United States": Howard zinn
- "For the Record: The United Fruit Company's Sixty-six Year in Gautemala": Diane K.Stanbey
- " The Banana Republic: The united fruit Company"http://www.mayapradise.com/Uflce.html
- "CIA Involved in Guatemala Coup, ۱۹۵٤" http://www.english.up.enn.edu\-afilries\۵۰s\gautemala.html

د بش د کورنۍ د ملوث کېدو پر ثبوت د پوهېدو لپاره :

" Zapata Petrpleum corp". April ۱۹۵۸ "fortune"

## خوارلسم فصل

# د اقتصادي تاريخ لانجمنه دوره

په MAIN کې زه د ارشد اقتصاد پوه په توګه د يوې برخې مشر وم. د مغو ځېړنو او مطالعاتو څارنه هم زما مسئوليت و چې موږ به د نړۍ د اقتصادي وضيعت په اړه کولې. پر دې سربېره مې بايد ځان هم د معاصرې دورې له نويو اقتصادي نظرياتو او ليوالتياوو خبر کړی وی.

په ۱۹۲۰ لسيزه کې ځينې نفتوصادروونکو هيوادونو د اوپيک (OPEC) په نوم يوسازمان رامنځته کړ. موخه يې د نفتو د سترو تصفيه کوونکو شرکتونو ماتول وو. ايران هم پکې يو مهم عنصر و. که څه هم د ايران شاه د خپل ژوند، کورنۍ او واک لپاره له امريکا منندوی و، ځکه همدې امريکا د محمد مصدق په وخت کې مجرمانه مداخله وکړه او د ايران شاه يې وژغوره. له بلې خوا شايد همدې اندېښنې د ايران شاه هم يوه فکر ته اړ کړی وي؛ چې کېدای شي لوبه يې بيا پر وړاندې چپه شي.

د نفتو په پېسو ماړه د څو نورو هيوادنو مشران هم وو، چې له همدې حالت سره مخ وو او ورته وېره يې محسوسوله. د تېلو لويو شرکتونو ته يې (اوه خويندې) (Siven Sister) ويل. دوی هم د تېلو د بيو د کنټرول لپاره يوه جلا تولنه رامنځته کړې وه، چې تر ټولو ډېره ګټه خپل جيب ته واچوي. ددی پر ضد او غبرګون کې د اوپيک په نامه د نفتو د صادروونکو هيوادونو ګډ سازمان رامنځته شو.

۱۹۷۰ کال کې OPEC ډېرې لويې صنعتي ستې په ګونډو کړې. په دې وخت کې د OPEC غړو هيوادونو له خوا د اقداماتو يوه لړۍ پيل شوه چې بلاخره يې سر د تېلو په صادرولو بنديز ته ورسيد. دې سره د امريکا د تېلو

په پمپونو کې د موټرو اوږده قطارونه ودریدل. داسې فکر کېده چې یوه ستر اقتصادی بحران د امریکا خواته مخه کړې ده. د نړۍ زیاترو سترو اقتصادي قوتونو ته دا یوه ستره ضربه وه. ددې سترې ضربې د زیان محاسبه د لږو خلکو له وسه پوره وه.

د تېلو د بحران دا موده د امریکا تر ټولو بدمرغه شېبې وې. د امریکا ولس دانتشار ښکار و، وېره یې په رګونو ننوتې وه، پر ځان یې باور نه درلود. دې ولس د ویتنام په شرمیدلې جګړه کې خوړلې ټپونه ښتل او پر دې ټولو سربېره یې ولسمشر هم استعفا کړې وه. د ولسمشر نېکسن ستونزې تر ختیځې آسیا او واټر ګېټ محدودې نه وې، هغه په داسې ځای کې ولاړ و چې د نړیوال سیاست او اقتصاد یوه نوې دوره ترې روښانه ښکاریده. دې وخت کې داسې ښکاریده،چې د OPEC په ګډون (شپږ وورونه) د قوت خواته روان دي.

ما له دې حالته خوند اخیست، زما روزي که څه هم له کارپوریټوکراسۍ وه، خو ځان سره به مې ویل چې دوی مې باداران ښه ځای ته روان کړي دي. کېدای شي په دې خبره به مې د جرم احساس یو څه قلاریده. ماد تصور په سترګه ټامس پین د OPECپه دې کارونو خوښ لیده.

د تېلو په لیږد چې بندیز ولګید، هغه وخت مو ددې سختي احساس نه کړه. موږ خپل ځو نظریات لرل چې له امله یې موږ پر دیوال لیکل نه شول لوستی. چې اوبه له ورخه تېرې شوې؛ نو موږ ایله پوه شو چې د تېلو تر بحران وروسته مو د اقتصادي پرمختګ کچه د ۱۹۵۰ او ۱۹۶۰ کلونو پر پله ۵۰٪ کمه شوې ده او دا هم د قوي انفلاسیون په بدل کې. هر څه چې وشول له بنسټیزه اړخه بېخی بدل وو. دې سره کار ورک او خلک اوزګار شول. تر ټولو مهمه دا چې د مالیاتو نړیوال نظام ګډوډ شو. د ثابتې تبادلې

بیه Fixed exchange rate بیه له دویمې نړیوالې جګړې وروسته ښه ساتل شوې وه خو اوس هغه هم رالویده.

هغه وخت زما دا عادت و چې ملګرو سره په ناسته کې به مې پر دې موضوع خبرې اترې کولې. ځینو یې ما لپاره کار کاوه چې زما خپل پرسونل هم پکې شامل و. دوی ټول ډېر ویښ او فکري کسان وو. زیاتره پکې ځوانان وو او د روایت له مخې د خپل ازاد فکر خاوندان وو. نور خلک بیا د بوسټون پوهان، د ځایي پوهنتونونو استادان او یو د کوم کانګرس معین هم و. په دې غیر رسمي ناسته کې به موږ زیاتره وخت له دوو تر لسګونو تنو ګډون کاوه، بحثونه به تل خواږه، خوندور او ژوندي وو.

ماسره ډېرې داسې خبرې وې چې نه به مې کولې، زیاتره ملګرو به مې په ډېر فخر د خپلې پوهې او اړیکو خبرې کولې. ما به ددوی د ټولو غورو ځواب د یوه ستر شرکت د هغه ارشد اقتصاد پوه په توګه ورکاوه، چې نړۍ یې لیدلې وه او تل یې د الوتکې په لومړۍ درجه صالون (فرسټ کلاس) کې سفر کړی و. دې سره مې هم ورته د طوریجو په شان سترو خلکو سره د ناستې پاستې خبرې نه کولې او نه مې ورته دا رازونه ویل چې موږ هیوادونه څنګه په خپل جال کې نښلوو. دا ټولې خبرې په یو وخت کې زما د تکبر، ناارامۍ او ذهني انتشار لامل شوې وې.

موږ به چې د (شپږ ورونو) د قوت په اړه خبرې کولې؛ پر ځان به مې ډېر کنټرول کاوه. زه پوهېدم دوی یو هم په دې نه پوهېږي چې کارپوریټوکراسي، ددوی اقتصادي جنایتکار او ګیدړان (Jackals) د پردې تر شا ناست دي او دې وړو قوتونو ته هېڅکله واک په لاس نه ورکوي. ددې خبرې ثابتولو لپاره آربنز، مصدق او په ۱۹۷۴ ز کال کې د CIA په لاسو د چیلي د ولسمشر سلاوادور الاندې حکومت ړنګول یې ښې بېلګې دي. زه

په دې پوهېدم چې د نړيوالې امپراتورۍ دايره راتنگيږي او دا ټول د OPEC د کارونو اغېز و. ما لومړۍ هسې شک کاوه خو وروسته په دې باوري شوم چې دا دايره د OPEC په وسيله تنگيږي.

زموږ د خبرو اصلي محور به زياتره وخت د ۱۹۷۰ او ۱۹۳۰ کلونو د پېښنو ورته والی و. ۱۹۳۰ لسيزه په نړيوال اقتصاد کې د بدلون ښکارندويي وه؛ مثلاً پر دې د فکر کولو طريقه، ددې افکار او د تجزيې لارې. دا هغه دور و چې د کينز KEYNES اقتصادي نظريات په زور کې وو. دا خبره مشهوره شوه چې د بازار په کنټرول او د عامه خدمتونو په چمتو کولو کې بايد حکومت ونډه ولري. اوس هغه پخوانی فکر مړ شوی و چې ويل به يې بازار خپله لاره خپله ټاکي او د حکومت لاسوهنه بايد پکې کمه وي. ۱

د بحران DEPRESSION پابله د NEW DEAL په شکل راڅرگنده شوه او داسې پاليسی عملي شوې چې په مرسته يې د اقتصادي حالت د قابو کولو ليواليتاوې، په مالي معاملو کې د حکومت چټکتيا او د عامه مالياتو ( ماليه، بوديجه، سود) کچه لوړه شوه[1]. ددې تر څنگ همدا حالت او دويمه نړيواله جگړه ددې لامل شوه چې ځينې اداري رامنځته شي؛ لکه : نړيوال بانک، نړيوال مالياتي فنډ او د سوداگرۍ او محصولاتو عمومي تړون:

(Gatt : Genral Agreement on Trade and Tariff) . . . ۱۹٦۰ مه لسيزه ددې دورې مرکزي وخت و، دا دوره هغه وخت هم په گوته کوي چې معاصر اقتصادي نظريات پرېښودل شوي وو او پرځای يې د کينز اقتصادي

---

۱ NEW DEAL : دا هغه پاليسي وه چې د امريکا ولسمشر روز ويليټ په ۱۹۳۳ کال کې د ۱۹۲۹ ز کال د بحران د قابو کولو لپاره عملي کړه. د NEW DEAL کليمه يې ۱۹۳۲ ز کال کې په شيکاگو کې يوه کنوانسيون ته د وينا پر مهال وکاروله. دا يې د ولسمشريزو ټاکنو د کمپاين يو مهم ټکی و. ددې پاليسی له مخې ځينې داسې کارونه وشول چې اغېزې يې په اوږدمهال کې راښکاره شوې؛ خو د امريکايانو له طبيعت سره

نظریات خپلېدل. د کینډي او جانسون په اداره کې اوج ته رسیدلي وو او یوازینی کس رابر ټ میکنامارا و چې په دې تول منظر یې تر نورو ډېر اغېز درلود.

زموږ د بحث پر ډلې د میکنامارا اغېز ژور و. داسې ویلای شو چې میکنامارا به په غیبیانه ډول زموږ په بحثونو کې برخه لرله. موږ دده له شهرت او پرمختګه خبر وو، دا ښاغلی په ۱۹۴۹ ز کال کې د فورډ شرکت د پلان مدیر او په ۱۹۶۰ زکال کې ددې شرکت یوازینی هغه رئیس شو چې د فورډ کورنۍ غړی نه و او څه وخت وروسته کینیډي همدا سړی خپل د دفاع وزیر وټاکه.

میکنامارا د کینز د نظریاتو پر بنسټ د حکومتي اقتصادي پالیسۍ د جوړولو تر ټولو ستر وکیل و. ده د حسابي او ارقامي ماډل په مرسته د ویتنام د جګړې پالیسي، پوځي ډلې او د دوی اړتیاوو سرچینې بیا له سره ترتیب کړې. دده د تېرګرې رهبرۍAggressive leadership شعار د حکومتي چارواکو تر څنګ سوداګرو ته هم یوه نمونه وګرځېده. د پرمختللو ملتونو په اقتصادي ښوونیزو ادارو کې دا فلسفه ومنل شوه. له دې بیا د اجرایه رئیسانو (CEO: Chief Executive officers) هغه ځوانه ډله راووته چې د نړیوالې امپراتورۍ تېرګر سرلاري ( علمبردارن) شول. ۱

موږ به چې پر نړیوال اقتصاد خبرې کولې؛ نو د میکنامارا شخصیت به ډېر ستایل کېده. موږ ته به زیاتره وخت هغه شخصیت مخې ته ودرید چې د نړیوال بانک د مشر په توګه دده پېژندګلوي وه. دا پوسټ یې د دفاع وزارت تر پرېښودو څومیاشتې وروسته اشغال کړی و. زما زیاترو ملګرو به پر دې فکر کاوه چې د میکنامارا شخصیت د نظامي او صنعتي څانګړنو ټولګه وه. هغه د یوه ستر شرکت رئیس و، بیا د دفاع وزیر شو او اوس د نړۍ د ستر

بانک مقتدر مشر دی. د واک په ویش کې دا دومره سخت و، چې خلک ترې وېرېدل خو زه ددې حالت په لیدو ښځي نه حیرانیدم.
اوس چې ګورم نو په تاریخ کې د میکنا مارا تر ټولو ستره شراچوونکې ونډه دا وه چې نړیوال بانک یې په ډېره ستره کچه د نړیوالې امپراتورۍ استازی کړ او دومره لویه کچه تر دې دمه نه وه لیدل شوې. ده یوه بده نمونه پرېښوده. د کارپوریټوکراسۍ اصلې ستنې یې داسې سره په یو ترتیب برابرې کړې چې اوس یې دده ځای ناستي اسانه په یوې سترې نمونې (ماډل) بدلولای شوې. مثلاً جورج شټلز د نېکسن په کابینه کې د خزانې وزیر او د اقتصادي پالیسي جوړونې د کمیسون مشر و او پردې سربېره یې د بیشټل شرکت ریاست هم کاوه. تر دې وروسته بیا د ریګن په کابینه کې بهرنیو چارو وزارت قلمدان هم له ده سره و. همدارنګه کیسپر وین برګر و، دا د بیشټل شرکت معاون و او وروسته بیا د ریګن په کابینه کې د دفاع وزیر شو. د جانسن په وخت کې ریچارد هیلمز د CIA مشر و، د نیکسن په وخت کې په ایران کې سفیر شو، د جورج ډبیلو بوش په وخت کې د دفاع وزیر و، وروسته بیا هالي برټن مشر و او د همدې بوش معاون هم و. یوازې دا نه ده، همدا جورج ډبلیو بوش په خپله د زباپاټا پطرولیم شرکت بنسټګر د نیکسن او فورډ په دورو کې په ملګرو ملتونو کې د امریکا سفیر و او بیا د ولسمشر فورډ په وخت کې د CIA مشر شو.
اوس چې شاته ګورم نو دنیا راته ډېره ساده ښکاري، په ډېرو مسایلو کې مو هغه وخت د نړیوالې امپراتورۍ د رامنځته کولو لپاره زړې حربې وکارولې. په اصل کې کرمټ روز ویلټ موږ ته ډېره ښه لاره راو ودله. ده په بریا ایران کې د یوه جمهور رئیس جمهوري نظام رنګ کړ او پر ځای یې یو ټولواک شاه واک ته ورساوه. هغه وخت موږ اقتصادي جنایتکارو په اندونیزیا او

اکوادور غونډې هیوادونو کې خپلو موخو ته د رسیدو لپاره هڅې کولې. خو ددې پر وړاندې بیا ویتنام یوه بېلګه وه او له دې بېلګې معلومیدل چې پخوانی انداز بېرته خپلول څومره اسان دي.

ددې حالت د بدلولو لپاره د OPEC یوه مهم غړي سعودي عربستان ته سخته اړتیا وه.

## حوالې

۱: "Robert S. McNamara: ۸th Secertary of Defense", Https;/www.defenselink.mil

## پنځلسم فصل

# د سعودي عربستان د پېسو مینځلو قضیه

د ۱۹۷۴ ز کال خبره ده، د سعودي د سفارت یوه کارکوونکي د خپلې پلازمېنې ریاض یو څو انځورونه راوښودل. په یوه انځور کې مې ولیدل چې د اوزو یوه رمه د یوې دولتي ودانۍ په خواکې ګرځي او په پرتو ځخلو کې خوله وهي. ما چې د سفارت له کارکوونکي ددې حالت پوښتنه وکړه نو ځواب یې زه ډېر حیران کړم. هغه راته وویل چې دا د ښار د ځخلو پاکولو تر ټولو ښه وسیله ده.

ویل یې چې : (هېڅ یو قدرمن عرب دې ځخلو ته لاس نه ور وړي، موږ دا کار څارویو ته پرېښې دی.)

زه ډېر حیران شوم، چې د تېلو د دومره لوی صادروونکي هیواد په دولتي ودانۍ کې اوزې ګرځي او ځخلې خوري.

دې وخت کې زه د مشاورینو د هغې ډلې غړی وم چې د تېلو بحران ته یې حل لاره لټوله. دې اوزو په یوه ټکي پوه کړم چې ستونزې ته حل څنګه پیدا کېدای شي.

سیاست او اقتصاد ته د مذهب (دین) ورننوتل، په اصل کې هغه عنصر و چې د تېلو په لیږد یې بندیز لګولی و او لویدیځه نړۍ یې لړزولې وه. د ۱۹۷۳ زکال د اکتوبر په ۱٦ مه نېټه د یهودانو لوی مذهبی جشن ( Yom kippur) و، په همدې ورځ مصر او شام په ګډه پر اسرایلو برید وکړ. همدا جګړه د اکتوبر پیل و. دا د عربو او اسرایلو څلورمه او تر ټولو سخته جګړه وه، همدې جګړې ټوله نړۍ اغېزمنه کړه. د مصر ولسمشر سادات پر شاه فیصل فشار راوړ، ورته یې وویل چې امریکا له اسرایلو ملاتړ کوي او ته د

امریکا پر ضد د تېلو وسله وکاروه. د همدې کال د اکتوبر په ۱٦مه نېټه ایران او سعودي په ګډوڼ څلورو نورو عربي هیوادونو د تېلو بیه ۱۷٪ سلنه لوړه کړه.

د کویټ په ښار کې د عربو د تېلو وزیران سره راټول شول او پر یوه بل متبادل وړاندیز یې فکر کاوه. د عراق استازي په ډېر شد او مد سره خپل دا نظر وړکړ چې امریکا دې په نښه شي. ده د ډلې له هر غړي سره جلا جلا وکتل او ورته یې وویل چې په عربو کې دې د امریکا ټولې ګټې بندې شي، امریکا او هغو متحدینو ته دې یې چې له اسرایلو سره ملګري لري د تېلو په صادرولو بندیز ولګي. تر څنګ دې یې له امریکایي بانکونو د عربو ټولې پیسې راوویستل شي. دده هدف دا و چې د امریکا په بانکونو کې پرتې پیسې که عربان بېرته ترې واخلي؛ نو خلکو نه به د ۱۹۲۹ ز کال اقتصادي بحران هېر شي.

د عربو نور وزیران له داسې انقلابي کړنو وېرېدل، خو بیا یې هم ویل چې یو څه باید وشي، ددې لپاره یې د بندیزونو لړۍ له پنځه سلنه کمې پیل کړه او هره میاشت به زیاتېده، تر دې چې دوی خپلې سیاسي موخې ترلاسه کړي. په دې یې سره هوکړه وکړه چې امریکا ته به د اسرایل دوستانه پالیسی سزا حتمن ورکوي، نو ځکه پرې بندیزونه باید ډېر شي. په دې ناسته کې د ځینو هیوادونو استازو وویل چې د پنځو سلنو پر ځای به لس سلنه کمی راوړي.

د اکتوبر په ۱۹ مه ولسمشر نېکسن له کانګرسه وغوښتل چې اسرایلو سره دې دوه میلیارده ډالر مرسته وکړي. په سبا یې سعودي عربستان او نورو هیوادونو امریکا ته د تېلو صدور بند کړ. ۱

دا بندیز (embargo) د ۱۹۷۴ ز کال د مارچ په ۱۸ مه نېټه ختم شو. ددې لړو شپو اغېز ډېر زیات ژور و. د سعودي د یو بېرل تېلو بیه د ۱۹۷۰ کال د

جنوري په لومړۍ نېټه ۳۹ ډالره وه او څلور کاله وروسته يکې ۸،۳۲ ډالره زياتوالی راغی. (۲) سياسيونو او اينده سنجوونکو هغه سبق هېر نه کړ چې د ۱۹۷۰ ز کال په پيل او منځ کې ورکړل شوی و خو بلاخره پابله دا شوه چې دې ژور ټکان کارپوريټوکراسي لاپسې ځواکمنه کړه.

د دې درې واړه ستنو ( لوی شرکتونه، نړيوال بانک او حکومت) تر منځ اړيکې په بې ساري ډول پخې شوې او يو تلپاتې اتحاد يې رامنځته کړ. ددې بنديز اغېز په چلندونواو پاليسيو کې د بدلون په ډول راڅرګند شو. وال سټريټ او واشنګټن په دې پوه شول چې په راتلونکي کې دا ډول بنديزونه نه زغمل کيږي. د تېلو پر صادراتو ډاډمنيدل زموږ په کاري لومړيتوبونو کې و. ۱۹۷۳ ز کال نه وروسته خو ببخي زموږ د ساه رګ ګرځيدلی و. سعودي د تېلو د بنديز له امله په نړيوال سياست کې ډېر ارزښت ترلاسه کړ او امريکا په دې پوهه شوه چې د خپل اقتصاد لپاره يې سعودي عربستان څومره مهم دی. پر دې سربېره يادو بنديزونو د کارپوريټوکراسۍ رهبران نورو لارو لټولو ته اړيستل چې په مرسته يې د تېلو ګټه د امريکا تر خزانو را ورسوي. دوی پر دې ښه فکر وکړ چې سعودي عربستان نه عصري وسايل (مشينري) لري او نه هم داسې منظمه اداره شته چې له ځمکې راخوټيدونکي تېل په منظمه توګه اداره کړي.

دلته د سعودي لپاره دا شتمني يوازې يو اسماني نعمت و. ملي خزانه يې له ډالرو ډکه وه؛ خو د شتمنۍ دې سيلاب يوه بله ملي شتمني ډوبه کړه او هغه شتمني يې د (وهابيت) عقيده وه چې تر دې دمه پرې کلک عمل کېده. شتمنو عربانو په امريکا او اروپا کې سيلونه کول او د هغه ځای په مشهورو پوهنتونو کې يې زده کړې کولې. ګران بيه موټرې او کورونه يې اخيستل او له لويديځ په را واردو شويو توکو يې سينګارول. سختې

لرغونپرستي عقيدې خپل ځای يوې نوې ماده پرستۍ ته پرېښوده او په همدې ماده پرستۍ کې د تېلو د راتلونکي بحران حل لاره پرته وه. (دا ماده پرستي چې څومره زياته شي د تېلو بحران به ورسره همدومره زر حل کيږي.)

بنديز (embargo) چې ختم شو؛ نو واشنګتن له سعودي سره اړيکې ښې کړې، ټکنالوجيکي مرستې، پوځي وسايل او روزنه او شلمې پېړۍ ته د عربانو ته راوستلو وړانديز. ددې په مقابل کې عربانو دوی ته په تېلو ګټل شوي ډالر (پيټرو ډالر) او دا باور ورکاوه چې په تېلو به بيا ځلې بنديز نه لګيږي.

ددې مذاکراتو په لړ کې يو بې ساری سازمان رامنځته شو. د سعودي عربستان او امريکا ګډ اقتصادي کميسيون Uninted states/Saudi Arabian Join Economic Commission چې (JECOR) به يې باله. ددې کې يو بې ساری وړانديز وشو، دا وړانديز شته بهرنيو مرستو د پروګرام برعکس و. اوس به د سعوي له دولته امريکايي اداري په مزدوری اخيستل کيږي، چې په سعودي کې بيارغونه وکړي.

که څه هم ددې کميسيون اداره او مالي ملاتړ د امريکا د ماليې وزارت په لاس کې و، خو بيا يې هم بشپړه خپلواکي لرله. دې اداري بايد په پنځه ويشتو کلونو کې ميلياردونه ډالر لګولي وای او د خوند خبره دا ده چې په دې پېسو کانګرس هېڅ واک نه درلود.

دا چې په دې پېسو کې د امريکا يو سينټ هم نه مصرفيده؛ نو د امريکا د ماليې وزارت د ناڅيزه ونډې سره بيا هم کانګرس پکې کار نه درلود. ډيويډ هولډن David Holden او ريچارډ جانز Rechard johns چې JACOR ښه وڅېړه؛ نو ويې ويل چې: (امريکا چې تر اوسه مخ پر ودې هيوادونو سره

کوم ترونونه کړي دي، دا يې بېخي بدل او د اوږدمهالو اغېزو پر بنسټ جوړ شوی دی. په دې تړون کې دا ورتيا شته چې په مرسته يې امريکا په سعودي عربستان کې خپلې رينښې وځغلوي او له امله يې د (ګډ انحصار) فکر لا پسې ځواکمن شي.) ۳

د امريکا د ماليې وزارت ددې تړون په لومړيو کې MAIN شرکت له ځان سره د مشاور په توګه ملګری کړ. زه يې وغوښتم راته يې ووېل چې کار او مسئوليت دی ډېر ظريف او مهم دی، زه چې څه کوم او له کومې خبرې خبرېږم؛ نو د يوه راز په توګه يې بايد وساتم. ما چې مسلې ته له کومې زاويې کتل دا راته د غلا يوه پېښه ښکاريده. هغه وخت باور راکړل شوی و چې MAIN پکې يوازې يو مهم مشاور شرکت دی. خو وروسته پوه شوم چې د MAIN په ګډون د سلګونو نورو خلکو له کار او زياره ګټه اخيستل کېده.

دا چې هر څه پټ وو، زه په دې نه پوهېدم چې د حکومت او نورو مشاورو ادارو تر منځ څه خبرې شوې دي. زه نه پوهېدم چې په دې مسئله کې زما ونډه څومره ده؛ خو په دې پوهېدم چې د اقتصادي جنايتکارو کار معيار پکې بېخي جلا دی. ورسره په دې هم پوه شوم چې د نړيوالې امپراتورۍ د پراختيا لپاره د پخوانيو پر ځای څو نوې او بې سارې حربې کارول کيږي. زه پوهېدم چې زما له څېړنيزې مطالعې چې کومې پايلې اخيستل شوې هغه ګټورې دي او MAIN پرې په سعودي عربستان کې ښه غوړه پروژه ترلاسه کړه. وروسته په همدې کال کې په يوې سترې جايزې هم ونازول شوم.

زما کار وړاندوينه وه، ما بايد ويلي وای چې که د سعودي عربستان په دومره لويه شتمنۍ پانګونه وشي؛ نو پايله به يې څه وي؟ او دومره ډېرې پيسې بايد د کوم پلان له مخې ولګول شي. يعنې ماته ويل شوي وو چې د خپلې تخليقي وړتيا په مرسته بايد سعودي عربستان ته د ميلياردونو ډالرو د لېږد يو

منطقي جواز وړاندې کړم. دې ته مې هم باید پام کړی وای چې د امریکا ساختماني او انجینري شرکتونه په کار کې شریک شي. ځانګړی هدایت راته دا وشو چې ټول کار باید یوازې زه وکړم او په دې برخه کې په خپل پرسونل هم باور نه شم کولای. زه یې له خپل ډیپارټمنټ نه جلا، څو پوړه پورته د کنفرانس خونې په یوه کونج کې کېنولم او وروستی ګواښ راته دا وشو چې کار مې په ملي سلامتی او د MAIN په ډېرو سترو ګټو پورې تړلی دی.

زه په دې پوه شوم چې اصلي موخې له معمول هغو سترې دي. دلته موخه یوازې د یوه هیواد پوروړي کول نه وو؛ پلان دا و چې د (پیټرو ډالرو) لویه برخه باید بېرته امریکا ته وګرځي. دې کار سره به سعودي عربستان راته رانږدې شي. پراخېدونکی اقتصاد به یې زموږ له اقتصاد سره ګډ شي او تر ټولو مهمه دا چې زموږ انحصار به پرې ډېر شي. پر دې سربېره به د لویدیځ په رنګ کې رنګ شي، زموږ چلند به ورسره خواخوږی وي او دوی به زموږ په نظام کې جذب شي.

ما چې کار پیل کړ، ځان سره مې فکر وکړ چې د ریاض په کوڅو کې ګرځېدونکې اوزې به ددې معاملې سبمولیکه کونجي ثابته شي. دا اوزې په اصل کې د عربانو خوږه (ټېپي) ګوته وه. که دا صحرایي امپراتوري غواړي عصري دور ته ننوځي نو ددې اوزو پرځای باید ورته یوه بله آله نصب شي.

زه پوهېدم چې د OPEC اقتصاد پوهانو د تېلو صادروونکو ته مشورې ورکولې، ورته یې ویل چې له خپلو تېلو دې خپل مصنوعات جوړ کړي چې ارزښت یې ورسره لوړ شي. ددې کارپوهانو ټینګار دا و چې یوازې د خامو تېلو کوهیانو ته دې نه کیني؛ خپل صنعتي پرمختګ ته دې هم لږ پام وکړي. له خامو تېلو دې هغه مصنوعات جوړ کړي چې په نړۍ یې وپلوري

او ښایسته ډېره ګټه ترې وکړي.

دې احساساتو زه یوې پالیسۍ ته بوتلم چې پوهېدم د ټولو خلکو به خوښه شي. اوزې خویوازې دننۍ بهانه وه، دې ځای نه کار پیل کېدای شو، موږ د تېلو په پیسو د هغو امریکایي شرکتونو خدمتونه پېرلای شول چې د اوزو پر ځای یې دې خځلو ته یو سیستم نصب کړی وی او سعودي هم ددې ټکنالوجیکي شهکار په لرلو سره خپله سترګه جګولای شوه.

ما فکر کاوه چې د اوزو فورمول خو د عصري ټکنالوجۍ یوه وړه برخه ده. دا فورمول نورو برخو ته هم پراخیدی شوه او په مرسته یې شاهي کورنۍ، امریکا او MAIN ښې بریاوې ترلاسه کولای شوې. زما په نظر له دې فورموله داسې صنعتي سکتور رامنځته کېدای شو چې خام تېل یې تصفیه کړي وای. په وچو دښتو کې سترې چاڼخونې (تصفیه خانې) جوړیدای شوې او ګردچاپېره ترې بیا بې شمېره صنعتي پارکونه زرغونیدای شول. ددې کار لپاره برښنا، لویو لارو، پایپ لاینونو، مخابراتو، ټرانسپورټ، هوایی اډو، بندرونو او بېلابیلو خدماتي شرکتونو ته اړتیا وه، خو ددې ټول نظام د چلولو لپاره ډېره شتمني پکار وه.

موږ دې پلان سره ډېرې لویې هیلې تړلې وې. موږ ویل دا به یوه داسې نمونه شي چې به موږ به یې په جګه سترګه ټولې نړۍ ته وړاندې کولای شو او نورو ځایونو کې به هم دا چارې ترسره کیږي. بیا به څه کیږي؟ په ټوله دنیا کې ګرځېدونکي عربان به زموږ سندرې وایي، د نورو هیوادونو مشران به سعودي عربستان ته رابلي او پرمختګونه به ورته ښیي او بیا به دا رهبران له موږ غواړي چې د هغوی د هیوادونو لپاره هم داسې پلانونه جوړ کړو؛ بیا به نو د OPEC له دایرې دباندې ځینې هیوادونه د نړیوال بانک په پورونو کې ډوب شي او دا به د نړیوالې امپراتورۍ تر ټولو ستر خدمت وي.

زه په همدې فکرونو کې ډوب وم چې د موټروان دا خبره مې تر غوږو شوه:
(هېڅ قدرمن عرب دا خځلې.نه راټولوي.) دا خبره به مې زیاتره ناستو کې اوریدلې وه چې عربان په خپلو خلکو ناوړه (سپک) کارونه نه کوي. دا کار که په کومه صنعتي اداره کې وي او که د کومې پروژې په عملي کولو کې.
لومړۍ خبره دا وه چې د داسې کار کوونکي لږ وو، دویم لامل یې خپل ولس سره د سعودي شاهي کورنۍ هغه ژمنه وه، چې پر دوی به څه ناڅه زده کړې کوي او داسې ژوند به ورکوي چې مزدورۍ ته ورته هېڅ کار به پکې نه ځایږي. په نورو یې دا کارونه کولای شول؛ خو خپله ورته دا کار سپک او ناوړه ښکاریده.
ددې کار لپاره باید له بهره مزدوران راوستل شوي وی، دا کار له هغو هیوادونو شونی و چې خلک یې بېوزله او کار ته محتاج وو، د اړتیا پر وخت د منځنۍ اسیا له نورو او په ځانګړې ډول اسلامي هیوادونو (پاکستان، مصر، فلسطین، یمن.) نه مزدوران راوستل کېدای شول.
دې حالت د پرمختګ پالیسۍ ته ستر فرصتونه ورکړل، دې کارکوونکو ته په لویه کچه هستوګنځایونه پکار وو. تر څنګ یې سوداګریز مرکزونه، روغتونونه، اطفایه، پولیس، اوبه، ښاروالي، برښنا، مخابرات، ټرانسپورټ او نور مهم خدمتونه پکار وو. یعنې په دې دښته کې باید نوي ښارونه اباد شوي وی. د کارونو کمی نه و، خصوصاً د ټکنالوجۍ په برخه کې؛ مثلاً د بحر اوبه تصفیه کول، روغتیا، انټرنټ او نور ستر مرکزونه.
سعودي عربستان د یوه پروژه جوړوونکی د خوب تعبیر کېدای شو. دا د ساختماني او انجینري کاورباریانو لپاره یو خیالي جنت هم ګڼل کېدای شو. د اقتصاد بې شمېره او بې ساري فرصتونه یې لرل. فکر یې هم ښکلی و: یو وروسته پاتې هیواد، ښه ډېره شتمني لري او غواړي عصري دور ته

ننوځي.

ما خو ترې ډېر خوند اخیسته، ستونزه دا وه چې د ماډل (نمونې) لپاره مواد او ارقام نه په سعودي کې وو او د بوسټون په کتابتون کې. خو که د دومره لویې پروژې لپاره ارقام هم وای نو چندانې مرسته یې نه شوه کولای. دا د یوه هیواد بشپړ او بنسټیز بدلون و.

د دومره سترې څېړنې فکر هم چا نه کاوه. ما د خپل فکر له مخې داسې یو راپور ولیکه چې د سعودي راتلونکې پکې روښانه ښکاریده. ځینې عملي نسخې راسره وې د یوه میګاواټ برښنا د لګښت اندازه ترې کېده. د یوه میل سرک لګښت معلومیده، اوبه، مزدوران، ښاروالي خواړه ... دا هر څه مې د هماغو نسخو له مخې محاسبه کړل. زما کار د دقیقو ارقامو وړاندې کول نه وو، یوازې غوښتل مې دومره ووایم چې کوم کارونه کېدای شي او لوی لګښتونه یې څه دي؟

زما اصلي موخې امریکایي کمپنیو ته ډېره ګټه او په سعودي د امریکا انحصار و او دا دواړه موخې یو بل سره تړلې وې. په نږدې وخت کې د ټولو پرمختیایي پروژو لپاره د عملي کېدو لارې چارې او خدمتونه پکار وو او دا پروژې یوازې هماغو شرکتونو کولای شوې چې لومړنی پلان یې جوړ کړی و. اوس باید هماغو شرکتونو ددې حفظ ،مراقبت او بیارغونه کړې وی. زه په دې پوه شوم چې د هرې پروژې لپاره باید دوه لړلیکونه جوړ کړم، یو یې د ساختماني او دیزاین تړون او بل یې د اوږدمهالي حفظ او مراقبت او اداري تړون. په راتلونکو کلونو کې به MAIN، BECHTEL ، Brown and Root ، Halliburton ، Stone and Webster او ډېر نور شرکتونه او قراردادیان ښې ډېرې پیسې وګټي.

تر دې سوچه اقتصادي اړخ ورهاخوا یوه بله کیسه هم وه چې سعودي

عربستان يې موږ ته کینولای شو. د ټېلو په دې شتمن هیواد کې له نوي عصر سره د مخالفت څپه هم راتلای شوه. په لرغونپرستو مسلمانانو کې به غوسه راپیدا شي. اسرایل او نور هیوادونه به ترې خطر احساس کړي. ددې هیواد له صنعتي پرمختګه د یوه بل صنعت رامنځته کېدل اړین وو. د عربو د وچې دفاع ! د امریکا شخصي امنیتي شرکتونو او پوځ د پراخو او اوږدمهالو خدماتي تړونونو تمه لرله. ددوی په راتګ به د ساختماني او انجینري شرکتونو یوه بله کاري دوره پیل شي چې په هغو کې به هوایي ډګرونه، پوځي هډې، د توغندیو ساحې، بیزونه او نور کارونه شامل وي.
ما خپل راپورونه په یوه بند پاکټ کې د مالیې وزارت د پروژې مدیر ته واستول. کله کله به مې د خپل ټیم او د MAIN له رئیس او معاون سره ناسته پاسته کوله. ځکه دې پروژې لا کوم رسمي وجود نه درلود او تر اوسه د څېړنې او پراختیا په مرحله کې وه. دا چې لا JECOR برخه نه وه ګرځېدلې نو موږ به له ټوکو SAMA بلله. ټول پوهېږي چې دا د Saudi Arabian Money Laundering Affairs مخفف دی.
ځینې وخت به دولتي استازي هم راسره وو، دوی به ځینې پوښتنې کولې، زیاتره وخت به ما له خپلو کارونو خبرول، د هغوی په خبرو به مې نظریات ورکول، ډاډ به مې ورکاوه چې تر خپله وسه به هڅه کوم. معاون او دولتي استازي رانه د اوږدمهاله خدماتو او اداري تړونونو له امله ډېر اغېزمن وو، معاون یوه ورځ یو مثال ورکړ، چې بیا به موږ یاداوه، ده وویل: سعودي عربستان هغه غوا ده چې موږ یې تر مانښامه او د خپل کار تر خلاصیدو لوشلای شو. خو ماته به پکې د غوا پر ځای اوزه ذهن ته راتلله.
په ناستو کې پوه شوم چې ځینو سیالو ادارو مو هم کار پیل کړی دی، موږ په تمه وو چې ددې زیار په بدل کې به غوړې پروژې واخلو. ما فکر کاوه

چې MAIN او نورې ادارې به ددې لومړيو کارونو لګښت له خپله جيبه کوي. دوی دا جواري ددې لپاره کوله چې لوبې ته د ننوتلو لاره پيدا کړي. ډېر زر باوري شوم، ځکه ما به د خپلې ورځني کار مصرف له عمومي او اداري حسابه (General and Administrative over head account) نه اخيسته. دا کار به زياتره د هغو پروژو لپاره کېده چې لا به د څېړنې او پراختيا په حالت کې وې. په دې معامله کې لومړنی لګښت ډېر زيات و، خو معاون صيب په دې باور و چې بدل به يې تر دې ډېر زيات وي.

سره له دې چې سيالانو موهم کار کاوه خو موږ پوهېدو چې ميدان ډېر پراخه دی. زه نو په دې لوبه کې پوخ شوی وم او په دې پوهېدم چې زموږ معاوضه په رسمي دفترونو کې زموږ د کار د خوښولو پورې تړلې ده. ډېرې پروژې به هغو شرکتونو ته ورکول کېږي چې پلانونه يې په هر صورت د عملي کېدو وړ وی. ما دا کار ځانته يوه ننګونه وګڼله او داسې يو منظر مې وپنځاوه چې له ډيزاين نه تر ودانيزو چارو پورې ټول پړاوونه پکې شامل وو. په MAIN کې خو مې د بخت ستوری له مخکې لا ځليده، خو که موږ بريالي شوی وای نوپه SAMA کې د کليدی ونډې لرلو به دا ځلا لا پسې ډېره کړې وای.

په ناستو کې به مو دا ويل چې د SAMA او JECOR ماموريت به نوي معيارونه او بېلګې رامنځته کړي. دا يوه بې سارې لار وه، په هغو هيوادونو کې د ګټور کار فرصتونه برابر شوي وو چې نړيوال بانک نه يې پور اخيستو ته اړتيا نه لرله. ذهن ته مې راغلل چې ايران او عراق هم بايد په دې ليست کې ورزيات شي. د انسان فطرت دی چې ددې هيوادونو مشران به له سعودي عربستان اغېزمن کېږي. د ۱۹۷۰ ز کال د تېلو بنديز که څه هم په هغه وخت کې زيانمن و، خو اوس دا خبره پخه ده چې ياد بنديز به

ساختماني او انجينري شرکتونو ته ښې ګټې ورکوي او دا د نړیوالې امپراتورۍ د پراختیا يوه مهمه لاره وه.
په دې خيالي پلان مې اته مياشتې کار وکړ، په خپل کور یا د کنفرانسونو په شخصي خونه کې به يوازې ناست وم، نور پرسونل مې خپل کارونه پر مخ وړل شول خو زه به کله کله خارنې ته ورتلم. د وخت په تېریدو راز داري يو څه کمه شوه، ځینې نور خلک هم پوه شول چې په سعودي عربستان کې کومه خبره شته. اوازې خپرې شوې، د معاون او دولتي کسانو کړۍ هم پراخه شوه، لامل به ښايي دا و چې زموږ ورکړې معلومات به يې نورو سره شریکول.
ددې پرمختيايي پروژو په بدل کې امريكايانو له عربانو غوښتل چې د تېلو عرضه اوبيه دې د امريکا او متحدينو په خوښه وي البته تر ټاکلې حده بدلون پکې راتلای شي. كه نور هيوادونه لكه، ايران، عراق، ونيزويلا... بندويزونه لګوي نو سعودي عربستان بايد د تېلو دا تشه ډکه کړي. ددې هيوادونو د بنديزونو ليرې كولو لپاره همدې كفايت كاوه چې موږ څه پالیسي اختيار كړې ده. ددې كار په بدل كې امريكا سعودي ته يو په زړه پورې وړانديز كاوه، دا سودا څه وه؟ دا باور چې امريكا به سعود کورنۍ سره څرګنده سياسي او د اړتيا پر وخت پوځي مرسته کوي، چې په دې توګه به سعود کورنۍ د تل لپاره په عربستان واكمني كوي.
د سعودي ستراتيژيک موقیعت، پوځي کمی، له ایران، شام، عراق او اسرايلو خطر.... دا ټول هغه لاملونه وو چې سعودي يې دې سودا ته چمتو کاوه. له همدې حالته په ګټه امريكا يو بل درووند شرط کېښود، زه چې اوس ګورم نو وايم سعودي عربستان دا شرط څنګه ومانه؟ هيڅ باور مې نه کېده. شرط دا و چې سعودي عربستان به په خپلو (پيټرو ډالرو) د امريكا رسمي

تضمین لیکونه (Security) پېري. له دې چې کوم سود ترلاسه کېږي هغه به د امریکا د مالیې وزارت په خپله خوښه ددې لپاره کاروي چې سعودي عربستان له منځني دور نه عصري دور ته ننباسي. که ساده یې ووایو نو د امریکا د تېلو په پېسو چې کوم میلیاردونه ډالر سود راځي، هغه به ددې خوب د پوره کولولپاره امریکایي شرکتونو ته ورکول کېږي. همدا خوب ما او ښایي زما سیالانو هم لیدلی و چې سعودي عربستان څنګه عصري دور ته ننوځي. اوس به د سعودي عربستان په لګښت زموږ خپله اداره موږ ته دا امر کوي چې په ټول سعودي عربستان کې سترې پروژې عملي شي او ښارونه اباد شي.

که څه عربانو دا حق درلود چې خپل نظر څرګند کړي، خو د سعودي عربستان د راتلونکې پلان اوس ټول د کافرو انجینرانو په لاس کې و. دا کار په هغه خاوره کېده چې نظام یې د وهابي عقیدې پر بنسټ رامنځته شوی و او کلونه کلونه یې سوداګریز نظام پر همدې اصولو روان و.

دا کار ډېر سخت و خو سعود کورنۍ د امریکا تر سیاسي او پوځي فشار لاندې وه او بله لار یې نه لرله.

زموږ په نظر د ګټې وخت رارسیدلی و، دا بې سارې ګټوره سودا وه او خوند یې په دې کاوه چې د کانګرس تصویب ته یې اړتیا نه لرله. د کانګرس نه لاسوهنه شرکتونو ته ډېره د خوشالۍ خبره وه، ځکه شرکتونو نه غوښتل چې کاروباري تېري یې چاته ښکاره شي.

د منځني ختیځ د انسټیټوت یو کدر او پخواني خبریال توماس والټرلپ ددې سودا په اړه ویلي وو چې :

( عربان پیسو سره لوبې کوي، دوی به د مالیې وزارت ته میلیاردونه ډالرورکړي، ډالر به تر هغه دوی سره وي چې شرکتونه او قراردادیان یې نه

وغواړي. یعنې دا چې د سعودي شتمني به د امریکا په اقتصاد کې دورې وهي. دا خبره هم ترې ښکاره شوه چې په دې نظام کې شته خلک او عربان چې څه وغواړي هغه کولای شي او کانګرس پکې هېڅ کار نه لري.)

ددې تاریخي پروژې حدود تاکل اسان وو، ورپسې پوښتنه دا وه چې څنګه به عملي کېږي؟ ددې کار لپاره یو لوړپوړی چارواکی سعودي عربستان ته واستول شو. دا پټ ماموریت و، باوري نه یم خو دا کس به شاید هنری کسنجر و.

ددې کس لومړی کار د سعودي کورنۍ په دې پوهول وو، چې ډاکټر مصدق چې انګلستان تېل بند کړل نو څه ورسره وشو؟ دویم کار یې د پروژې داسې ښکلی انځور وړاندې کول وو چې عربان یې رد نشي کړی. عربان باید په دې پوه شوي وای چې له (هو) ویلو پرته بله لار نه لري. زه پوهېږم دا به یې ورته ویلي وي چې یا دې زموږ وړاندیز ومني او ارام ژوند دې وکړی؛ که نه نو د محمد مصدق له برخلیک سره به مخ شي، قاصد چې بېرته راستون شو، دا پیغام یې راوړ، چې سعودي عربستان زموږ خبره مني.

یو وړوکی خنډ دا پاتې و چې د سعودي عربستان د حکومت غړي لا نه وو همغږي شوي. موږ ته یې وویل چې دا د کور خبره ده. که څه هم په سعودي کې جمهوریت نشته خو پر یوې موضوع د سعود کورنۍ د ټولو غړو رضایت مهم دی.

په ۱۹۷۵ ز کال کې راته د یوه مهم حکومتي چارواکي په لاره کول راوسپارل شول. زه ورته شهزاده (W) ډبلیو وایم. که څه زه هم پوه نه شوم چې دا ولیعهد شهزاده دی او کنه نه. ما باید ورته قناعت ورکړی وای چې

دسعودي عربستان په پېسو مېنځلو کې دده خپله او د هېواد ګټه ده.

دا کار چې خومره اسان ښکارېده هومره نه و. شهزاده ډبليو ځان وهابي راوپېژند او ښکاره يې ووېل چې نه غواړي هېواد يې د لوېديځ نظام پر ليکو روان شي. دا يې هم ووېل چې زموږ د وړانديز په مضريت او چالاکۍ ښه خبر دی. ويل يې چې ستاسو اراده هم د هغو صليبيانو غوندې ده چې زر کاله مخکې يې غوښتل عربان عيسويان کړي. په جزيي ډول يې دا خبره سمه وه. زه فکر کوم په موږ او صليبي جنګياليو کې يوازې د موقف توپير و. له منځنيو پېړيو اروپايي کاتوليکانو دا دعوه کوله چې غواړي مسلمانان له اوره وژغوري او موږ ويل چې له عربانو سره مرسته کوو. زه اوس په دې باور يم چې ددې شرکتونو په څېر صليبي جنګياليو هم يوازې د خپلې امپراتورۍ پراختيا غوښته او بس.

که مذهبي عقايد يوې خواته کړو؛ نوشهزاده ډبليو يوه بله کمزوري لرله او هغه ښايسته ، سپينې او د زړه وينښتو لرونکې نجونې وې. خلکو نه د خپل کار اخيستلو لپاره د داسې ناوړه عمل يادونه کول سخت کار دی، خو ما بايد دا خبره کړې وای. ما چې څومره عربان پېژندل شهزاده ډبليو پکې يوازينی کس و چې دا کمزوري يې لرله يا به پرې ښايي زه پوه شوی يم. ددې تاريخي سودا په پوره کېدو کې د شهزاده دې شوق مهم رول ولوباوه. له دې ښکارې چې د خپل ماموريت د بريا لپاره زه تر کومه حده تلای شم.

## حوالې

۱ دا چې په ټېلو کوم حالت کې بندیز ولګیداو څه اغېزې یې لرلې، په دې د پوهېدو لپاره لاندې ماخذونه ولولئ:


- "Inside the Mirage: America's Fragile Partnership with Saudi Arabia. Thomas W. Lippman
- "The Prize: The Epic Quest for Oil, Money and Power". Daniel Yergin.
- "The Oil Price Revolution". Stephen Schneider.
- "OPEC : Instrument of Change". Ian Seymour.

۲- " Inside The Mirage" .... Thomas W. Lippman.

۳- The House of Saud: The Rise and Rule of the Most Powerfull Dynasty in the Arab World: David holden and Richard johns.

٤- "Inside the Mirage....." Thomas W. Lippman.

# شپاړسم فصل

# دلالي او د اسامه بن لادن مالي ملاتړ

شهزاده ډبليو راته لا دمخه ويلي وو چې کله بوستون ته درشم نو دده د خوښې مېرمن بايدورته ښه راغلاست ووايي. غوښتل يې چې مېرمن بايد د لارښوونې تر څنګ نور ځيني نور کارونه هم وکړي. خو هغه دا نه غوښتل چې کومې فاحشې ښځې سره دې وګرځي. ځکه وېرېده چې کېداى شي د خپلې کورنۍ له کوم غړي سره چېرته مخ شي. د شهزاده ډبليو ليدنې پټې وې، چې خپلې هيلې په اسانۍ پوره کړاى شي.

سيلي (Seliy) شين سترګې مېرمن وه، سپين رنګ او سره ويښته يې لرل. خاوند يې په يونايټډ هوايي شرکت کې کار کاوه، تل به په سفر و، له مېرمنې يې خپله بيوفايي نه پټوله، مېرمن يې هم ورسره ډېر کار نه درلود. هغه بوستن کې سيلي ته هغه ټولې اسانتياوې ورکړې وې چې د يوه پيلوټ مېرمن يې لري. سيلي له ازادو جنسي اړيکو سره عادت وه. د ګټې د يوې پټې سرچينې خبره ورته ډېره په زړه پورې وه. په يوه شرط يې ومنل چې شهزاده سره به ازمېښتي مجلسونو ته ځي او هغه شرط دا و: سيلي ټينګار کاوه چې په راتلونکي کې به اړيکې پر هغه چلند ولاړې وي، چې شهزاده يې ورسره کوي.

زما ښه بخت ته ګوره چې دواړه د يو بل په معيار پوره وختل.

د شهزاده ډبيلو او سيلی اړيکو ماته ځينې پوښتنې راپيدا کړې. ما په خپلو خلکو بنديز لګولی و چې ناوړه کار به نه کوي. د قانون له مخې ما مېرمنه چمتوکوله يعنې دلالي مې کوله او دا کار په ميساچوسيټس کې د قانون خلاف و. اوس اصلي خبره دا وه چې سيلي ته د خدماتو پيسې له کومه

ځایه ورکړم؟ بخت مې ښه و، مالي ډیپارټمنټ په دې مسایلو کې یو څه خپلواکي راکړې وه، زه په لویو هوټلونو کې اوسیدم، د بوسټون د سترو هوټلونو له ادارو سره مې دا خبره کړې وه چې سپین بیلونه به راکوي، هغه به ما په خپله خوښه ډکول، هغه وخت ټول بیلونه په لاس لیکل کېدل او د کمپیوټري بیلونو اسانتیا لا نه وه.

د وخت په تېریدو د شهزاده ډبلیو فکر هم پراخه شوه، بلاخره یې وویل چې سیلي دې په عربستان کې د شهزاده په میلمستون کې دېره شي. تر منځ یې ناشونې خبره نه وه. د اروپا او منځني ختیځ په ځوانانو کې د ښځو سوداګري په درز کې روانه وه. دې ښځو سره به د لنډ مهال لپاره قرارداد کېده او له ترون ختمیدو وروسته به چې خپل وطن ته راتلې نو بانکي حسابونه به یې ډک شوی وو. رابرټ بایر شل کاله مخکې د CIA عملیاتي مشر او د منځني ختیځ د چارو کارپوه و، ده لیکلي وو:

(په ۱۹۷۰ ز کال کې چې د پیټرو ډالرو ( د تېلوپیسو) باران پیل شو؛ نو ځینو کاروباري فکره لبنانیانو شهزادګانو ته د نجونو (نخاګر، طوایفو) قاچاق پیل کړ. شاهي کورنۍ د چیک په بیلانس کولو هم نه پوهېده او چالاکو لبنانیانو ترې ښې ګټې وکړې.)

زه په دې حالت پوهېدم او ددې برخې ځیني مخور مې هم پېژندل. خو دې ټولو سره بیا هم زما لویه ستونزه سیلي او د هغې پیسي وې. زه پوهېدم چې سیلي هېڅکله هغه وچو دښتو ته نه ځي؛ خو بله خبره دا وه چې د هوټلونو خالي بلونو په دې لګښتونو پرده نه شوه اچولای.

یوه ستونزه خو شهزاده حل کړه او ویې منل چې د خپلې نازولي لګښت به ورکوي. اوس باید ما نورې چارې سمبال کړې وې، زړه مې هله ولګید چې شهزاده راته د راز خبره وکړه. ویل یې چې په سعودي کې هماغه سیلي

ضرور نه ده، که بله هم وي کيږي، ما زر ځينو لبنانيانو ته زنګ وواهه او په ځو اونيو کې يوې بلې سيلي ترون لاسليک کړ.

شهزاده ډېر پيچلی انسان و، سيلي به يې جنسي اړتياوې پوره کولې، دا چې ما شهزاده سره مرسته کوله نو ډېر باور يې راباندې درلود. خو دې ټولو سره بې هم دا نه منل چې خپل هيواد لپاره دې د SAMA پروژې د عملي کېدو سپارښتنه وکړي. ما بايد د خپل ماموريت د بريا لپاره ډېره مرسته کړې وي، شهزاده ته مې هغه ټول ماډلونه او ارقام کيښودل چې نورو هيوادونو ته مو جوړ کړي وو، هغه ماډل هم پکې و چې ما او کلاډين اندونيزيا ته له تللو مخکې کويټ لپاره جوړ کړی و. ساعتونه به شهزاده ته ناست وم او د خپلې قضيې دفاع به مې کوله چې بالاخره هغه لږ رانرم شو.

زه نه يم خبر چې زما ملګرو جنايتکارو له نورو چاراواکو سره څه وکړل خو په دې پوه شوم چې پروژه ټولې شاهي کورنۍ قبوله کړه. له ځو غوړو پروژو يوه يې MAIN واخيسته. دا د ماليې وزارت لخوا د هغه زيار ډالۍ وه چې ما په دې لوبه کې ويستی و.

په هيواد کې د برښنا د پخواني نامنظمه سيستم د بيا سروې پروژه MAIN ته ورکړل شوه. ترڅنګ يې د يوه عصري سيستم د بيا ډيزاين کولو پروژه هم MAIN واخيسته، ددې سيستم معيار بايد له هره اړخه د امريکاپه معيار وای.

د تېر په څېر دا هم زما مسئوليت و چې د هيواد د هرې سيمې د برښنا د قوت او اقتصادي وړاندوينې لپاره لومړی بايد يو تيم ولېږم. زموږ ډلې د رياض د سفر لپاره ځانونه تيارول چې د قانون له وزارته ليک راغی، ويل يې چې د قانون له مخې موږ بايد په ځو راتلونکو اونيو کې په رياض کې يو ښه منظم دفتر ولرو. يوه مياشت ورته چا پام نه کاوه. ماليې وزارت سره د

ټرون له مخې باید زموږ د دفتر ټول وسایل په امریکا یا سعودي کې چمتو شوي وای. دا چې په سعودي کې نه کېده؛ نوهر څه باید امریکا کې چمتو شوي وی. اوس موږ ته یوه بله ستونزه جوړه شوه، د ټانکرو قطارونه له مخکې لا عرب بندر ته تلو په تمه ولاړ وو، په دې صورت کې زموږ کارګو( توکي) رسیدو، نږدې میاشتې وخت نیوه.

MAIN خو ټوله پروژه ددې یوې ستونزې له امله نه شوای پرېښودی. نو ټول شریکان راټول شول، له څو ساعته خبرو اترو وروسته دا پرېکړه وشوه چې یوه بوینګ ۷۴۷ ډوله الوتکه باید چارټر (دربست) شي، چې د بوسټون له دفتره د اړتیا وړ ټول وسایل سعودي عربستان ته ولیږدوي. ما به ځان سره ویل دا به ښه خوند وکړي چې الوتکه د یونایټډ هوایي شرکت وي او پیلوټ یې د هماغې ښځې خاوند وي چې د سعودي شهزاده په رام کولو کې یې مهمه ونډه لرله .

د امریکا او سعودي ټرون په یوه شپه کې رنګ راوړ، اوزې ورکې شوې پر ځای یې دوه سوه زیړې امریکایي لارۍ راغلې. دا لارې له Waste Management شرکت سره د دوه سوه میلیونه ډالري ټرون له مخې راوړل شوې وې. دې لاریو د څځلو ډېرانونه پر ځای کول ۲

د سعودي په اقتصاد کې څغلنده بدلون راغی، دا انقلاب له کرنې نیولې تر روغتیا، زده کړو او مخابراتو ... ټولو کې ښکاریده. په دې حالت توماس لیپ مین په ۲۰۰۳ کال کې یوه تبصره وکړه چې :

( امریکایانو په خپل طرز د یوې داسې مړې ځمکې شکل ور بدل کړ، چې د کوچیانو له خیمو او خامو کورونو پرته پکې هېڅ هم نه وو. اوس په هغو کنډرو کې د قهوې دوکانونه او په لویو مغازو کې د معیبونو بایسکلونه هم پیدا کیږي. نن په سعودي عربستان کې هم د امریکا غوندې ښایسته

دوکانونه، مارکیټونه، چټک انټرنټ او مخابراتي اسانتیاوې شته دي. ) ۳
موږ چې په ۱۹۷۴ ز کال کې کوم خوب لیدلی و، هغه اوس نورو تېل صادروونکو هیوادونو ته د بحث وړ نمونه وه. په اصل کې خو SAMA/JECOR دویم میدان و، اصلي لوبه خو کرمیټ روز وېلیټ په ایران کې کړې وه. په سیاسي اقتصادي وسله تون کې اوس یوه بله بې سارې او پیچلې وسله وه چې د نړیوالې امپراتورۍ سرتېرو ورته اړتیا لرله.
د سعودي پېسو مینځلو او ګډ کمیسون په نړیوال قانون کې بله طرحه جوړه کړه او دا خبره د ایدی امین په قضیه کې ښه روښانه شوه. دې بدنام آمر په ۱۹۷۹ ز کال کې په سعودي عربستان کې پناه واخیسته. که څه پر دې تولواک مجرم له سلو تر درې سوو زرو کسانو د وژلو تور و، خو دلته یې ښه شایسته ژوند کاوه. هر څه ورته شاهي کورنۍ ورکړي وو، امریکا یې پر ضد یو ټیټ غږ پورته کړ، خو ټینګار یې ځکه ونه کړ چې هسې نه ددوی او شاهي کورنۍ په اړیکو کومه بده اغېزه وکړي. امین د خپل ژوند وروستي کلونه په کب نیونه او د سمندر پر غاړه په قدم وهلو تېر کړل او بلاخره په ۲۰۰۳ ز به جده کې د ګردو د فلج له امله د اتیا کالو په عمر مړ شو. ۴
سعودي عربستان یو ډېر حساس او مضر رول دا لوباوه چې نړیوالې ترهګرۍ سره یې مالی مرسته کوله. امریکا غوښتل چې سعودي عربستان په افغانستان کې د ۱۹۸۰ مې لسیزې په جهاد کې له اسامه بن لادن سره مالي مرسته وکړي.
دې دواړو هیوادونو مجاهدینو ته نږدې درې نیم بیلیونه ډالره مرسته اعلان کړه، خو په اصل کې مرسته تر دې څو چنده ډېره وه.
په ۲۰۰۳ ز کال کې د امریکا یوې مجلې ( یو ایس ایند ورلډ ریپورټ) د (سعودي اړیکې) په نامه یوه لیکنه خپره کړه. دې مجلې زرګونه پاڼو د

محاکمو قضيې، د بهرنيو استخباراتو راپورونه او نور اسنادو ته کتنه وکړه، د منځني ختيځ د ترهګرۍ په اړه يې له چارواکو او کارپوهانو سره مرکې وکړې، د پايلو يوه برخه يې داده :

( په شواهدو کې شک نشته. د امريکا پخوانۍ ملګرۍ او په اوسنۍ نړۍ کې د تېلو سترصادرونکی هيواد سعودي عربستان په څه نا څه ډول د ترهګرو مرکز ګرځېدلی دی....

د ايران انقلاب او په افغانستان کې د شوروي جګړه دواړه د ۱۹۸۰ مې لسيزې په وروستيو کې وشول. د سعودي عربستان د دولتي خيرات نيمې پيسې د جهاد قوي کېدو لامل شوې. تر شلو زياتو هيوادونو کې په دې پيسو نيمه پوځي روزنيز مرکزونه رامنځته شوي وو، وسلې پېرل کېدې او خلک يې جذبول.

د سعودي د ملګرۍ لپاره امريکا په هر څه سترګې پټې کړې وې. پخواني استخباراتي مامورين وايي چې د تړونونو، تضمينونو او معاشونو په ډول ميلياردونه ډالر د امريکايي چارواکو جيبونو ته تللي دي او دې پيسو له سعودي عربستان سره اړيکه درلوده. په دې کې سفيران، د CIA چارواکي او سکرتران شامل و.....

له برښنايي وسايلو داسې خبرې اترې ترلاسه شوي دي چې ښيي د سعودي شاهي کورنۍ پر القاعده سربېره نورو ترهګرو ډلو سره هم مرستې کوي.)٦ ۲۰۰۱ ز کال کې چې پر نړيوال سوداګريز مرکز او پنټاګون بريدونه وشول؛ نو د سعودي او امريکا تر منځ د پټو اړيکو نور شواهد هم رابرسيره شول. د ۲۰۰۳ د اکتوبر په مياشت کې وينټي فئير Vanity Fair مجلې د عربانو خونديتوب تر سرليک لاندې په يوه ليکنه کې هغه رازونه افشاء کړل چې عام خلک پرې نه پوهېدل. د بوش، سعودي کورنۍ او اسامه بن لادن تر

منځ د اړيکو دې کيسې ته زه حيران نه شوم، ځکه دا کيسه هم د سعودي عربستان د پېسو مينځلو کيسې (۱۹۷۴) هومره زړه ده. دا لړۍ هغه وخت ته هم رسيږي چې جورج ايچ ډبليو بوش په ملګرو ملتونو کې امريکا سفير و (۱۹۷۱-۱۹۷۳). بيا وروسته چې له (۱۹۷۶ نه تر ۱۹۷۷) پورې د سي ای اې مشر و، زه يوازې د خبرې ته حيران وم، چې دا موضوع اخر هم رسنيو ته ووتله، مجلې کيسه په دې ټکو پای ته رسولې ده:

(بوش او سعود د نړۍ دوه قوي کورنۍ دي او تر منځ يې ژورې شخصي، سوداګريزې او سياسي اړيکې له نږدې شلو کلونو راهيسې روانې دي...

سعودي عربستان په خصوصي سکتور کې له هارکن انرجي HARKEN ENEGRY شرکت سره ډېره مرسته کوي او په دې شرکت کې جورج ډبليو بوش پانګونه کړې ده.

لږ وخت مخکې پخوانی ولسمشر جورج ډبليو بوش او دده پخوانی همکار او د بهرنيو چارو وزير جمېز ای بيکر عربانو ته ورغلل، چې کارلايل ګروپ Carlyle Group ته مالي ملاتړ پيدا کړي، ويل کيږي چې دا د نړۍ تر ټولو ستر شخصي شرکت دی او بوش پکې اوس هم د ارشد مشاور په توګه دنده لري....

له ۹/۱۱ پېښې څو ورځې وروسته د بن لادن کورنۍ د څو غړو په شمول ځينې شتمن عربان هم په يوه شخصي الوتکه کې له امريکا بهر وليږدول شول او اوس يې د پروازونو د روښانه کولو مسئوليت هېڅوک په غاړه نه اخلي. دا هم رښتيا دي چې له يوه مسافره هم پوښتنه نه ده شوې او پوښتنه دا ده، دا کار به ځکه شوی وي چې بوش له سعود کورنۍ سره پخوانۍ اړيکې لري.) ۷

## حوالې


١. "Sleeping with the Devid: How Washington Sold our Soul for Saudi Oil": Robert bear

٢. "Inside the Mirage ...." Thoms W. Lippman.

٣. Ibid

٤. "Idi Amin, Murderous Ugandan Dictator Dies". Henry Wasswa. ایسوسی ایټډ پرئیس: ١٦ اګست ٢٠٠٣.

٥. "The Saudi Connections". U.S. News and World Report. Dec. ١٥'٢٠٠٣.

٦. Ibid

٧.

- "Vanity fair" . October ٢٠٠٣
- "Zapata Petroleum"
- " A Nation at War" . New york times April ١٨, ٢٠٠٣.

## اولسم فصل

# د پانامې کانال خبرې اترې او ګراهم ګرین

عربانو د ډېرو خلکو بختونه بیدار کړل. زه خو له مخکې هم بریالی وم خو دې صحرايي امپراتورۍ راته د بریا نورې دریځې هم پرانیستې. تر ۱۹۷۷ پورې ما هم یوه وړه امپراتوري جوړه کړې وه. نږدې شل تنو متخصصینو پکې کار کاوه او مرکزي دفتر یې په بوسټون کې و. پر دې سربېره په نړۍ کې د MAIN د ټولو دفترونو مشاورت ماته راتر غاړې و. ددې ادارې په سل کلن تاریخ کې زه تر ټولو کشر شریک وم. زما د اصلي دندې (ارشد اقتصادپوه) تر څنګ زه د اقتصاد مدیر او ساحوي پلان جوړونکی هم معرفي شوی وم. په هارورډ او ورته نورو ادارو کې مې لکچرونه ورکول. ورځپاڼو به راته په روانو حالاتو د لیکنو زارۍ کولې. خپله یوه شخصي کښتۍ مې هم لرله چې د بوسټون بندر له مشهورې جنګي بېړۍ کانسټیټویشن سره په خوا کې به یې لنګر اچاوه. تر انقلابي جګړې وروسته همدې بېړۍ د بحري قزاقانو په څپلوکې لوی نوم ګټلی و. ما ښه معاش اخیسته. څینې اسهام مې هم لرل، دهغو ګټه مې چې سنجوله، په دې باوري وم چې له څلوېښت کلنۍ دمخه به میلیونر شم. دا منم چې د واده ناکامۍ ځپلی وم خو په بېلابېلو لویو وچو کې به مې له ښایسته مېرمنو سره وخت تېراوه.

برونو Bruno د اقتصادي وړاندوینې په اړه بې سارې نظر ورکړ. د اقتصادي شننې دا نوی ماډل د یوه روسي ریاضي پوه پر نظریاتو ولاړ و. ددې ماډل اصول دا و : داخلي یا موضوعي امکانات دې له وړاندوینې سره داسې ګډ شي، چې د څینو اقتصادي اړخونو وده ترې څرګنده شي. په دې فکر کې

هغه ورتیا شته چې د ودې د لویې کچې جواز ترې ترلاسه شي.. موږ دې کچې ته ځکه اړتیا لرله چې لوی پورونه ترلاسه کړو.

ما خپلې ادارې ته ځوان ډاکټر نادي پریم پرساد راوست او بودیجه مې ور وسپارله. په شپږو میاشتو کې یې د اقتصادي تجزیې لپاره د مارکوف نظریه د کارولو وړ کړه. موږ ټولو د تخنیکي اسنادو یوه لړۍ پیل کړه. په دې کې مو د مارکوف د طریقې له مخې دا معلومول چې پر اقتصادي ودې د شتمنۍ د پانګونې اغېزې به څه وي؟ او دا اغېزې مو د وړاندوینې په توګه کارولې.

موږ همدا لټول. داسې یو څه چې په علمي ډول دا ثابته کړه چې موږ کوم هیوادونه د پور په جال کې نښلوو؛ په اصل کې ورسره ښېګڼه کوو. ربښتیا خبره خو داده چې څوک به یو ځل په دې جال کې بند شول بیا به یې هېڅکله خپل اخیستی پور نه شو پرې کولای.

هغه اقتصادي کارپوه چې پریمانه وسایل، سرچینې او وخت ولري او د مارکوف د سیستم په نزاکتونو او پیچلتاو پوهېږي او پابله ترې اخیستی شي. دا اسناد ډېرو مشهورو رسنیو خپاره کړل او موږ خپله هم په ځینو کنفرانسونو او لکچرونو کې وړاندې کړل. په ټول صنعت کې ددې اسنادو او زموږ اوازه خپره شوه. ۲

ما او عمر طوریجو په خپل منځ کې د شوي پټ ترون خیال وساته. باور مې ورکړ چې زموږ تجزیې (شننې) به ربښتیا وي او په سپارښتنو کې به مو بېوزله خلک په پام کې نیولي وي. که څه هم ګونګسی اوریدل کېده چې د پانامې په اړه زما په راپور کې لګښت ډېر نه دی ښودل شوي او ځینو خو بېې لا ویل چې د سوسیالیزم بوي ترې راځي؛ خو یو حقیقت دا هم و چې دعمر طوریجو MAIN ته په قرارداد پسې قرارداد ورکاوه. په دې ترونونو کې

لومړی یې دا و چې له روایتي شتمنۍ سره دې د کرنې برخه هم یو ځای شي. ما له یوې زاویې دې خبرې ته هم پام وکړ چې عمر طوریجو او جیمي کارټر د پانامې پر کانال خبرو ته چمتو شوي دي.

ټولې نړۍ په دې خبرو اترو خوښي ونبوده. ټول خلک په تمه وو چې امریکا به ددوی د خوښې کار کوي، یعنې د پانامې د کانال واک به پانامه یانو ته ورکوي او که د تقدیر لیک هغه نظریه به بیا نه پلې کوي چې شکل د ویتنام د بحران غوندې خراب شوی و. ډېرو خلکو فکر کاوه چې په ډېر ښه وخت کې ښه او مهربانه انسان د امریکا ولسمشر شوی دی. خو د واشنګټن مذهبي او لرغون پرستو خلکو بیا دې عادلانه پرېکړې ته په کرکه کتل: دا څنګه کېدای شي چې موږ ددې ملي دفاع له دې قوي کلا لاس واخلو؟ او د امریکا د ښه تدبیر دا شهکار له لاسه ورکړو؟ د اوبو دې لیکې خو د جنوبي امریکا قسمت د امریکا له سوداګریزو ګټو سره تړلی دی.

زه به چې پانامې ته لاړم نو په انټرکانټینینټال هوټل کې به اوسیدم، په پنځم ځل تګ مې په دې هوټل کې د بیارغونې چارې روانې وې، نو غږونه پکې ډېر و. دا ځل پانامه هوټل ته لاړم. لومړی مې خوښ نه شو، ځکه په سفر کې انټر کانټینینټال هوټل زما کور و، خو وروسته چې بیا په کوم صالون کې ناست وم، د څوکیو ښکلا او سینګار یې زما زړه یووړ. داسې ښکاریدل لکه دا کاسابلانکا فلم سیټ چې وي او همفري بوګرټ به اوس له کومه ځایه راوځي.

په نیویارک ریویو آف بکس کې مې د ګراهام ګرین لیکنه ختمه کړې وه، کتاب مې څنګ ته کېښود، د چت پکو ته مې وکتل او نږدې دوه کاله مخکې یوه شپه رایاد شوه:

( فورډ ضعیفه ولسمشردی، بیا نه ټاکل کیږي) دا په ۱۹۷۵ ز کال کې د

عمر طوریجو وړاندوینه وه. ده د پانامې له څو مخورو سره خبرې کولې، په څو بهرنیانو کې یو زه وم چې خپل ښکلي کلپ ته یې دعوت کړي وو. زیاته یې کړه: ( همدا لامل دی چې د پانامې د کانال خبره مې تېزه کړه، ددې سیاسي جګړې د ګټلو لپاره دا ډېر مناسب وخت دی.)

دې خبرو ډېر اغزیمن کړم، خونې ته چې راغلم زر مې بوستون ګلب ته یو لیک ولیکه او پوسټ مې کړ. د بوستون یوه ایډیټر مې دفتر ته ځوابي زنګ راوهه، رانه یې وغوښتل چې دې عنوان لاندې ورته یوه لیکنه وکړم ( د ۱۹۷۵ کال په پانامه کې یرغل ته ځای نشته.) دا نیمه صفحه لیکنه د همدې کال د سپتمبر په ۱۹ نېټه د ادارې یادونې ته مخامخ چاپ شوه.

دې لیکنه کې هغه درې لاملونه په ګوته شوي چې له مخې یې باید د پانامې کانال پانامې ته وسپارل شي.

۱ اوسنی حالت انصاف نه دی، داد پرېکړې لوی لامل دی.

۲ په اوسني ترون کې امنیتي خطر ډېر دی، ددې په نسبت پانامې ته ورکړل شوی کنټرول کم دی. د حوالې لپاره مې د انټروشیانیک کانال کمیشن یوه مطالعه یاده کړه ې پکې ویل شوي وو : ( وسایل (ترافیک) دوو ـکلونو لپاره معطل کېدای شي او دا د یو کس کار دی، چې د ګاتون (بربښنا بند) په څنګ کې یو بم نصب کړي.) دا ټکی خپله عمر طوریجو هم ویلی دی.

۳ د امریکا او لاتیني امریکا تر منځ اړیکي له مخکې هم کړکېچنې دي او اوسنی حالت دا ستونزې لاپسې ډېرولای شي.

وروستی خبره مې دا ده :

( د پانامې د کانال معاملې ته د حرکت ورکولو تر ټولو ښه لاره دا ده چې واک مسئولیت یې همدې خلکو ته وسپارل شي. که موږ داسې

وکړل نو دا به د هغه دور بیا ځلي پیل وي چې دوه سوه کاله مخکې
مود خپلواکۍ حق منلی و.....
د استعمار سکه چې په ۱۷۷۵ کال کې څنګه چلیده اوس هم هغسې
نه چلیږي. ددې ترون تصدیق په هغه زمانه کې کېدای شو خو اوس
هېڅ جواز نه لري. په ۱۹۷۵ ز کال کې ښکیلاک نه ځاییږي. اوس
چې موږ دوه سوه کاله پخواني مراسم نمانځو؛ نو دا احساس باید ولرو
چې د هغې سره سم عمل باید وکړو.)۳

دې ورېږ لیکنې ستر جرات غوښت، خصوصاً په داسې حالاتو کې چې ماته
په MAIN کې د شریک درجه راکړل شوې ده. له شریکانو هیله کېده چې
له رسنیو دې لیرې ووسي او په مجلو کې د لیکنو چاپ کولو خو دې فکر
هم نه کوي. بیا نو د دفتر په پوسټ د بینومه خلکو د خبرتیاوو (نوټس) یو
سیلاب راپیل شو. دې لیکونو سره زما د لیکنې نقلونه هم یو ځای شوي وو.
یو خو مې وپېژنده چې چارلي لانګورت لیکلی و. دا ښاغلی په MAIN کې
زما د لومړۍ پروژې مدیر و او تر لسو ډېر کلونه کار یې کړی و. دد پر
وړاندې زما کار له پنځو کلونو کم و خو زه اوس دددې شرکت شریک وم او
دا ښاغلی لا دې ځای ته نه و رسیدلی. دده په لیک یوه خطرناکه محاوره او
د خطر نښه (دوه هډوکي) له ورایه ښکاریدل. پیغام یې ببخي لنډ او ساده:
(آیا دا سور (سرخه) رښتیا هم زموږ په شرکت کې شریک دی؟)

برونو خپل دفتر ته ور وغوښتم او راته یې وویل: تا چې څه لیکلي پرې
پښېمانه به شي، MAIN لرغون پرسته اداره ده. خو زه درته وایم چې د
ډېرې هوښیارۍ ثبوت دې ورکړی دی. طوریجو به یې ډېر خوښ کړي. زه
باوري یم چې یو نقل به یې ور ولیږې. د هغه دفتر کړتن چې وایي طوریجو
سوسیالیست دی، که یې کار پیدا کړ، بیا په دې خبرو پسې نه ګرځي.)

د برونو خبره د تل په څېر سمه وخته. په ۱۹۷۷ ز کال کې کارټر په سپینه ماڼۍ کې میشت و او د کانال په مسئله یې جدي خبرې کولې. د MAIN ډېر سیال شرکتونه په غلطه لاره، هغوی له پانامې بهر ووتل او زموږ کار په ډېره چټکۍ پرمخ روان و.

زه د پانامه هوټل په صالون کې ناست وم او لږ مخکې مې د ګراهم ګرین لیکنه ختمه کړې وه. ددې لیکنې عنوان ( د پنځو پولو هیواد) و او ډېره زړوره لیکنه وه. پکې د پانامې د ملي ګارد په رشوت اخیستلو هم خبرې شوې وې. د لیکوال په وینا جنرال خپله دا منلې وه چې خپل پرسونل ته یې ځانګړي امتیازات ( لکه ښایسته کورونه) ورکړي دي. د جنرال په وینا که زه دوی ته دا شیان ورنه کړم نو CIA یې ورکوي. دا اشاره وه چې د امریکا استخباراتي کړۍ غواړي د ولسمشر کارټر اراده له خاورو سره خاورې کړي. که اړتیا پېښه شي د پانامې لوړپوړو پوځي چارواکو ته په رشوت ورکولو سره مذاکرات ناکامیدای شي. زه حیران شوم چې ګیدړانو (Jackals) لکه چې په طوریجو کړۍ راتنګه کړې ده.

د ټایمز یا نیوز ویک د (خلکو) په برخه کې یو څپور شوی انځور مې لیدلی و، چې طوریجو او ګرین پکې یو ځای ناست وو. د تصویر عنوان داسې و چې لیکوال یو ځانګړی میلمه او ښه ملګری هم دی. زه نه پوهېږم چې جنرال ددې ناول لیکوال په اړه څه احساس کاوه، چې دومره باور یې هم پرې درلود او معیاري تنقیدي تبصره یې هم پرې لیکلې. د ګراهم ګرین لیکنې یو بل تکی هم راپورته کړ. دې ټکي د ۱۹۷۲ کال له هغه ورځ سره اړیکه لرله چې زه او جنرال د قهوې یوه مېز ته ناست وو. ما هغه وخت دا فرض کړه چې طوریجو د بهرنیو پورونو په کیسه پوهېږي، دی پوهېږي چې دا بهرني پورونه به طوریجو شتمن کړي او ولس به یې په پورونو کې ډوب

شي. زه باوري وم عمر په دې پوهېده چې دا ټول کار د چارواکو په فساد ولاړ دی چې خپلې ګټې تر ملي ګټو لوړې وګڼي او که چا ویل چې بهرنۍ پورونه د خپل ولس د وضیعت د ښه والي لپاره کاروي نو دا په خپله یو اخطار و، داسې اخطار چې ټول نظام په بل مخ اړولای شي. ټولې نړۍ دې کس ته سترګې نیولې وې. دده کارونو دا اغېز داسې ښېې خپرولې چې تر پانامې بهر هم وتلې او خلکو ترې ځان نه شو ژغورلای.

ما فکر کاوه چې که پانامه ربښتیا پورونه د غریب ولس لپاره ولګوي او داسې پورونه واخلي چې بیا یې د پرې کولو وس نه لري؛ نو د کارپوریټوکراسۍ غبرګون به څه وي. اوس مې دا فکر کاوه چې طوریجو به زما او دده ترمنځ په کړي ترون پښېمان وي؟ زه خپله هم نه پوهېدم چې زه یې په اړه څه احساس لرم. زه د خپل جنایتکار شخصیت نه وروسته شوی وم. ما دخپلې لوبې پر ځای هغه ته لوبه کوله. ما د ډېرو قراردادونو نیولو په تکل پر ایمانداری د هغه ټینګار ومانه. له سوچه اقتصادي اړخه خو دا د MAIN لپاره ډېره ځیرکه پرېکړه وه. خو کلاډین چې راکې کومه ساه پوو کړې وه دې پرېکړې ورسره اړخ نه لګاوه. دا د نړیوالې امپراتورۍ د قیام د هدف خواته ګام نه و. آیااوس ګیدړان (Jackals) خوشې پرېښودل شوي وو؟

په هغه ورځ چې د طوریجو له دفتره راووتم؛ نو فکر مې وکړ چې د لاتیني امریکا تاریخ له مړو شویو مشاهېرو ډک دی. د کوم نظام بنسټ چې د ولسي شخصیتونو په فاسدولو ایښی وي، په هغه نظام کې داسې خلک ګوزاره نه شي کولای چې له فساده انکار کوي.

ما وې که سترګې مې راسره چل کوي، په دهلیز کې مې یو کس له خوا تېر شو، حیران شوم، ما وې که همفري بوګرټ دی، خو بیا مې فکر وکړ چې بوګرټ خو کلونه مخکې مړ شوی دی. فکر مې چې پر ځای شو نو کس مې

وپېژنده. دا د معاصر انګليسي ادب يو ستر شخصيت و او د The pride and the Glory, The Commedians Our Man in Havan لیکنه مې دده لوستې وه. يعنې ګراهم ګرين و. هغه يوه شېبه ودريد، هاخوادیخوا يې وکتل اوبيا قهوه خانې ته روان شو.

ما ويل چې ورغبږ کړم يا پسې ورمنده کړم، خو بيا مې ځان قابو کړ. فکر مې وکړ چې يوازتوب ته به اړتيا لري. بيا مې ويل چې کېدای شي مانه به څنګ ته شوی وي. کتاب مې پورته کړ او څو شېبې وروسته بيا د قهوه خانې په درشل ولاړ وم. په دې ورځ مې خواړه وختي خوړلي وو، خدمتګار په حیرانی راوکتل. ما سترګې وګرځولې. ګراهم ګرين د ديوال خواته پروت مېز ته يوازې ناست و. مېز ته په اشاره مې خدمتګار ته وويل چې يو ځل بيا د خوړو لپاره هلته کيناستی شم؟ زما عادت و چې خدمتګاران به مې خوشاله ساتل، هغه مې په خبره پوه شو، موسکی شو او مېز ته يې روان کړم.

ناول ليکوال په ورځپاڼه کې ډوب و. ما د قهوې فرمايش ورکړ. ما غوښتل چې د پانامې، کانال او طوريجو په اړه د ګراهم ګرين په نظر پوه شم خو هېڅ نه پوهېدم چې خبرې څنګه پيل کړم. هغه له قهوې يوګوټ وکړ، بيا يې سترګې راپورته کړې.

ما وويل

- وبښئ

ما فکر وکړ چې ماته يې راوکتل

- (هم ! وايه )

- د مزاحمت بښنه غواړم، تاسو ګراهم ګرين ياست؟

موسکی شو

- پېژندلی دې يم، په پانامه کې مې ډېر خلک نه پېژني.

خپل د خوښې ناول ليکوال مې چې ځان ته مخامخ وليد، لږ وويرېدم او د خپل ژوند حالت مې ورته بيان کړ. په دې کې مې ورته په MAIN کې زما د مسئوليتونو او طوريجو سره د کتنو يادونه هم وکړه.

هغه راته وويل ته هغه ليکوال يې چې ( امريکا دې له پانامې ووځي) تر عنوان لاندې ليکنې دې کړې وه او په بوستن ګلوب کې چاپ شوې وه؟ ددې په اوريدو حيران شوم، راته يې وويل

- ستا موقف ته په ليدو ويلای شم چې ډېره زړورتيا دې کړې ... راځه ماسره کېنه.

زه ورپاڅيدم، هغه سره مېز ته کېناستم، نږدې نيم ساعت ناست وو، له خبرو يې معلوميده چې طوريجو ته ډېر نږدې دی، کله کله به يې د طوريجو په اړه داسې خبرې کولې لکه د خپل زوی په اړه چې لګيا وي، راته يې وويل:

- جنرال زه راغوښتی يم، چې د هيواد په اړه يې يو کتاب وليکم، په همدې بوخت يم، دا کتاب ناول نه دی، دا کارمې يو څه له پخوانيو سره توپير لري.

ما ترې وپوښتل چې ولې يوازې ناول ليکې؟ نورې ليکنې ولې نه کوې؟ ځواب يې راکړ:

- د داستان جنس ډېر خوندي دی، زما له ډېرو ليکنو سره اختلاف کېدای شي؛ مثلاً ويتنام، هايتي او د مکسيکو انقلاب. زياتره خپرندويه اداره د سنجيده موضوعاتو په اړه له کتا ب خپرولو وېرېږي.

په پخواني مېز مې دده کتاب لا پروت و، هغه ته يې اشاره وکړه ويې ويل:

- داسې خبرې ډېرې زيانمنې ثابتيدای شي.

بيا موسکی شو:

- ناول ددې لپاره هم ليکم چې خپلواکي پکې ډېره وي.

بيا يې ماته جدي راوکتل ويې ويل:

- تر ټولو مهمه، په هغو مسايلو بايد ليکنې وشي چې خپل يو موقف ولري، لکه تا چې د کانال په اړه په ګلوب کې ليکل کړي وو.

طوريجو يې ښکاره خوښيده، دا ددې خبرې ثبوت و چې د پانامې ولسمشر له خپل بېوزله ولسه نيولې تر د ناول ليکوال زړه پورې ټولو ته لاره کړې ده او بله خبره دا وه چې ګرين د خپل ملګري ژوند ته هم ډېر اندېښمن و.

په غمجن غږ يې وويل:

- د شمال له ديو سره سيالي ډېره سخته ده.

بيا يې سر د نه په نښه وخوځوه، په خفګان يې وويل:

- زه يې ژوند ته ډېر اندېښمن يم

د هغه د تلو وخت و، ماته يې لاس راکړ او په قلاره پاڅېد:

- زه بايد فرانسې ته پرواز وکړم.

زما سترګو ته يې راوکتل ويې ويل :

- ته خو کوم کتاب نه ليکې؟ ته يې ليکلی شې، خو يوه خبره ياده ساته، په مهمو مسايلو ليکل کوه.

روان شو، څو ګامه يې واخيستل، بېرته يې مخ راواړوه.

- غم مه کوه ! جنرال يې ګټي، کانال بېرته اخلي.

طوريجو کانال بېرته ونيوه، په همدې کال (۱۹۷۷) کال کې يې له ولسمشر کارټر سره ګټورې خبرې اترې وکړې او د نوي تړون له مخې يې د کانال او ساحې واک بېرته ترلاسه کړ. سپينه ماڼۍ په سخت ځای کې وه، کانګرس يې بايد راضي کړی وی چې ددوی تړونونه تصويب کړي. اوږد زيار پيل شو او بلاخره د يوې رايې په اکثريت د کانال تړون تصويب شو؛

خو لرغونپرساتو د بدل اخيستو قسمونه وکړل.

څو کاله وروسته چې د ګراهم ګرين کتاب Getting ti Know the General خپور شو، نو انتساب (نومونه ) داسې و :

د خپل ملګري عمر د خپلوانو په نوم، چې په نکاراګوا، السولیډور او پانامه کې مېشت دي.

حوالي :

۱-

- "Colonialism in Panama Has no Place in ۱۹۷۵" John M. Perkins.Boston Glob,۱۹th November.
- "U.S Brazil pact upsets Educator" John M.perkin. boston glob ۱۰th may ۱۹۷۵

۲- " Getting to know the General". Graham Greene.

۳- Ibid

اتلسمه فصل

# د ایران شهنشاه

۱۹۷۵-۱۹۷۸ کلونو کې مې ایران ته تګ راتګ دېر و. زیاتره وخت به مې سفر د لاتیني امریکا، اندونیزیا او ایران تر منځ و. په دېرو ځایونو کې مې کار کړی و، خو د شاهانو د شاه (دولتي لقب شهنشاه) په ځای کې له یوه بدل چاپېریال او حالت سره مخ شوم.

ایران هم د عربستان غوندې په تېلو مالامال دی؛ نو د ځېلو سترو پروژو عملي کولو لپاره یې زموږ مرستې ته اړتیا نه لرله. ایران له عربستان سره یو توپیر درلود، د ایران خلک مسلمانان وو، خو په منځني ختیځ کې دا یوازیني خلک وو چې عرب نه وو. پردې سربېره یې سیاسي تاریخ هم له کش مکشه ډک وو. کورني بغاوتونه پکې کېدل او له ګاونډیانو سره یې هم اړیکې ښې نه وې. موږ دوی سره د معاملې لپاره یوه نوې لاره خپله کړه. د واشنګتن دولتي او سوداګریزو کړیو په دې خاطر سره ائتلاف وکړ، چې د ایران شهنشاه به د پرمختګ سمبول ګرځوي.

موږ دا سترې هڅې دېرې په درز کې پیل کړې. نړۍ ته مو ښودل چې د امریکا د سوداګرۍ او سیاسي ګټو، قوي او جمهوري ملګری څه کولای شي. ددې په ظاهري غیر جمهوري لقب مه تېروځئ. هغه پټه دسیسه هم هېره کړئ چې CIA د یوه ټاکل شوي جمهور رئیس پر وړاندې جوړه کړې وه. واشنګتن او متحدینو یې دا غوښتل چې د شاه حکومت د عراق، لیبیا، چین، کوریا او نورو داسې هیوادونو د متبادل حکومت په توګه وړاندې کړي. دا هغه هیوادونه وو چې د امریکا مخالفې څپې پکې ښکاریدې. ظاهري شواهدو دا ښودله چې شاه د بیوزلو ترقي پسندو ملګری دی. په

۱۹۶۲ کې يې د کرنيزو اصلاحاتو په لړ کې لوی جاګيرداران مات کړل او د هغوی ځمکې يې په بزګرو وويشلې. په ورپسې کال يې سپين انقلاب اعلان کړ چې په لړ کې يې په پراخه کچه اقتصادي او ټولنيز اصلاحات رامنځته شول. په ۱۹۷۰ ز کال کې د اوپيک سازمان قوت زيات شو او شاه د يوه قوي رهبر په توګه ومنل شو. په همدې وخت کې ايران د منځنې ختيځ تر ټولو قوي پوځ رامنځته کړه. (۱)

په ټول هيواد کې د MAIN بې شمېره پروژې روانې وې. د ژوند له ټولو برخو سره يې اړيکه لرله. په شمال کې د کسپيئن بحيرې له سياحتي ځايونو نيولې تر جنوب کې د پټو پوځي هډو جوړولو پورې ټولې پروژې MAIN ته ورکړل شوې وې. دې پوځي هډو مخامخ د هورمز خليج ځاره. د تل په څېر موږ په سيمه کې د پرمختګ د وړتيا کچې ته پام کاوه. دې پسې د برېښنا توليد، لېږد او وېش د سيستم پلان طرح او چمتو کول وو، دې پلان د پرمختګ کچې ته يو باور ورکاوه او زموږ وړاندوينه ترې سمه ثابتيدای شوه. چې وخت به مو پيدا کړ، د ايران بېلابېلې سيمې به مو ليدلې. ما له کرمانه تر عباس بندره پورې په هغو لارو سفر کړی چې له غرونو او رغونو به تېريدلې، دا د کاروانونو پخوانۍ لاره وه. د لرغونو شاهانوکيسه ايز هستوګنځايونه مې وليدل دا هستوګن ځايونه د پرسيپولس په کنډرو کې وو. د هيواد ښايسته او زړه راښکونکې ځايونه مې هم وليدل. په دې کې شيراز، اصفهان او پرسيپولس ته نږدې هغه ښار هم شامل دی چې شاه ته به يکې تاج په سر کېده (تاج پوشي). په دې موده کې مې له دې بېلابېلو ځايونو او خلکو سره زړه لګيدلی و.

دا هيواد په ظاهره د عيسويانو او مسلمانانو تر منځ د مرستې يوه بېلګه ښکاريده. خو ډېر زر پوه شوم چې ددې امن او خوښۍ تر شا ژور خفګانونه

هم پراته دي.

په ۱۹۷۷ کال کې یوه ورځ ناوخته خپلې خونې ته لاړم، د دروازې لاندې یو لیک پروت و، په لوستلو یې ولړزیدم، دا د یامین په نوم یو کس رالیږلی و. ما دی هېڅکله نه و لیدلی خو په یوه رسمي پېژندګلوی کې یې راته ویل شوي وو، چې مشهور انقلابي او ورانکاری دی. لیک یې په ښایسته انګلیسي لیکلی و او زه یې په یوه هوټل کې میلمستیا ته دعوت کړی وم. په لیک کې یو اخطار هم وو، ویل یې که غواړې د ایران هغه مخ وګورې چې تاغوندې خلکو لا نه دی لیدلی نو میلمستیا ته راشه. زه اندېښمن وم چې یامین خو به زما په اصلیت نه وي پوهېدلی؟ زه پوهېدم چې ډېر لوی خطر ته غاړه ږدم، خو ددې پراسراره انسان لیدو ته هم ډېر لېواله وم.

ټکسي نه د یوه داسې لوی دیوال څنګ ته ښکته شوم، چې وړه دروازه پکې لګیدلې وه. ښایسته تورکالی ایرانی راته ولاړه وه، زه یې څان سره روان کړم، له داسې دهلیزه تېر شو چې څراغونه پکې راځړیدلي وو او لاره یې ته روښانه کړې وه، بیا داسې یوې خونې ته ننوتو چې د الماسوغوندې ځلیده. سترګې مې وبرېښېدې، چې دید مې ولګید ومې لیدل چې دیوالونه په ښایسته غمیو سینګار شوی دي. هوټل په ښایسته شمعو روڼ شوی، دا شمعې په نازکو او تراشل شویو شیشه یي فانوسونو کې لړیدلې وې.

یو لوړ سړی رانږدې شو، لاس یې راکړ، د بحري پوځ دریشي یې په غاړه وه. ځان یې راوپېژند ویې ویل چې نوم یې یامین دی. له لهجې یې ښکاریدل چې په انګلیسي ادارو کې یې زده کړې دي. ماته ورانکار او انقلابي نه ښکاریده. له خو مېزو وړاندې یې بوتلم، ښځې او سړي غلي ناست وو، خواړه یې خوړل. یوازې (تش) ځای ته ورسیدو. ویل یې چې دلته خوندي خبرې کولای شو. زه پوه شوم چې دا رستوارنټ د نجونو او

هلکانو د ملاقاتونو پټ مرکز دی. په دې شپه ښايي يوازې زموږ ليدنه داسې وه چې جنس پکې مطرح نه و.

يامين ډېر مينه ناک و. له خبرو يې پوه شوم چې زه يې د اقتصادي مشاور په توګه پېژندم، په پټو اړخونو خبر نه و. ماته يې وويل زه يې ددې لپاره ټاکلی يم، چې په پيس کور کې رضاکار پاتې شوی يم، ددوی هيواد پېژنم او له هره فرصته ګټه اخيستی شم.

خبره يې وغځوله: (ستا په هم مسلکو کې ته لږ څوان يې، زموږ له تاريخ او مسايلو سره دې ليوالتيا سنجيده ده. تاسو غوندې خلکو کې راته هيلې ښکاري.)

ددې خبرو، شاليد، په خبرو کې دمو او په هوټلو کې د نورو خلکو شتون راته ډاډ راکړ. دا چې خلکو راته د ملګرې لاسونه راکول دې موضوع سره عادي شوی وم، لکه په اندونيزيا کې ريزي اوپه پانامه کې فيډل. ما په دې کې هم عزت محسوساوه او هم فرصت. ما له نورو امريکايانو سره دا توپير درلود چې کوم ځای کې به وم هغه ځای سره مې مينه پيدا کېده. زه په دې پوهېدم چې که تاسو د يوه چا کلتور او تمدن خواته خپلې سترګې او غوږونه پرانيزئ هغوی درته رانږدې کيږي.

يامين وپوښتلم چې د (زرغونېدونکې دښتې) له پروژې خبر يم؟ شاه فکر کوي چې زموږ دښته هم زرخيزه ميدان او شنه ځنګلونه وو، هغه داسې دعوه کوي، وايي چې د لوی سکندر پر وخت دهغه سخت زړي پوځيان له خپلو څارويو سره په دې ځای تېر شوي دي، دی څارويو ټول بوټي او ګياوې وخوړې. د بوټو له ورکېدو سره وچکالي راغله او اوږدې وچکالۍ دا ځای شګلنه دښته کړه. شاه وايي چې اوس بايد موږ دلته زرګونه ونې وکرو. دې سره به بارانونه پيل شي او دښته به بيا زرغونه شي. ددې کار لپاره بايد موږ

میلیاردونه ډالر ولګوو. بیا موسکی شو او ویې ویل : (ستاسو غونډې شرکتونه به ښې پیسې وګټي.)

(زه په پوهېږم ته په دې نظر نه یې)

( دا دښته یو سمبول دی، ددې زرغونول یوازې کرنه نه ده؛ نور څه هم دي.)

څو ښایسته ایرانیو خدمتګارو خواړه راوړل، یامین مانه اجازه واخیسته او د خپلې خوښې خواړه یې قاب کې واچول. بیا یې ماته راوکتل او ویې ویل :

(زه درنه یوه پوښتنه کوم، هغه څه شی و چې د امریکا د ځایي خلکو (انډین) تمدن یې له منځه یووړ؟)

ما ورته وویل ډېر لاملونه وو، چې حسد او درنې وسلې هم پکې وې.

(هو، بېخي سمه ده ! دا ټول لاملونه وو، خو د ټولو په نسبت یې ګنې چاپېرال ډېر خراب نه کړ؟) بیا یې خپل نظر لږ څرګند کړ، چې ونې بوټي، ځنګلونه او مېښې څنګه له منځه لاړې او په خلکو کې چې بیلتون راشي؛ نو د تمدن بنسټونه هم ورسره ولړزیږي.

خبره یې وغځوله: (وبه ګورې چې دلته به هم همداسې وشي. دا دښته زموږ چاپېریال دی. دا د زرغونېدونکې دښتې پروژه به زموږ چاپېریال خراب کړي. موږ څنګه دې بربادۍ ته اجازه ورکولای شو؟)

ما سپیناوی وکړ چې د پروژې وړاندیز ستاسو خپلو خلکو کړی دی. له طنزه ډکه موسکا یې وکړه او ویې ویل چې د شاه مغزو ته دا فکر د امریکا حکومت ورښکته کړی دی، دا شاه د امریکا ګوډاګی دی.

یامین وویل: (څوک چې له ایران سره رښتیا مینه لري دې پروژې ته هېڅکله اجازه نه ورکوي.) وروسته یې د خپلو خلکو او دښتې پر خپل منځي اړیکې خبرې وکړې. پر دې خبره یې ټینګار وکړچې زیاتره ایراني

ښاريان خپلې رخصتۍ په دښتو کې تېروي. هلته خيمې ودروي او له خپلو کورنيو سره په اونيو اونيو هلته پراته وي.

(مور، يعنې زموږ ولس د دښتې برخه ده، دا شاه چې په کومو خلکو د جبر حکومت کوي، دا يوازې د دښتې خلک نه دي، مور خپله دښته يو.)

وروسته يې راته په دښته کې د خپلو تجربو ډېرې کيسې وکړې. ماښام تېر و، زه يې په لوړ ديوال کې هماغه وړې دروازې پورې بدرګه کړم، موټروان راته کوڅه کې په تمه و، يامين لاس راکړ او مننه يې وکړه چې دومره وخت مې ورسره تېر کړ. زما د کم عمر او پراخه ذهن بياځلې صفت يې وکړ، يوه خبره يې راته وکړه، ويل يې که زما په څېر خلک په اپوزوسيون کې وي نو راتلونکي ته هيله کېدای شي. تر ډېره يې زما لاس په لاس کې نيولای و راته کړل يې : (په دې خوښ يم چې تا غوندې کس سره مې وخت تېر کړ، يوه بله غوښتنه درنه کوم او دا پوښتنه بايېزه نه ده؛ مهمه ده، غوښتنه څکه کوم چې تر ننني ليدنې وروسته، فکر کوم دا خبره به درته ډېره مهمه وي، ډېر څه به ترې ترلاسه کړې.)

(تاسو ووايئ، چې څه درته کولای شم؟)

(غواړم خپل يوه نږدې ملګري ته دې ور وپېژنم، دا کس درته زموږ د شاه په اړه ډېر څه ويلای شي، کېدای شي په ليدو يې حيران شې، خو زه باور لرم چې ليدنه به يې بې ګټې نه وي)

## نولسم فصل

# د يوه مظلوم کس اعترف

څو ورځې وروسته يامين زه له تهرانه بهر بوتلم. له ګردجنو لارو تېريده، د اوښانو په لاره روانه و، له څو خامو کورونو تېر شو او دښتې ته ورسيد. لږ د ښار تر شا ډوبېده او ده خپل موټر د کجورو د يوې چوپړۍ مخې ته ودراوه. ماته يې وويل: دا بڼ ډېر پخوانی دی آن د کولمبس له وخته هم پخوانی دی. بيا له ما مخکې شو د يوې چوپړۍ مخې ته ودريد او ماته يې کړل: دننه يو سړی ناست دی، هغه ستاسو په يوه مشهور پوهنتون کې ماسټري کړې ده. دا کس بايد نوم پټی (ګمنام) پاتې شي او په لامل به يې اوس پوه شې، ته ورته ډاکتر غږ کولای شې.

لرګينه دروازه يې وټکوله، له دننه ټيټ غږ راغی، يامين دروازه ببرته کړه او زه يې دننه بوتلم. خونه وړه وه، کړکۍ يې نه لرله، په يوه کونج کې پر مېز اينښي ډيوه بليده، زما سترګې چې روښانه شوې ومې ليدل چې پر ځمکه ايراني غالۍ غوړېدلې وه. بيا د يوه کس ښکالو شوه، ډيوې سره داسې کېناست چې مخ يې نه ښکاريده، زه همدومره پوه شوم چې په کمپلو کې پېچل شوی او په سر سر تور دی. په ويلچير (د معيوبينو سايکل) کې ناست و، په ټوله خونه کې يو مېز پروت و. يامين راته په قالينه د کېناستو اشاره وکړه، خپله مخکې تېر شو، احترام يې وکړ او ناست کس ته په قلاره ور غاړې واته، په غوږ کې ورته وبنګېد او بيا راغی ماسره کېناست.

هغه ته مخ يې کړ او زياته يې کړه: ما درته د ښاغلي پرکنز په اړه ويلي وو، دا دی ستا په مخ کې د حاضريدو وياړ مو په برخه دی.

په بلده لهجه یې راته وویل: ښاغلی پرکنز ښه راغلاست. سره له دې چې تر منځ مو واټن کم و خو د خبرې اوریدو لپاره یې زه باید لږ ورمخکې شوی وای، ادامه یې ورکړه: (دا ستا مخ کې چې نن کوم انسان ناست یم، زه له پخوا داسې نه وم، یو وخت زه هم تاغوندې روغ جوړ او قوي وم، دا د هغه وخت کیسه ده چې زه د شاه نږدې سلاکار او معتمد وم..... . ډېر وخت غلی و بیا یې په دردمنه او غوسه ناکه لهجه وویل: د شاهانو شاه.

ډېرو نړیوالو ادارو سره مې شخصي پېژندګلوي درلوده: آیرن هاور، نکسن، دې ګال... . هغه پر ما ډېر باور کاوه ویل یې چې زه به اقتصادي کمپ ته ددې هیواد په راتلو کې ډېره مرسته وکړم، شاه په ما ډېر باور کاوه خو ... بیا داسې یو غږ راغی چې ممکن د ټوخې به و خو زما خندا تر غوږو شوه : او پر شاه ډېر باور کاوه. زه د هغه له فصاحت او بلاغت نه اغېزمن وم. زه په دې باوري وم چې ایران به ټوله نړۍ د عصریت خواته رهبري کړي او په کړې ژمنه به عمل وکړي. داسې ښکاریده چې همدا زموږ تقدیر او منزل دی، زه او شاه او نور ملګري پکې بوخت وو، موږ داسې فکر کاوه چې موږ ددې ماموریت د سر ته رسولو لپاره زېږېدلي یو.

د کمپلو په ډېري کې ورو حرکت شو، ویلچیر په نري غږ سره تاو شو. ما د هغه کس د څېرې جوړښت لیدلای شو. ګڼه سپینه ږیره یې ښکارېدله، بیا زه بېخي وېرېدم، د هغې مخ بېخي هوار و، پوزه یې نه وه، زه ووریدم او په ډېر زور مې چیغه په ستوني کې بنده کړه.

(ته څه فکر کوې ښاغلیه پرکنز چې دا ډېره ښکلې منظره نه وه؟ تا لا زما ټوله څېره چېرې لیدلې ده، دا په رښتیا هم ډېره وېرووونکې ده.) یو ځل بیا د خندا ټېټ غږ پورته شو( باوري یم ته به په دې خبره پوهېږې چې زه ولې د ګمنامۍ په پرده کې بټ یم، په دې کې شک نشته که ته هڅه وکړې زما

تر اصليته رسيدی شې، خو ته به ايله په دې پوه شې چې زه مړ شوی يم. په رسمي ډول زه مړ يم او باوري يم چې ته به نه راپسې ګرځې، ستا او د کورنۍ خير دې په همدې کې دی چې ته په ماپسې ونه ګرځې ګني د شاه او ساواک SAVAK لاسونه ډېر اوږده دي.)

ويلچير بيا وخوځيد او خپل ځای ته لاړ، ما په ارام ساه واخيسته، ما داسې فکر کاوه چې د هغه د خبرې په نه ليدو د تشدد اثار تت شول. زه تر دې وخته په دې نه پوهېدم چې که په ځينو اسلامي هيوادونو کې که پر چا شک وشي يا د ټولنې د مشرانو د سپکاوي لامل شي نو پوزه يې پرې کيږي. دې کار سره به مشکوک انسان ټول عمر د ذلت دا نښه ګرځوي او ددې کس خبره يې تر ټولو بده بېلګه وه.

( ښاغلی پرکنز! ته به حتمن حيران يې چې موږ دې ځای پورې ولې په زحمت کړی يې.) زما خبرې ته په تمه نه شو زياته يې کړه . دا کس چې ځان د شاهانو شاه ګني په اصل کې يو شيطان دی . ستاسو سي اې ای ددې سړي پلار په دې تور له واکه ليرې کړ چې له الماني نازيانو سره اړيکې لري او زه په دې خبره ډېر افسوس کوم چې په دې تور کې ماهم مرسته کړې وه. بيا د مصدق خبره راپورته شوه اوس شاه په بدۍ کې له هلتره د ميدان ګټلو په هڅه کې دی اوستاسو حکومت ښه په دې راز پوه هم دی خو بيا يې هم ملاتړ کوي او ملاتړ خو لا څه چې دا شخص همدا ستاسو د حکومت په ډاډګيرنه دا ټول کارونه ترسره کوي.

ما ورته ووېل: خو داسې ولې کوي؟

( ساده خبره ده، په منځني ختيځ کې ستاسو همدا يو ملګری دی، د صنعت ټاير په نفتو تاويږي او نفت يعنې منځنی ختيځ. هو دا خبره رښتيا ده چې تاسو اسرائيل هم لرئ خو هغه ستاسو مرستندويه نه بلکې پر تاسو بار دی

او دا کومه لویه خبره نه ده چې هلته نفت نشته. ستاسو سیاسیون اړ دي چې رایه ورکوونکي خوښ وساتی او د هغوی په پیسو خپل ټاکنیز کمپاینونه ترسره کړي. زه پوهېږم چې تاسو اسرائیلو سره ښکیل شوي یاست، اوس ایران یوازینی کیلي (کونجي) ده. ستاسو د نفتو شرکتونه تر یهودو ډېر قوي دي او موږ ته اړتیا لري. تاسو زموږ شاه ته اړتیا لرئ، یا داسې فکر کوئ چې زموږ شاه ته اړتیا لرئ، دا فکر ستاسو د خلکو هغه فکر ته ورته دی چې ویل یې تاسې د جنوبي ویتنام فاسدو رهبرانو ته اړ یاست.)

(آیا تاسو کوم متبادل وړاندیز لرئ؟ آیا ایران دویم ویتنام کېدای شي؟)

(اصلي حالت خو له دې بدتر دی، ددې شاه ورځې کمې دي، ټوله اسلامي نړۍ ترې کرکه کوي، یوازې عرب نه بلکې د نړۍ په هر ګوټ کې مېشت مسلمانان له ایرانه کرکه لري.)

د سوک غږ مې تر غوږو شو، ومې لیدل چې د سایکل لاستي ته یې سوک ورکړ، دې سره یې چیغې کړې (دا سړی د بدیو مجسمه ده، موږ ایرانیان ترې کرکه کوو) بیا چوپتیا خپره شوه، د سوځېدلې ساه غږ پورته کېده، داسې ښکاریده لکه چې د خبرو تکلیف هغه ستړی کړی دی.

یامین په ټيټ او مطمین غږ وویل (ډاکټر دینی طبقو سره ډېر نږدې دی، دلته په هغو خلکو کې ډېره ګټه ده او دا حالت په ټول هیواد کې دی. په سوداګره طبقه کې څو کسان ده سره دي او هغوی هم په پانګوال نظام کې ښایسته ډېره ګټه کړې ده.)

ماوویل: (زه ستا په خبره شک نه کوم خو دومره وایم چې زه څلور ځله ایران ته راغلی یم او هېڅکله داسې خبرې سره نه یم مخ شوی، ما چې هر څوک لیدلي د شاه پلویان وو، هر چا د شاه اقتصادي پرمختګ ته په ښه نظر کتل)

یامین خپل نظر څرګند کړ: (ته په فارسي نه پوهېږې، تا چې هر څه اوریدلي ځانغوښتونکې طبقې درته ویلي دي، دا هغه خلک دي چې په امریکا او انګلستان کې یې زده کړې کړې او د شاه پلویان دي، خو موږ ته مخامخ ناست ډاکټر پکې استثنی دی.)

هغه لږ غلی شو، لکه چې په خپلو نورو خبرو یې فکر کاوه : (ستاسو رسنۍ هم په همدې حال دي، زیاتره وخت د شاه له پلویانو سره خبرې کوي او یو حقیقت دا هم دی چې ستاسو رسنۍ د نفتو تر اغېز لاندې دي؛ دوی هغه څه اوري چې اوریدل یې غواړي او هغه څه لیکي چې لوستونکي یې لوستل غواړي.)

د ډاکټر غږ پورته شو، دا ځل یې غږ تر مخکې ډېر دروند و، داسې ښکاریده لکه خپل ټول احساسات یې چې کارولي وي (ښاغلی پارکینز موږ دا خبرې تاته ولې کوو؟ ځکه غواړو تا په دې قانع کړو چې ته خپله هم له دې هیواده ووځې او خپل شرکت هم پوه کړې چې له دې هیواده لېرې وګرځي. که ته دا فکر کوې چې دلته به ډېرې زیاتې پیسې وګټې نو دا ستا وهم دی، دا حکومت ډېر وخت نه پاتې کېږي.) لاسونه یې د څوکۍ پر لاسکو (بازوګانو) زور کړل، زیاته یې کړه: (او دا حکومت چې له منځه لاړ شي ځای ناستی حکومت به یې نه ستاسو خوږمن وي او نه ستاسو د ډلې.)

( یعنې زموږ پور به پاتې شي؟)

شدید ټوخي ډاکټر بې حاله کړ، یامین ورمخکې شو، د هغه ملا یې ووډبوله، ټوخی چې لږ ارام شو نو ډاکټر ته یې په فارسي کې څه وویل او بېرته خپل ځای ته راغی.

ماته یې مخ کړ: (دا خبرې همدلته ختموو، ستا د پوښتنې ځواب دا دی چې ستا پور نه پرې کیږي، تاسو به خپل ټول کار وکړئ او چې کله د پېسو اخیستو وخت راځي؛ نو شاه به ختم شوی وي.)

په بېرته راتلو کې مې یامین وپوښته، چې تاسو ولې MAIN اداري له هغه مالي زیانه ژغورئ چې ډاکټر یې وړاندوینه وکړه.

(که ستاسو شرکت دیوالیه شي نو موږ به ډېر خوښ شو، خو که تاسو ایران پرېږدئ نو دا به موږ ته ډېره ښه وي. که ستاسو غوندې شرکتونه له ایرانه لاړ شي د نورو علاقه به هم کمه شي. موږ شخړې او وژنې نه خوښوو، خو د ایران شاه باید له دې ځایه لاړ شي او موږ ددې کار لپاره هر څه کولای شو، څکه درنه غوښتنه کوو چې خپل مشر Zambotti پوه کړه چې د تللو لپاره کافي وخت لري او باید چې ګټه ترې واخلي.)

(خو زه ولې؟)

(په کومه شپه چې موږ یو ځای ډوډۍ وخوړه او د دښتې په پلان مو کار کاوه؛ نو ما فکر وکړ چې ستا زړه ته حقیقت لار موندلې ده، ستا په اړه چې موږ څومره معلومات لرل ټول سم ثابت شول، ته د دوو انتهاو تر منځه سړی یې.)

زه په دې فکر کې شوم چې دوی به زما په اړه څومره معلومات لري.

## شلم فصل

# د یوه شاه ځوړ (زوال)

دا ۱۹۷۸ز کال د یوه مازیګر کیسه ده. په دې مازیګر زه د تهران د انټرکانټینینټال هوټل په مجلل تالار کې یوازې ناست وم. چا په اوږه وټپولم، چې مخ مې ور واړوه یو قوي ایراني مې شاته ولاړ و.

(جان پرکنز، زه دې لکه چې هېر کړی یم؟)

د فوټبال دې پخواني لوبغاړي خپل وزن ډېر کړی و خو غږ یې لا هماغسې و. دا زما د مډل بري د وخت پخواني ملګری فرهاد و چې ما له ډېره وخته نه و لیدلی. روغبړ مو وکړ او یو ځای کېناستو، ډېر زر په دې پوه شوم چې فرهاد زماله ټولو کارونو خبر شوی دی، په دې هم پوه شوم چې هغه راته دخپلو کارونو او فعالیتونو په اړه معلومات نه راکوي.

دویم ځل مو چې د څښاک فرمایش ورکړ هغه راته وویل: (زه فکر کوم چې اصلي خبرې ته باید راشو. سبا روم ته روانیږم، هلته مې مور او پلار اوسیږي، ستا ټکټ هم راسره دی، دلته انتشار پیل شوی دی، ته باید له دې ځایه ووځې.) ټکټ یې راته راکړ او ما یې په دې خبره کې هېڅ شک نه وکړ.

په روم کې مو د فرهاد له کورنۍ سره د غرمې ډوډۍ وخوړه، پلار یې متقاعد جنرال و. یوه ورځ یو قاتل پر شاه برید وکړ، د فرهاد پلار یې تر منځه شو او شاه یې وژغوره. خو اوس د شاه طلسم مات شوی و، هغه وویل چې په تېرو څو کلونو کې شاه خپله اصلي څېره ښودلې ده. ځانغوښتنه او طمع یې د شخصیت بنسټ ګرځېدلی. جنرال په امریکایي پالیسۍ خبرې پیل کړې: د اسرئیلو فاسدو رهبرانو او د ټولواکو امپراتورانو خبرې یې وکړې. ویې ویل

چې له همدې امله په ټول منځني ختیځ کې د امریکا پر وړاندې کرکه پیدا شوې ده، ورسره یې دا وړاندوینه هم وکړه چې شاه اوس یوازې د څو میاشتو مېلمه دی.
(ته پوهېږې ددې سرغړونې (بغاوت) تخم تاسې په ۱۹۵۰ مې لسیزې کې، هغه وخت کرلی و چې د مصدق حکومت مو چپه کړ. هغه وخت تاسو فکر کاوه چې ډېر هوښیار یئ، ما هم همداسې ګڼله، خو اوس دا بلا بېرته ستاسو خواته در روانه ده او ستاسو تر څنګ په موږه هم مسلطیدل غواړي.
۱
زه دې فکرونو ګنګس کړم، ما داسې خبرې له یامین او ډاکټر نه هم اوریدلې وې خو ددې سړي له خولې یې هدف دا و چې ددې خبرې تر شا نورې معناوې هم شته. تر دې وخته ډېر خلک په پټې توندروې اسلامي ډلې خبر شوي وو، خو موږ ځان ته په دې ډاډ ورکاوه چې شاه د خلکو په زړونو کې ځای لري او په سیاسي ډول ماته نشي خوړلای. جنرال خپل یو نظر درلود او په هماغه کلک ولاړ و.
په ډاډمنه لهجه یې وویل: (دا یاد ساته، د شاه ځوږ (زوال) پیل دی، دا به یوازې د هغې رڼا یو څرک وي، چې وښیي اسلامي نړۍ کومې خواته روانه ده. زموږ زغم او خفګان تر ډېره د شګو تر ډېري لاندې پټ و اوس نو حوصله ختمه ده.)
د شپې پر ډوډۍ مې د آیت الله روح الله خمیني په اړه ډېر څه واوریدل. فرهاد او پلار یې وویل چې دوی د شیعه ایز تعصب پلویان نه دي؛ خو دوی چې په کوم ډول د شاه پر وړاندې ودریږي له دې حالته یې اغېزمن دي. هغوی راته وویل چې دا دیني عالم په ۱۹۰۲ ز کال کې تهران ته نږدې په یوه کلي کې د شیعه عالمانو په یوې کورنۍ کې زیږېدلای دی. په

۱۹۵۰ ز کال کې يې د مصدق شاه په وېش کې ځان بې طرفه وساته خو په ۱۹٦۰ مه لسيزه کې يې په ښکاره د شاه مخالفت پيل کړ. د شاه په اړه يې په شد او مد خبرې وکړې چې هيواد يې پرېښود ترکيه ته لاړ، هغه ځای نه د عراق برکتي ښار نجف ته لاړ او هلته يې د مخالف حزب د مشر په توګه دروند ښه راغلاست وشو. له هغه ځايه يې د ليکنو، مضامينو او ثبت شويو پيغامونو په مرسته ايرانيان راوپارول، ويې درول چې د شاه تخته واړوي او پر ځای يې يو مذهبي حکومت رامنځته کړي.

فرهاد دوی کره مې دوه شپې شوې وې چې په ايران کې د بمبارۍ او شخړو خبرونه خپاره شول. آيت الله خميني او پلويانو يې د شاه پر ضد هغه فعاليتونه پيل کړل چې په مرسته يې دوی واک ته رسېدل. تر دې وروسته هر څه ډېر زر کېدل. فرهاد او پلار يې چې د کوم زغم او غوسې خبره کړې اوس د اسلامي تحريک په شکل راڅرګنديده. د ۱۹۷۹ زکال د جنورۍ په مياشت کې شاه مصر ته وتښتېد او هلته د سرطان له تشخيص وروسته د نيويارک په يوه روغتون کې بستر شو.

د آيت الله پلويانو يې د ببرته لېږلو غوښتنه کوله. د ۱۹۷۹ز کال د نومبر په مياشت کې د اسلامي جنګياليو يوې ډلې د امريکا سفارت ونيو او ۷۲ امريکايان يې تر ۴۴۴ ورځو يرغمل وساتل. (۲) ولسمشر کارټر د يرغمل شويو د خلاصون لپاره د خبرو اترو هڅې وکړې، دا هڅې چې ناکامي شوې د ژغورنې پوځي ماموريت يې طرح کړ چې ۱۹۸۰ زکال په اپريل مياشت کې يې سخته ماتې وخوړه او بلاخره همدا کار د کارټر د ولسمشرۍ پر تابوت وروستی مېخ ثابت شو.

د امريکا سياسي او سوداګريزو کړيو په رنځور شاه دومره فشار راوړ چې هغه يې له امريکا وتلو ته اړويست. په کومه ورځ چې له ايرانه تښتيدلی و هيڅا

پناه نه ورکوله، ټول ملګري يې ترې تښتېدل. يوازې يو کس و چې د انساني همدردۍ له مخې يې پناه ورکړه، که څه هم هغه کس يې له سياسته کرکه لرله. دغه کس د پانامې ولسمشر عمر طوريجو و. شاه پانامې ته لاړ او هلته مېشت شو چې اوس اوس پکې د يوه کانال د کيندلو تړون لاسليک شوی و.

د ايران مذهبي ډلو ويل چې يرغمل شوي کسان به د شاه په بدل کې خوشې کړي. په امريکا کې چې کوم خلک د پانامې د کانال له تړون سره وران وو، هغوی د پانامې په ولسمشر د خيانت تور پورې کړ، د ايران د شاه پلوي يې وباله ويې ويل چې دوی په لوی لاس امريکايي وګړي د مرګ خولې ته ټېل وهي، دوی هم وغوښتل چې شاه دې خميني ته وسپارل شي. شک زېږوونکې خبره دا وه چې په همدې خلکو کې يې ځينې تر څو اونيو مخکې د شاه کلک پلويان وو. د متکبرو شاهانو شاه بلاخره مصر ته راغی او هلته د سرطان ناروغۍ له امله ومړ.

د ډاکټر وړاندوينه ټکي په ټکي رښتيا ثابته شوه. MAIN له مليونونو ډالرو لاس ومينځه. زموږ سيال شرکتونه هم په همدې حال شول. کارټر بيا ټاکنې ونه ګټلې، ريګن همدې ژمنې سره واشنګټن ته رانوت چې يرغمل شوي خلک به راخلاصوي، ديني کړۍ به ځپي، ايران کې به جمهوريت رامنځته کوي او د پانامې د کانال حالت به هم قابو کوي.

زه په دې سبق کې شک نه لرم. ايران دا خبره سپينه کړه، امريکا هغه ولس دی چې په نړۍ کې زموږ د حقيقي حيثيت پر وړاندې خنډونه جوړوي. په دې خبره نه پوهېدم چې موږ ولې د شاه او د هغه پر ضد له دومره کرکې ناخبره وو. تر ټولو جالبه دا ده چې MAIN ته ورته د نورو شرکتونو دفترونه په ايران کې وو، خو له دې سره بيا هم په تياره کې ساتل شوي وو. زه په

دې باوري يم، له کومې خبرې چې طوريجو په ۱۹۷٦ز کال کې خبر و NSA او CIA ترې بې خبره نه وې، داسې ښکاري لکه زموږ استخباراتي ملګرو چې په لوی لاس زموږ په سترګو کې خاورې اچولې وي.

## حوالې


۱. "The Iran Conspiracy" New York Review of Books, Sept ۲۳, ۲۰۰۳.

- "All the Shah's Men..........

تايمز مجله: ۱۲ فيبروري، ۱۹۷۹ ز - ۷ جنوري ۱۹۸۰ - ۱۷ اګست ۱۹۸۷ز.

## یویشتم فصل

# کولمبیا : د لاتینې امریکا د ملا تیر

په یو وخت د عربستان، ایران او پانامې مطالعه هم زړه راښکونکې ده او هم ځوروونکې. پر دې سربېره دا هیوادونه غیر عادي هم دي. په عربستان او ایران کې تېل او پانامه کې کانال، دا هیوادونه غیر عادي کړي دي. د کولمبیا حالت بیا یو څه ځانګړتیاوې لرلې. دلته MAIN د برېښنا یوه ستره پروژه ډیزاین کړې وه او همدې شرکت یې باید رغزنیزې چارې ترسره کړې وې.

د کولمبیا د پوهنتون یوه پروفیسور د امریکا پر خپل منځي اړیکو یو کتاب لیکه، هغه راته وویل چې تیډي روز ویلیټ ددوی د هیواد ارزښت یاد کړی دی. ویل کیږي د امریکا ولسمشر یې نقشې ته په اشاره ویلي چې کولمبیا د جنوبي امریکا د محراب کلیدي ډبره ده. ما هېڅکله ددې کیسې د حقیقت موندلو هڅه نه ده کړې خو که نقشې ته وګورو دا معلومات کیږي چې کولبمیا د امریکا د جنوبې لویې وچې، ببخي دپاسه ده، همدا لامل دی چې ټوله خطه سره یو ځای کوي او ټول جنوبي هیوادونه د پانامې له خاکنا سره یو ځای کوي او د همدې اړیکې پر بنسټ منځنۍ او شمالي امریکا هم سره وصل کوي.

روز ویلیټ به دا خبره کړې وي یانه، خو دا حقیقت دی چې د څو نورو ولسمشرانو په خبر دی هم ددې سیمې په مرکزي ارزښت پوهېده. له نږدې دوو پیړیو راهیسې امریکا کولمبیا کلیدي ډبره ګڼلې او که لږه سپینه یې ووایو نو دا په جنوبي نیمه کره کې د سیاست اوسوداګرۍ مرکزي دروازه ده.

پردې هیواد خدای ښایست لورولای دی. د اقیانوس او الکاهل بحرونو پر دواړه غاړو د (Palm) ( خرما، کوپرې) ونې ولاړې دي. ښایسته غرونه، پراخه میدانونه چې په شان او شوکت کې له شمالي امریکا کم نه دي، تر ځنګ یې ګڼ ځنګلونه چې بېلابېل ژوي پکې اوسیدل. ددې ځای خلک بې شمېره ښېګنې لري، د بېلابېلو ژبو امتیازي صفت او د هغه په شالید کې بدني، کلتوري او هنري لیوالتیاوې یې ډېرې دي. په دې ځای کې خپل تولید هم شته او له افریقا، آسیا، اروپا او منځنې ختیځ نه هم ورته واردات کیږي.

له تاریخي پلوه کولمبیا د لاتیني امریکا په تاریخ او کلتور کې ډېره ونډه لرلې ده. په استعماري دور کې کولمبیا د ټولو هغو هسپانویانو مرکز و چې د پیرو په شمال او د کوستاریکا په جنوب کې میشته وو. د هغه وخت لرغونې هسپانوي بیړۍ چې له چیلي او ارجنټاین نه به یې مالونه لیږدول د همدې کولمبیا له ساحلي ښار کارتاجینا نه روانېدې. د امریکا د خپلواکۍ په جګړه کې هم ځینې مهم کارونه همدلته وشول؛ لکه په ۱۹۱۸ ز کال کې د سایمن بولیور په مشرۍ جنګیدونکي پوځ په همدې ځای کې د بویاکا په جګړه کې د هسپانوي شاه پلوي پوځ ته ماتې ورکړه.

په معاصر دور کې یې امتیاز دا دی چې د لاتیني امریکا مشهور لیکوال، شاعران، هنرمندان، فیلسوفان او پوهان په همدې هیواد کې پیدا شوي دي. ددې ترځنګ د مالیاتو سیستم او تقریباً ښه جمهوري حکومت هم د همدې هیواد امتیاز دی. د ولسمشر کینیډي د ملي رغونې په پروګرام کې همدا هیواد ټولې لاتیني امریکا ته بېلګه وه. د ګویټې مالا په څېر ددې هیواد لمنه هم د CIA د روزنې له توره پاکه وه. ددوی چلند له نکاراګوا سره توپیر درلود، ځکه دلته حکومت منتخب و، چې ښې لاسو او کیڼ لاسو

دوارو چاروکو ته یې برابر فرصت ورکاوه او وروستی خبره دا چې د نورو قوي هیوادونو ( برازیل او ارجنټاین) په څېر یې هېڅکله پر امریکا بې باوري ښکاره نه کړه. دوی د باوري متحدینو په څېر سره پېژندل؛ سره له دې چې پوهېدل دلته د مخدره توکو لوی قاچاقبران فعالیتونه کوي. (۱)

د کولمبیا د تاریخ په روښانه پاڼو، ددوی د کرکې او تاوتریخوالي داغونه یې ټولې ښې لاس ته راوړنې توروي. دا د هسپانوي پوځونو او د کلیسایي احتساب Inquistion بدنام مرکز هم پاتې شوی دی. ښایسته ماڼۍ، ښارونه او ودانۍ یې د هندي او افریقایي غلامانو په وینو ابادې شوي دي. له همدې ځایه په هسپانوي بېړیو کې خزانې، مقدسات او هنري شهکارونه (چې د لیږد اسانتیا لپاره ویلي کېدل) بار او د جنګي اتلانو د وریو تورو خوراک کېدل. دا شیان د هغه وخت د خلکو د زړه ټوټې وې. په نږدې وخت ۱۹۴۵ کې دلته ټاکنیزې شخړې د دوو حزبونو تر منځ د سیاسي اختلافاتو لامل شوې، چې بلاخره په یوه لوی تاوتریخوالي ( ۱۹۴۸ - ۱۹۵۷) واوښتې او تر دوه سوه زرو زیات کسان پکې ووژل شول. له دې ټولو ستونزو سره بیا هم واشنګټن او وال سټریټ (د امریکا د ونډو بازار)، د بین الامریکایي اړیکو او سوداګرۍ د پراختیا لپاره کولمبیا یوه مهم عنصر ګڼلی دی. پر جغرافیایي موقیعت سربېره نور لاملونه هم لری: ددې نیمې کرې رهبرانو د لارښوونې او پرېکړې لپاره بوګاټا د کولمبیا پلازمینه) ته سترګې نیولې وې. دلته داسې ډېر شیان پیدا کیږي چې امریکا یې ستره پېرودونکې ده ؛ لکه قهوه، کېله، توکر، زمرد، ګلان، تېل او کوکاین .... او ددې تر څنګ کولمبیا خپله هم د امریکا لپاره یو ستر اقتصادي بازار (مارکیټ) دی.

د شلمې پېړۍ په وروستيو کې چې موږ په کولمبيا يو تر ټولو مهم توکی وپلوره؛ هغه انجينري او تعميراتي مهارت و. ما چې په څومره ځايونو کې کار کړی دی کولمبيا په ټولو کې يوه نمونه ده. دلته ددې خبرې څرګندونه اسانه وه چې دا هيواد لوی لوی پورونه واخلي، پروژې عملي کړي او د همدې پروژو په ګټې ببرته خپل پورونه پرې کړي. نو له دې امله دا شونې وه چې پر برښنايي انرژۍ، لويو لارو او مخابراتو پانګونې وشي او ددې په مرسته کولمبيا وکولای شي چې خپلې د تېلو او ګازو زېرمې راوباسي او د امازون دې لويې سيمې ته پرمختګ ورکړي. په همدې پروژو کې به دومره ګټه کېږي چې پور او سود دواړه به ترې پرې کېږي.

دا خبره د نظر په توګه سمه وه. خو زموږ اصلي هدف د نورې نړۍ په څېر دلته هم دا و چې بوګاټا په خپله ولکه کې راوړل شي او نړيوالي امپراتورۍ ته لاره هواره شي. زما کار دلته هم د نورو ځايونو په څېر و، هماغه لويو پورونو لپاره د دوسيو جوړول. کولمبيا د پانامې په څېر (طوريجو) نه درلود؛ نو ما هم پرته له دې بله لار نه لرله چې د غوښن اقتصادي پرمختګ او برښنا وړاندوينه جوړه کړم.

د خپل کار لپاره راسره د جرم يو احساس و، خو له دې پرته هم راته کولمبيا د پناه يو ځای و. ما او اين AAN په ۱۹۷۰ ز کال کې يو څو مياشتې همدلته تېرې کړې وې. موږ پر کارابين ساحل د قدم وهلو سربېره په غرونو کې د قهوې د يو څو وړو فارمونو لپاره پيشکي پيسې هم ورکړې وې. موږ په تېر وخت کې يو بل ته ډېر ټېونه ورکړي وو، دلته څه وخت ګډ ژوند هغه ټپونه رغيدو ته ورنږدې کړي وو؛ خو بلاخره دا ټپونه نور هم ژور شول او زموږ د بيلتون ( وَاده ماتيدو) لامل شول، دا نو هغه پړاو و چې ما پکې رښتيا دا هيواد وپيژانده.

په ۱۹۷۰ ز کال کې MAIN ته ډېرې رغنيزې پروژې ورکړل شوې، په دې کې د برښنا اسانتيا او د ويش د سيستم طرح هم وه. دا برښنا بايد له ځنګلونو د غرونو سر ته پورته شوې او ښارونو ته ليږدول شوې واى. ماته يې په ساحلي ښار (بران قله) کې دفتر راکړ، همدلته په ۱۹۷۷ کال کې يوې ښايسته کولمبايي مېرمنې سره مخ شوم چې وروسته زما په ژوند کې د ژور بدلون لامل شوه.

سترګې يې شنې او ويښته يې سره وو. مور او پلار يې د ايټاليا له شماله دلته راکډه شوي وو. د خپلو اجدادو د شغل په تعقيب (فيشن ډيزاينره) شوې وه. دا لا پکې يو قدم مخکې هم تللې وه، يوه وړه فابريکه يې جوړه کړې وه او دې پکې د خپل هنر ننداره په کاليو کې وړاندې کوله. دده مصنوعات پر ټول هيواد سربېره پانامې او وينزويلا کې هم خرڅېدل. ډېره خواخوږې مېرمن وه. زما د واده ماتيدو په غم هېرولو او د ښځو په اړه زما د منفي احساساتو په ختمولو او ‌ بېرته رغولو کې يې ډېره مرسته راسره وکړه. تر څنګ يې په دې هم پوه کړم، چې زه د خپل مسئوليت له مخکې کوم کارونه کوم پايلې به يې څه وي.

ما مخکې هم ويلي وو چې ژوند د پېښو ټولګه ده او موږ پرې هېڅ واک نه لرو، دا هم ماسره يوه پېښه وه. زه په داسې کورنۍ کې رالوی شوم چې مور او پلار مې د نيوهمپشاير ايالت په يوه ښوونځي کې د ماشومانو ښوونکي وو. هلته مو له اين AAN او د هغې له تره فرينک سره وليدل، د ويتنام جګړه او اينارګريو ليدل . يو حقيقت دا هم دی چې کله موږ له داسې پېښو سره مخ کېږو نو ځينې متبادلې لارې هم راته څرګنديږي. په داسې وخت کې زموږ غبرګون څه وي؟ زموږ پرېکړې څه وي؟ زموږ اقدامات څه وي؟ په دې کې ډېر توپير رامنځته کيږي؛ مثلاً په ښوونځي کې محسوسه ونډه،

اين سره واده، پيس کور ته تلل، د خپلې خوښې له مخې په اقتصادي اداره کې د جنايتکار دنده ... دې ټولو پريکړو زه د ژوند اوسني پړاو ته راوستی وم.

همداسې پاولا هم يوه لويه پېښه وه. دې مېرمن راباندې دومره اغېز وکړ چې زما د ژوند لارې بدلې شوې. ددې له ليدو مخکې زه له خپل سيستم سره سم روان وم، زياتره به مې له ځانه دا پوښتنه کوله چې زه څه کوم؟ په دې خبره به مې د ملامتيا احساس هم کاوه خو زياتره به مې په دې سيستم کې د پاتې کېدو جواز هم پيدا کاوه. فکر کوم چې پاولا راسره په سهي وخت کې مخ شوه. کېدای شي ما په خپله طريقه هم له دې نظامه بغاوت کړی وی؛ مخصوصاً عربستان، ايران او پانامه کې چې ما کومې تجربې وکړې زه يې هر وخت دې پرېکړې ته اړيستلای شوم. خو زه باور لرم لکه څنګه چې راته کلاډين دې کار ته په راتلو کې مهمه وه همداسې راته اوس پاولا سره مخ کېدل هم ډېر مهم وو. دې زه چمتو کړم چې د خپل زړه تل ته ورکوز شم، پوه به شم چې تر څو مې همدا غبرګون وي هېڅکله به د هوساينې احساس ونه کړم.

حوالي :

۱- " Thy Will be Done, the Conquest of the Amazon: Nelson Rockfeller and Evangelism in the Age of oil": Gerard Colby and Charlotte Dennet.

## دوه ویشتم فصل

# امریکایي جمهوریت او نړیواله امپراتوري

یوه ورځ مو چې په قهوه خانه کې له ناستې خوند اخیسته، پاولا راته وویل :
(زه غواړم سپین یې درته ووایم، تاسو پر دې سیند بند ترځ، خو په غاړه یې چې کوم هندیان او بزګر اوسیږي تول یې درنه کرکه کوي. د ښار خلک مستقیماً نه اغېزمن کیږي خو هغوی هم د هغو غلچکیو جنګیالو ملاتړ کوي چې ستاسو پر پروژو به بریدونه کوي. ستاسو حکومت دې خلکو ته کمونیست، ترهګر، قاچاقبر او نور وایي، خو حقیقت خبره دا ده، دوی له خپلو کورنیو سره په خپله ځمکه اوسیږي او تاسو غواړئ چې دا ځمکه ترې واخلئ او یا یې له منځه یوسئ.)

ما ورته په همدې ورځو کې د مینوول تورس Manuel Torres په هکله ویلي وو، دې کس په MAIN کې د انجینر دنده لرله، په همدې غلچکیو (ګوریلا) جنګیالو برید هم کړی و. مینوول کولمبیایي وو، زموږ په شرکت کې یې ځکه کار کاوه چې دده پر ځای مو هلته امریکایي وګړی نه شو استولی. موږ (چې ځینې کولمبیایان) هم پکې وو، د امریکا ددې پالیسۍ په اړه به مو په طنزیه انداز ویل چې له کولمبیایانو باید یوازې کار واخیستل شي. دا هغه سبمولیک فکر و چې زما ترې نوره کرکه کېده او د همداسې کړنو پر ضد مې احساسات ببخي باغي کېدل.

ما پاولا ته وویل د مینوول د وینا له مخې هغوی په کلاشنکوف هوایي ډزې کړې او دا یې په پښه هم ویشتلی دی. هغه چې راته دا درې خبرې کولې ډېر ډاډه مالومیده خو زه پوهېدم چې هغه وېرېدلی و، هغوی هېڅوک نه

دي وژلي، يوازې هغه ليک يې خلکو ته ورکړی او بېرته په خپلو کښتيو کې تللي دی.

پاولا وويل : ( اوه خدايه، هغه غريب خو به سم وېرېدلی وي)

(هو ډېر وېرېدلی و) پاولا ته مې وويل ، ماترې پوښتنه هم کړې وه چې دوی د کومې ډلې خلک وو، د LRC که M-۱۹ (دواړه د کولمبيا ډېرې بدنامې غلچکی بريدګرې ډلې دي.)

(بيا هغه څه وويل؟)

(هغه راته وويل چې له يوې ډلې هم نه وو، خو په ليک کې يې چې څه ليکلي ټکي په ټکي به يې عملي کوي.)

پاولا ورځپانه واخيسته او په لوړ غږ يې لوست پيل کړ:

( موږ خلک، چې يوازې د ژوندي پاتې کېدو لپاره شپه او ورځ زيار ګالو، د خپلو نيکونو په وينه قسم کوو چې په خپلو سيندونو به د برښنا بند جوړيدو ته نه پرېږدو. موږ ساده اندين او mestizos * وګړي يو. که مړه هم شو خپله ځمکه تر اوبو نه شو لاندې کولای، خپلو کولمبايي ورونو ته خبر ورکوو چې دې رغزنيو شرکتونو سره دې کار نه کوي.)

((Mestizos هغه خلک چې د هندي او هسپانوي مخلوط نسل اړوند دي))

• بيا يې ورځپانه يو څنګ ته کېښوده او زه يې وپوښتلم:

( تا ورته څه ځواب ورکه؟)

زه لږ حيران شوم : (ما هيڅ ځواب نه درلود، ما خو بايد هماغه مې ويلی وی چې د شرکت پاليسي ده، ما يوازې دومره ترې وپوښتل چې ته څه فکر کوې چې يو ساده بزګر داسې ليک ليکلای شي؟)

هغه ماته ځير وه.

( سمه ده، خو په دې شرط چې په دې موضوع به بله ورځ خبرې کوو.)
کاشوغه يې د قهوې په پياله کې تاوه کړه، بيا يې په خوله کې پاکه کړه او ويې ويل:
( له دې پرته يې څه کولای شول؟ هغوی اړ وو چې په عصري وسلو پوه شي او هغو هسپانوييانو سره وجنګيږي چې ستاسو په ښوونځيو کې روزل ويږي، بې له دې يې د وسلې اخيستو لپاره څه لاره درلوده؟ دوی ډېر سخت حالت سره مخ دي، ستاسو نړيوال بانک ورسره د خپلې دفاع په خاطر هم مرسته نه کوي. حقيقت خو دا دی چې دوی دې حال ته همدې اداري (نړيوال بانک) رسولي دي.)
له خپلې قهوې يې يو ګوټ وکړ، خبره يې وغځوله:
( زه پوهېږم چې ددوی اهداف جايز دي، دا برښنا به يو څو شتمنو خلکو ته ګټه ورسوي؛ خو زرګونه خلک به ورک شي، ځکه تر څو چې ستاسو دا بند جوړيږي اوبه او کبان (ماهيان) به زهرجن شوي وي. )
زمونږ مخالفينو سره د خواخوږۍ دومره خبرې مې چې واوريدې زما غوږنې څيږ شول او ځان مې وسکونده :
( ته د غلچکيو په اړه څنګه دومره پوهېږې؟)
ما چې دا پوښتنه وکړه؛ نو داسې مې احساس کړه چې زړه مې ډوبيږي، د راتلونکو خطراتو په نظر کې نيولو سره مې نه غوښتل چې ددې پوښتنې په ځواب پوه شم.
هغې وويل: (زه يې له ځينو سره ښوونځي ته تللې يم) لږه ناراحته شوه، پياله يې پورته کړه، زياته يې کړه : (زما خپل ورور هم دې تحريک سره دی.)

همدا اصلي تکی و. ما ځان ډېر کمزوری احساس کړ. فکر مې کاوه چې ددې په اړه په هر څه پوهېږم خو دا خبره مې ذهن ته نه وه راغلې، دې خبرې سره مې په ذهن کې داسې يو خيال راغی لکه يو څوک چې خپل کور ته راشي او خپله مېرمن له بل چاسره ووينې، ومې پوښتله :

(دا خبره دې راته مخکې ولې نه کوله؟)

(اړوند نه وه ځکه مې نه ويله، نوره داسې کومه خبره نه وه چې ما کړې وی)

يوه شېبه غلې وه بيا يې وويل: (دوه کاله وشو چې نه مې دی ليدلی، احتياط بايد ورسره وشي.)

(ته څه پوهېږې چې هغه ژوندی دی؟)

(زه نه پوهېږمه، يوازې دومره پوهېږم چې حکومت په تور لست کې داخل کړی او دا ماته يوه اشاره ده.)

زما په وجود کې يو کشمکش پيدا شوی و چې اوس بريدګر که دفاعي انداز خپل کړم. هيله مې لرله چې زما په حسد نه وي پوهه شوي، پوښتنه مې وکړه: (نو هلته څنګه ورغی؟)

له ښه مرغه سترګې يې په پياله خښې وې :

(د تېلو يو شرکت و، غالباً آکسيډينټل ... د هغوی د دفترونو مخې نه يې مظاهره کړې وه چې پردی ځمکې ولې کيندل کيږي. ويل يې دا کيندنې د هغو قبيلو په ځنګلي ځمکو کيږي چې دمخه لا خواران له فنا سره مخ دي. ډېر شمېر ملګري هم ورسره وو. پوځ پرې بريد وکړ، ويې وهل او بنديان يې کړل. خو دوی خو څه غير قانوني کار نه و کړی. يوازې د ودانی مخې ته ولاړ وو، شعارونه ورسره وو او سندرې يې ويلې.)

يوې نږدې کړکۍ ته يې وکتل:

(نړدې شپږ میاشتې یې پرې بند تېر کړ، مور ته یې ونه ویل چې په محبس کې پرې څه تېر شوي دي، خو چې بهر راغی نو یو بدل شوی انسان و.)
په دارنګه ډېرو بحثونوکې مو دا لومړی خبرې وې، اوس زه پوه شوی وم چې تر دې وروسته کارونو ته زموږ همدې خبرو لاره هواره کړې وه. زما اروا دردیدلې وه، اوس مې په ذهن یوازې بانکي حساب او نورې کمزورې د ضعف نقطې خپرې وې، دا د ضعف نقطې له ۱۹٦۸ کاله راهیسې NSA پېژندلې او راټولې کړې وې. پاولا زه اړ کړم چې دې ټولو ته سم وګورم. زما د تخییلاتو شاته چې څومره احساسات وو ټول یې راوړل او ددې باغیانو پر وړاندې یې ودرول. په دې توګه یې ماسره د خلاصون د لارې په پیدا کولو کې مرسته وکړه.
که څه هم زه د بې باورۍ په یوه فضا کې وم، خو له دې سره هم په کولمبیا کې هستوګنې زه ددې وړ کړم چې په پخواني امریکایي جمهوریت او نوې نړیوالې امپراتورۍ کې توپیر وکړای شم. جمهوریت راته د هیلې څرک راکړ، دده بنسټ د ماده پرستۍ پر ځای پر اخلاقیاتو او فلسفه ولاړ و. بنسټیز اصل یې مساوات او ټولو ته انصاف و. دا په خیالي نړۍ کې نه و؛ بلکې په عملي ژوند کې یې هم وجود درلود. دا یو ژوندی حقیقت و. دا وړتیا یې لرله چې لویدلو خلکو ته لاس وربښکته کړي. خلکو ته یې ساه ورکوله او داسې یو قوت و چې باید منل شوی وای. د اړتیا پر وخت د عمل میدان ته هم راتلی شو لکه په دویمه نړیواله جګړه کې د هغو اصولو دفاع کېده چې باور پرې کېده. همدا لویې ادارې ( بانکونه، شرکتونه، مانۍ) چې اوس جمهوریت ته خطر و؛ د نړۍ د بنسټیز بدلون لپاره کاریدلای شوې. دې ادارو د اطلاع رسونې (مواصلات) شبکه او د لېږد وسایل لرل چې پر مټ

يې دوی مرضونه، بيوزلي او حتی جنګ هم ختمولای شو؛ خو په دې شرط چې سمې لارې ته سيخ شي.

نړيواله امپراتوري د جمهوريت نفي ده. دا ځانغوښتونکی، ځانخوښی، له حسده ډک او ماده پرست نظام دی. ددوی بنسټ يوازې کاروباري ذهن دی. د پخوانيو امپراتوريو په څېر د دوی لاس هم يوازې د خپلو ګټو لپاره خوځېږي. ددوی نظر دا دی چې څه په مخه درځي خپل يې کړئ، خو دې سره لوږه نه ختمېږي. خپلو مشرانو ته د واک او شمتنۍ په ورکولو کې يوه شېبه هم ځنډ نه کوي. ددې هدف ترلاسه کولو لپاره چې هره وسيله وي دوی يې کاروي.

د جمهوريت او نړيوالې امپراتورۍ تر منځ مې چې امتياز پيدا کړ؛ نو خپله ونډه هم راته څرګنده شوه، کلاډين ښکاره خبرداری راکړی و، راته ويل يې چې که زه غواړم د MAIN وړانديز ومنم؛ نو څه بايد وکړم. خو ددې نظام دې ژورې مطالعې لپاره د هغې تجربې اړتيا وه چې ما په اندونيزيا، پانامې، ايران او کولمبيا کې ترلاسه کړه. ددې تر څنګ پکې د پاولا صبر، ميني او شخصي پېښو هم ونډه لرله.

زه د امريکا جمهوريت ته وفادار وم، خو په دې لړ کې چې موږ استعمار کاوه دا له مالي اړخه هماغه څه وو چې موږ د پوځ پر مټ له ويتنامه ترلاسه کول غوښتل.

په جنوب لوېديځه اسيا کې ما يو سبق زده کړ، چې پوځي فعاليت محدود وي. ددې په ځواب کې اقتصادپوهانو يو بل ښه پلان جوړ کړ. مرستندويه سازمانونه او شخصي اجاره داران (چې ددوی خدمت يې کاوه او يا اصلي خبره دا چې پردوی يې خدمت کاوه.) اوس په دې پلان د عمل کولو لپاره چمتو شوي وو.

د هرې لويې وچې په هر هيواد کې مې وليدل چې ښځې او نر څنګه د امريکايي شرکتونو لپاره کار کوي. دا خلک که څه هم د جنايتکارو د شبکې غړي نه وو، خو په دومره مضرو کارونو اخته وو چې لويې دسيسې يې په مخ کې هېڅ هم نه وې. د MAIN د ډېرو انجينرانو غوندې يې کارکوونکو ته هم دا معلومات نه وو چې د دوی د کار پايله به څه وي. دوی فکر کاوه چې لاسي پلورونکي او د هغو فابريکو مزدوران له غربته راوباسي، چې دوی ته به يې بوټونه او د موټرو پرزې توليدولې. دوی خواران په دې نه پوهېدل چې دا فابريکې به دوی داسې د غربت او غلامۍ لاندې کړي، چې په منځنيو پېړيو کې د جاګيردار نظام او د جنوبي امريکا د ځنګلونو د وهلو ياد به بيا ورتازه شي. د پخوانيو زمانو د استثمار په ښودلو سره عصري غلامانو ته باور ورکول کېده چې دوی په تياره کې پرتو اروپايانو، ځنګلي افريقايانو او وړو امريکانانو نه ښه ژوند لري.

اوس راسره دا پوښتنه وه چې MAIN پرېږدم که نه، زما د ضمير غږ خو همدا و چې دا ځای پرېږدم، خو زما شخصيت چې د تجارت ښوونځي يې ښنسټ ېښې په بل اړخ کې و. هلته زما خپله امپراتوري وه، زما د انا (خودۍ) د ځپلو لپاره زما همکارانواو ملګرو ته امتيازات ورکول کېدل او د ونډو په بازار کې مې امتياز ورځ تر بلې زياتېده. د ټولو فسادونو اصلي جرړه شتمني او د اقتدار نشه وه، دا هغه لامل و چې کلاډين به يې راته له مخې زياتره وخت ويل، څوک چې يو ځل دې نظام ته رانښوځي ببرته ترې نه شي وتلای. البته پاولا به په دې خبره طنز کاوه او ويل به يې چې :

(هغه څه پوهېده؟)

ما ورته وويل چې د کلاډين ډېرې خبرې سمې ثابتې شوې دي.

(هغه خبرې زړې شوي دي، ژوند بدلیږي او هسې هم اوس څه توپیر کوي، ته په خپل حالت خوښ نه يې، کلاډین یا بل څوک به یې نور هم درخراب کړي.)

پاولا دې خبرو ته همداسې ځوابونه لرل، اخر د هغې منطق ته تسلیم شوم. ځان او هغې سره مې اقرار وکړ چې دا ټوله شتمني، شان او شوکت د جرم دې احساس ته جواز نه شي کېدی. د MAIN د شریک په توګه مې شتمني ورځ تر بلې زیاتېده او ما فکر کاوه چې که ډېر پام ورته وکړم؛ نو یوازې د همدې به شم.

یو ورځ موږ دواړو د کارتاجینا زړې هسپانوی کلا ته څېرمه په ساحل قدم واهه، دې ځای د غلچکیو بریدګرو ډېر بریدونه زغملي وو. د پاولا په ذهن کې ناڅاپه یوه حل لاره پیدا شوه. زه حیران وم چې دا خبره زما ذهن ته ولې رانغله، زه یې وپوښتلم:

(ته چې په څه پوهېږې، که زه یې په اړه هیڅ ته څه ونه وایم نو څه به وشي؟)

(یعنې خوله بنده کم؟)

(هو ! هغوی ته داسې بهانه مه ورکوه، چې تاپسې شي. برعکس داسې فرصت ورکړه چې تا ازاد پرېږدي، یعنې ځان باندې خلک ولې خبروې؟)

دا ډېره د هوښیارۍ خبره وه. زه داسې هېڅ کتاب نه لیکم یا به داسې هېڅ خبره نه کوم چې حقیقت ترې راڅرګندیږي. زه به هڅه نه کوم چې صلیبي جنګیالی شم. اپوټه به داسې کارونه کوم چې ژوند مې ښه شي، سیلونه به کوم، مزې به اخلم او کېدای شي د پاولا په څېر کومې ښځې سره واده هم وکړم. نور سترې وم، له دې لانجې مې وتل غوښتل، پاولا وویل:

(کلاډین چې تاته څه ویلي او در زده کړي وو یوازې تګي (دهوکه) وه.
ستا ژوند په دروغو ډک شوی.) معصومه مسکا یې وکړه، بیا یې زیاته کړه :
(تا اوس خپله CV لیدلې؟)

ما وورته نه وویل

مشوره یې راکړه : (ښه ګوره، ما یې یوه ورخ هسپانوي ژباړه لوستې وه، که
انګلیسي همداسې وي؛ نو ډېره به درته په زړه پورې وي.)

## دروېشتم فصل

# له کیفیاتو ډک ژوند

زه په کولمبیا کې وم چې خبر راغی د MAIN رئیس جیک ډابر ، تقاعد شوی او له تمې سره سم برونو د ډابر پر ځای ګومارل شوی دی. د بوسټن او بران کویلا تر منځ د ټیلیفوني اړیکو لړۍ پیل شوې وه، هرچا وړاندوینه کوله چې زه به هم پرمختګ وکړم، ځکه د برونو په باوري کسانو کې یو زه هم وم.

دا اوازې او بدلونونه یو بل لامل شو چې ما باید پر خپل پوسټ (مقام) بیا کتنه کړې وی. په کولمبیا کې مې د پاولا په مشوره د خپل ژوندلیک هسپانوي بڼه ولوسته. په لوستو یې هک حیران شوم، په بوسټن کې مې ددې د انګلیسي ژبې اصل او مین لاینز (۱۹۷۸) کې مې یې نقل ولوست. په دې چاپ کې یوه لیکنه زما په اړه وه، عنوان یې دا و : د مین د پېرودونکو لپاره نوي تخصصي خدمات " Specialists offer MAIN's .Clients New service

یو وخت مې په دې پېژندپاڼې او لیکنې ډېر فخر کاوه. خو اوس مې چې ولوستل ډېر زیات خفه شوم. په دې اسنادو کې شته مواد که دروغ نه وو؛ نو تګي خو وه. یو ژور مفهوم یې باوري کول وو. دې کې هغه حقایق وو چې زموږ دور یې روښانوه او نړیوالې امپراتورۍ خواته زموږ د پرمختګ تر ژورو رسیدل. دا د هغې پالیسۍ لنډیز و چې پکې د شیانو ظاهري ښکلا او ځل ښکاره کېده او تر ژورو د تللو مخه یې نیول کېده.

زما په پېژندپاڼه کې د ثبت شویو حقایقو منل زما لپاره پرسکونه نه وو. د نورو چارو په خبر مې یو مسئولیت دا هم و چې خپله پېژندپاڼه وخت پر

وخت تازه کړم. ددې تر څنګ يوه دوسيه هم وه چې ټول مهم ټکي پکې ذکر شوي وو، خصوصاً دا چې کومو پېرودونکو ته مو کوم خدمتونه وړاندې کړي دي. که د پروژې د بازار موندنې مدير يې د کارولو پلان جوړ کړي نو هغه به زما تجربې او اړتياوې داسې وړاندې کوي چې دده له شخصي اړتياو سره به ټکي په ټکي جوړې وي.

مثلاً که زما کوايف يې د منځني ختيځ د تجربو په رڼا کې وړاندې کولای نو همداسې يې کولای شول. که يې د نړيوال بانک يا بلې کومې نړيوالې ادارې په شکل وړاندې کولای نو له لږ بدلون سره يې داسې هم کولای شول. لنډه دا په دې دوسيه کې دومره مواد راټول وو چې (څوموخيزه) اسناد هم وو. کله به چې داسې کوم کار کېده؛ نو تازه (اپډيټ) شوې سي وي به زما تر اجازې وروسته خپريده، خو دا چې زه او د MAIN نور ملګري په سفر کې وو؛ نو څکه په دې اصل دومره ټينګار نه کېده. له دې امله چې پاولا زما په پېژندپاڼه کې کومو کوايفو ته اشاره کړې وه هغه زما لپاره نوي وو، که څه په دوسيه کې موجود وو.

په لومړي نظر خو دا کوايف ډېر پاک، رڼه او معصوم ښکاريدل. د تجربې په برخه کې ليکل شوي وو چې ما په امريکا، اسيا، لاتيني امريکا او منځني ختيځ کې د ډېرو پروژو مشري کړې ده. پرمختيايي پلان ګذارې، اقتصادي وړاندوينه، د انرژۍ د تقاضا وړاندوينه او نور... . ددې برخې په اخر کې يې زما د هغه کار يادونه کړې وه چې په اکوادور کې مې کړی و. خو د پيس کور د خپلې اصلي پېژندګلوۍ په اړه پکې څه نه وو او داسې ښودل شوې وه چې زه د ودانيزو توکو د يوه شرکت مسلکي مدير وم. دلته په دې حقيقت سترګې پټوې شوې وې چې زه خو يو رضاکار او د ناولوستو انډين ANDEAN بزګرو د يوه واړه کوپراتيف معاون وم.

تر دې وروسته د پېروودونکو یو اوږد لیست ورکول شوی و. چې پکې نړیوال پرمختیایي بانک (د نړیوال بانک رسمي نوم دا دی.)، اسیایي پرمختیایي بانک، کویټ حکومت، د ایران د انرژۍ وزارت، د عربستان د نفتو امریکایي شرکت او نورو ډېرو نومونه راغلي وو. په وروستو کې مې یوې موضوع ته پام شو چې لیکلي یې وو: د امریکا د مالیې وزارت او د عربستان حکومت. که څه هم دا زما د دوسیې برخه وه خو زه یې په څرګېدو ډېر حیران شوم.

خپله پېژندپاڼه مې یوې خواته کړه او MAINLINE لیکنې ته څېر شوم. ددې له لیکوالې سره مرکه مې ښه په یاد ده. ډېره هوښیاره او فکر لرونکې ځوانه ښځه وه. تر چاپ دمخه یې ماته خپله لیکنه رانبودلې وه او زما منظوري یې اخیستې وه. په الفاظو کې یې زما دومره ښایسته انځورګري کړې وه چې ما ترې سمدستي منته وکړه او د خپریدو منظورې مې ورکړه، اوس مسئولیت زما په سر و، لیکنه داسې وه:

(مسلکي وړاندیز : مین لاینز، نومبر ۱۹۷۸ ، لیکواله، پالین اولیټ

ماین خپلو پېروودنکو ته بې ساري خدمتونه وړاندې کوي.په خپلو ځایونو کې چې کوم خلک په کارونو بوخت وو، له هغې داسې ښکاري چې (اقتصاد) او (ځایي پرمختګ) دوه داسې برخې دي چې MAIN نوې رامنځته کړي او وده یې ورکړې ده. اوس په دې ډله کې شل تنه متخصصین دي چې په رایوځای کولو کې یې نږدې اوه کاله تېر شوي دي. په دې ډله کې یوازې اقتصاد پوهان نه دي؛ ددوی تر څنګ پکې د ښاري پراختیا متخصصین، د رغونې متخصصین، د بازار څېړونکي او د MAIN لومړی تولنپوه هم شته.

ددې ډلې پيل که څه هم څو مشهورو خلکو کړی دی خو اوس يې ټول امتياز يوازې يو کس ته ورکول کيږي، دا کس جان پرکنز دی او د همدې ډلې مشري کوي.

پارکنز د ۱۹۷۱ ز کال په جنوري مياشت کې د هيډلوډفورکاسټر د معاون په توګه کار پيل کړ. هغه وخت MAIN ته د اقتصاد متخصصينو کار کاوه چې جان هم پکې يو و. لومړی ماموريت يې دا و چې د يوولس کسيزې ډلې د غړي په توګه په اندونيزيا ته واستول شو او هلته يې د هغه هيواد د برښنايي انرژی مطالعه وکړه.

د تېرو ورځو يادونه يې چې کوله موسکی شو او وويې ويل : (هغوی غوښتل پوه شي چې زه هلته درې مياشتې کار کولای شم؟) ، خو ده چې په کوم شاليد کې کار کړی په هغه شاليد کې يې د (بقا) هيڅ ستونزه نه وه. تر دې مخکې يې درې کاله په اکوادور کې د رغنيزو توکو يوه کوپراتيف سره کار کړی چې هلته يې له قويچا انډينز سره مرسته کوله. هغه خلک د انکاز له نسله وو. د اکوادور يوې اداري ترې د هغه خلکو لپاره د يوه کوپراتيف د جوړلو غوښتنه وکړه. ده يوه لاری کرايه کړه چې خپلې خښتې نيغ په نيغه مصرفوونکي ته ورسوي. دې سره يې ګټه شپيته سلنې ته پورته شوه. دا ګټه د کوپراتيف په غړو وېشل کېده چې د لږې مودې لپاره پکې دوه سوه کورنۍ شاملې وې.

په هماغو ورځو کې جان پرکنز له انيار ګريو(د MAIN کارکوونکو چې وروسته بيا د ټکسن ګاز او برق شرکت رئيس شو.) سره وکتل. انيار په دې وخت کې پاټي ښار کې د MAIN لپاره په يوې هايدرو الکتريک (اوبو برښنا) پروژې کار کاوه. بيا په دواړو کې ملګري شوه او د ليکونو يوه لړۍ

پیل شوه، چې وروسته جان پرکنز ته په MAIN کې د یوې دندې وړاندیز وشو.

نږدې یو کال وروسته جان خپله یو وړاندوېونکی شو او ځومره یې چې پېرودونکي زیاتېدل نو پرکنیز پوه شو چې په MAIN کې نورو اقتصادپوهانو ته اړتیا شته. جان وویل چې MAIN په اصل کې انجینري شرکت دی، خو پېرودونکي مو غواړي ډېر څه باید وکړو، د همدوي په غوښتنه مو په ۱۹۷۲ ز کال کې د اقتصاد متخصصین وګومارل او دا ډله ترې سازه شوه، چې دی یې اوس مشر دی.

د جان وروستۍ پروژه په پانامه کې د کرنیزې پراختیا په برخه کې ده، چې له یوې میاشتې تېرولو وروسته ترې راستون شوی دی. په پانامه کې MAIN د خپلې ټولنپوهنې لومړی کار په خپل لومړني ټولنپوه مارتهاهایز پیل کړ. مارتها په پانامه کې یوه نیمه میاشت ددې لپاره تېره کړه چې وګوري دا پروژه د خلکو پر ژوند او کلتور څه اغېز کوي. په دې لړ کې د کرنې او اړونده برخو له کارپوهانو هم مرسته اخیستل شوې ده. په اقتصاد او ځایي پرمختګ کې ډېره پراختیا راغلې ده، جان پوهېږي چې دده همکاران ځومره مسلکي او زیارکښ خلک دي. داسې خلکو سره کار کول خپله نیکمرغي ګڼي. ماسره یې چې خبرې کولې زه پوهه شومه چې هغه له خپل پرسونل سره ځومره مینه لري او ځومره مرسته ورسره کوي. دا د ستایلو خبره ده.)

پورته اسناد ټول دروغ هم نه وو. دا ټول شیان زما په دوسیه کې وو. خو دا شیان چې څنګه وړاندې شوي وو او خلکو ته کوم ذهنیت ورکول شوی و؛ نو زه فکر کوم چې د الفاظو لوبه وه. په هغه چاپېریال کې چې اسنادو ته د تقدس په سترګه کتل کیږي، داسې حرکت ډېر بد ګڼل کیږي. د څرګندو

دروغو رد کول ممکن دي، خو ما چې کوم دوه اسناد وښودل د هغوی دعوې د شک وړ وې. ځکه چې په ځینو ځایونو کې یې رښتیا هم ځلیږي، توله تګي نه وي او بله دا چې د یوې مشهورې ادارې وړاندې کړي اسناد له نورو ادارو، نړیوال بانک او حکومتونو سره نښتي وي.

زما د پېژندپانې په اړه دا خبره رښتیا وه، ځکه د یوې ادارې رسمي اسناد وو، خو لیکنه یوې مجلې سره زما مرکه وه. په دې پېژندپانه او نورو اسنادو او راپورونو د MAIN نښه (لوګو) په سترو او نړیوالو کاروباري کړیو کې د یوه ذهنیت د رامنځته کېدو لامل کېده. دا یو تصدیق و او د لوستونکو په ذهن یې کې یې د باور دومره فضا رامنځته کوله لکه د ډاکترانو او وکیلانو تصدیق پاڼې.

په دې اسنادو کې زه د اقتصاد یو پیاوړی متخصص پېژندل شوی وم. د یوه داسې مشهور شرکت کارپوه چې ټوله نړۍ کې ګرځي، څېړنې کوي او داسې راپورونه جوړوي چې نړۍ پرې ډېره عصري او هوسا کېدای شي. تګي یې په هغو کې نه وه چې بیان شوي وو؛ تګي هغه وه چې بیان شوي نه وو. که زه یې د یوه بې پرې کس په توګه جاج اخلم؛ نو باوري یم چې ډېرې پوښتنې پر را ولاړېدی شي.

مثلاً په NSA کې زما د ګومارل کېدو یادونه پکې نه ده شوې، انیار ګریو چې له پوځ او NSA سره کومه اړیکه لرله د هغې یادونه پکې نه ده شوې. دوی دا خبره ولې وکړې چې پر ما د اقتصادي وړاندوینې زیاتې ښودو لپاره څومره فشار راوړل کېده، زما دا مسئولیت نه دی یاد شوی چې ما باید یوازې غوښتنو پورونو ته زمینه برابر کړې وی، لکه اندونیزیا او پانامې غوندې هیوادونه چې بیا یې پرې کولای هم نه شول. ماسره د هارورډ پارکر د خلوص او ایمانداري یادونه هم پکې نه وه شوې. دوی له دې خبرې هم

پرده نه وه پورته کړې چې زه ولې د وړاندویونکې دلې مشر ټاکل شوی وم؟ ځکه چې له ما د داسې دروغجنو راپورونو تمه کېدای شوه، ما یې د رد جرات هم نه درلود ځکه ښایي د هاوورډ په خبر مې له دندې لاس مينځلی وی. تر ټولو ډېر ګمراکوونکی پاراګراف پکې وروستی و چې د امريکا د بهرنيو چارو وزارت او سعودي عربستان پکې زما پېرودونکي ښودل شوي وو.

ما دا خبره څو څو ځله ولوسته او اندېښنه مې لرله چې خلک به ترې څه مطلب واخلي، دا پوښتنه هم کېدای شوه چې د بهرنيو چارو وزارت له سعودي عربستان سره څه تړاو لري؟ ښايي ځينو خلکو به فکر کاوه چې دا ګنې ټايپي غلطي ده او بېلابېلې کربښې سره يو ځای شوي دي، ډېر لوستونکي په دې نه پوهېدل چې دې پاراګراف يوه ځانګړې موخه لرله. په دې خبرو يې نړۍ ته ښودل، زه د هغې ستر اداري غړی یم چې دومره لويې لويې معاملې يې کړي دي. ددې معاملې جزيات رسنيو ته نه دي ورکړل شوي، ما يو داسې تړون پنځولی و چې له مخې يې امريکا ته د تېلو په لېږد کې هيڅ ډول خنډ نه شو رامنځته کېدای، په عربستان به آل سعود کورنۍ حکومت کوي، له اسامه بن لادن سره مالي مرسته به پلان شوې وي او د اي دي امين غونډې نړيوال مجرمين به خوندي وي. زما دا پېژندپانه يوازې د هغو خلکو لپاره وه چې په دې هر څه پوهېدل، دې فقرې ښودل چې د MAIN اقتصادپوه داسې يو کس دی چې هر څه کولای شي، د MAINLINE د مقالې وروستی پاراګراف د ليکوالې شخصي نظر و چې زه يې ډېر زيات حيران کړم:

اقتصاد او ځايي پلان ګذاری کې ډېره پراختيا راغلې ده، جان په دې بهيرې چې همکاران يې څومره مسلکي او زيارکښ دي، له داسې خلکو

سره کار کول خپله نیکمرغي ګڼي، ما سره یې چې خبرې کولې نو پوهه شوم چې له خپل پرسونل سره ډېره مینه لري او ډېر پام پرې کوي، چې دا د ستایلو خبره ده.)

اصلي خبره دا ده چې ما هېڅ کله ځان اصلي اقتصاد پوه نه دی ګڼلی، ما په بوستن کې په مدیریت او سوداګرۍ کې لسانس اخیستی چې مسلک مې بازارموندنه وه، زه یو معمولي زده کوونکی وم، په مډل بري کالج مې د خوښې شعبه ادبیات وو، زه په لیک کې تکړه وم، ما چې د ارشد اقتصادي مشاور، د اقتصادي چارو کارپوه او د ځایي پلانګذار په پوستونو کار کړی دی، په دې کې زما د پوهنتون د زده کړو هېڅ ونډه نه وه، اصلي خبره دا ده، چې زما بادارانو او پېرودونکو به خنګه وړاندوینه غوښتله ما به ورته په هماغه ډول وړاندې کوله، تر څنګ یې راکې دا طبیعي وړتیا وه چې په لیکنه کې مې نور خلک د ځان همفکره کولای شول او دې ټولو سره مې هغه هوښیارتیا هم لرله چې د ډېرو پوهو خلکو خدمتونو مې هم ترلاسه کولای شول، په دوی کې د ماسترۍ او دوکتورا لرونکي هم وو، زه د داسې پرسونل په راټولو توانیدلی وم چې زما د کار په نزاکتونو او باریکیو تر ما ښه پوهېدل، ددې ټولو حقایقو په نظر کې نیولو سره دا نظر : (جان خپلو همکارانو سره ډېره مینه لري او ډېر پام پرې کوي، دا د ستایلو خبره ده) ، د ډېرې حیرانۍ وړ نه و.

زه دا دواړه او ورته نور ځینې اسناد د خپل مېز په پورتني روک کې ږدم او زیاتره وخت یې لولم. کله کله د خپلو همکارانو په مېزونو ګرځم، هغه ښځې او نارینه چې په خپل کار کې ګورم ؛ نو د جرم دا احساس راکې پیدا شي چې ما له دې خلکو څه جوړ کړل. موږ ټولو یو رول لوباوه او هغه د شتمن او بېوزله تر منځ واټن پیدا کول او د شته واټن لا پسې ډېرول وو. ما به زیاتره

وخت د اوږو او بېوزله خلکو په اړه فکر کاوه او بیا به مې خپلو همکارانو ته لیدل چې په لویو هوټلونو کې به اوسېدل، خواړه به یې پکې او د شتمنۍ ډېري به ورته پراته وو.

زما په ذهن دا یو فشار و، ما چې کوم خلک روزلي وو هغوی ټول اوس اقتصادي جنایتکار وو او دوی ټول ما دې نظام ته رانویسي وو، ما ګومارلي او روزلي وو. خو اوس حالات هغسې نه وو لکه زما د ګومارنې پر وخت چې وو، نړۍ بدله شوې وه او کارپوریټوکراسۍ ډېر پرمختګ کړی و. زموږ نظام پرمختک کړی و خو خلکو ته مو ضرر هم زیات شوی و، ماته چې کومو خلکو کار کاوه دا بل نسل و، د دوی په ژوند کې نه NSA و او نه کلاډین. دوی ته چا نه وو ویلي چې د نړیوالې امپراتورۍ د ماموریت پر مخ وړلو لپاره له دوی څه تمه کیږي، دوی نه د اقتصادي جنایتکار اصطلاح اوریدلې وه او نه یې له مخفف (EHM) سره بلد وو، دوی ته چا دا هم نه وو ویلي چې ګنې ټول عمر به په همدې نظام کې تېروي. دوی ته زه مثال وم، زما له کارونو یې هر څه زده کړي وو، چې کله به پرې مکافات او کله مجازات کېدل. دوی یوازې دومره پوهېدل چې زما د غوښتنې سره سمې څېړنې او پایلې باید وړاندې کړي. ددوی معاشونه، امتیازات او حتی د ندې زما په رضایت پورې تړلې وې.

پردوی د فشار کمولو لپاره چې زما په وس کې څه وو ټول مې وکړل، لیکنې مې وکړې، لکچرونه مې ورکړل ... او ټول هغه کارونه مې وکړل چې دوی پرې زیاتوالي ته د هیله مندۍ، لویو پورونو او پراخه پانګونې په ارزښت پوه کړم. دوی په دې پوهول شوي وو چې که دا ټول عوامل رایوځای شي GNP دومره لوړوي چې دا به د نړۍ تر ټولو ښه ځای وګرځوي. په یوې لسیزه کې مو دوی داسې یو ځای ته را ورسول چې جرم او د جرم احساس

پکې معناوې بدلې کړې وې او ښه شکل یې غوره کړی و ، دې کار ته موږ په شریفانه ژبه د ماغزو مینځل (براین واش) وایو. همدا خلک چې زما په دفتر کې مېزونو ته ناست وو، بهر به ځي او د نړیوالې امپراتورۍ د قیام لپاره به هلې ځلې کوي. دوی ما داسې جوړ کړي لکه کلاډین چې زه جوړ کړی وم. بس تر منځ مو دومره توپیر دی چې دوی په تیاره کې دي او نه پوهېږي چې دا کارونه د کوم هدف لپاره کوي.

ما ډېرې شپې په ویښه او نارامۍ تېرې کړې، دې کارونو زه نارامه کړی وم، پاولا مې پېژندپانې ته په اشارې یو بله موضوع پیدا کړه. کله کله د خپلو همکارانو ساده توب او بې خبرۍ ته پسخیږم. ما دوی تېرایستي وو او د خپل ضمیر له عذابه مې خوندي کړي وو، زه چې کومو اخلاقي مسایلو خوړم دا خلک خو ترې لرې تر لرې بیغمه وو.

یو بل فکر چې راسره پیدا شوی و په کاروبار کې د صداقت مسئله وه. ما به ځان په دې خبره تېرایسته چې د تاریخ له پیله خلکو یو بل تېرایستلي دي،دا دومره داستانونه او فلکلوریکې کیسې له همداسې ټګۍ او برګۍ ډکې پرتې دي: د غالیو ټګ سوداګر، سودخور ساهو کار او درزي، چې شاه ته یې ویل کالي یې یوازې هم ده ته نه ښکاري او نور یې ټول خلک یې ګوري. ما به ځان ته دا ډاډ ورکاوه چې معاملې زیاتره همداسې کیږي، زما د پېژندپانې او ظاهر او تر شا یې پرتې کیسې انساني طبیعت دی، خو په زړه کې ښه پوهېدم چې اصلي خبره دا نه وه اوس ډېر څه بدل شوي دي او زه ښه پوهېدم چې موږ د ټګۍ یوې نوې کچې ته رارسیدلي یو، داسې کچه چې وروسته زموږ د بربادۍ لامل کېدای شوه، دا بربادي یوازې اخلاقي نه؛ بلکې بدني هم وه. موږ به له خپل تمدنه لاس مینځو، تر دې چې په خپله کړنلاره کې بدلون راوړو.

موږ ته چې څومره منظم جرمونه کول د استعارې په مرسته په ډېر ښه ډول بيانيدل. د مافيا ستر باداران د خپل جرمي ژوند پيل په کوڅو کې له بدماشيو کوي، خو وخت سره چې څنګه د زينې لوړو پوړيو ته ورسيږي نو بيا خپل شکل هم بدلوي، ښايسته دريشي اغوندي، له نوم سره يې هېڅ غير قانوني کار نه وي تړلی او د ټولنې په عصري او لوړ ځای کې اوسيږي. په خپل چاپېريال کې ځان سخي ښيي، خيراتونه کوي او په ټولنه کې ورته په درنه سترګه کتل کيږي، څوک چې مالي ستونزې لري پور ورکوي، لکه څنګه چې په پېژندپانه کې د جان پرکنز پېژندنه وړاندې شوې ده دوی هم داسې يوه پېژندګلوي خپلوي، دوی ځانونه ښه وګړي ښيي؛ خو ددې ښايسته انځور تر شا د ويني دارې ښکارې... . پوروړې هيوادونه چې خپل پوروونه نه شي پرې کولای نو همدا اقتصادي جنايتکار راميدان ته کيږي او د غوښو ټوټې ترې غواړي، چې ور يې نه کړي نو دا ګيدړان ګوتک ته لاس کړي او داېيره پرې راتنګه کړي او چې دا هم ناکامه شي نو بيا د رايفل ګولۍ د حرفې په ډول کاروي.

زه پوهېدم چې په دومره لويو پوستونو زما معرفي کول، د هغه دوکاندار هومره ساده ټګي نه وه چې خپل پيردونکي په سودا کې تېرباسي. دا د هغه بد نظام برخه وه چې يو معصوم پيرودونکی پکې ګرد ګرځول کېده؛ بلکې د استعمار يو پېچلی او ګټور شکل پکې پرمخ وړل کېده. ددې استعمار په اړه ما تراوسه په نړۍ کې نه څه ليدلي او نه اوريدلي دي. زما د پرسونل هر يو تن خپله دنده لرله: اقتصادي چارو کارپوه، ټولنپوه، اقتصادپوه، اقتصاد متخصص، ايکانوميټريشن (د اقتصادي ارقام د سروې له مخې کتل او تر منځ يې اړيکه رامنځته کول)، د بيو متخصصين او نور ... . خو جالبه دا ده

چې ددې یوه له کاري عنوان هم دا نه ښکاریدل چې دوی په خپل ذات کې اقتصادي جنایتکار دي او د نړیوالې امپراتورۍ په ګټه کار کوي.
له دې القابو دا هم نه څرګندیده، موږ خو د کنګل غرونو هغه برخې یو چې له اوبو راوتي وو اصلي خطرناک غر خو اوبو لاندې پټ دی، چې که بېړۍ ورسره ټکر وکړي غرقېږي. هر لوی نړیوال شرکت له بوټونو نیولې تر ورزشي وسایلو پورې ټول په خپل ډول کې اقتصادي جنایتکار وو، ګامونه پورته شوي او نړۍ ډېره په سرعت ددوی پنجو ته لوېږي. اوباشانو خپل لباس بدل کړی او کورتۍ یې اغوستې دي، ښایسته دریشو کې ګرځي او خپل شخصیت لوړ ښیي. په نیویارک، شیکاګو، سان فرانسسکو، لندن او توکیو کې له مېشتو سوداګریزو دفاترو ښځې اوسړي نړۍ ته خپرېږي . ددوی کار دا دی چې هر هیواد فاسد مشران دې ته چمتو کړي ، چې هیواد یې همدې سوداګرو ته وسپاري او د خبرو او لارښونو په مرسته غریب ولس په بازار کې خپل او فابریکو کې خپل بدنونو پلورلو ته اړباسي.
زما د پېژندپاڼې او MAINLINE تر شا اصلي موخه موږ د هغې نظام په شکنجه کې ساتل وو چې بد اخلاقۍ او ځان وژنې خواته یې ګامونه پورته کول. زه په دې اعتراف کوم چې پاولا زه دې کرښو ته متوجې کړم او په دې لاره یې یو بل ګام پورته کولو ته اړویستم، چې ورسره زما د ژوند لاره بېخي بدله شوه.

## څلورويشتم فصل

# د اکوادور ولسمشر او ستر نفتي شرکتونه

په کولمبيا او پانامه کې ډېر بوخت وم، هغو هيوادونو سره مې هم اړيکې کمې شوې چې زما کور ته نږدې يا د کور غوندې وو. د ديکتاتورۍ اوږدې لړۍ او کيڼ لاسو چارواکو د امريکا د ګټو لپاره کار کاوه او اکوادور ته يې سخت ټپونه ورکړي وو. دا د يوه هيواد د مفلسۍ او کمزوري جمهوريت غوره بېلګه وه او کارپوريټوکراسي پرې سمه واکمنه وه.

د اکوادور له امازون ساحې د تېلو استخراج په ۱۹۶۰ کال کې پيل شوی و. د انتيکو او قيمتي شيان د پيرلو لړۍ پيل شوه. د اکوادور څو واکمنې کورنۍ د نړيوال بانک د لاس آلې وګرځېدې، خپل هيواد يې په پورونو کې ډوب کړ. دې سره د تېلو د عايد ژمنه هم وه، په ټول هيواد کې د سړکونو، صنعي ښارګوټو، برېښنا بندونو، د برېښنا وېش او انرژۍ د نور مرکزونو جال هم خپور شو او يو ځل بيا ورسره د نړيوالو انجينري او سوداګريزو شرکتونو بله شوه.

په دې هيواد کې د يوه کس د بخت ستوری ځليده، دا سړی له سياسي فساده پاک او د کارپوريټوکراسۍ په جال کې نه و. جيمي رولډس JAIME ROLDOS په پوهنتون کې استاد او وکيل و، عمر يې د دېرشو او څلوېښتو کلونو په منځ کې و. حو ځله مې ورسره ليدلي دي، ډېر په زړه پورې او زړه راښکونکی شخص و. يو وار مې ورته په ډېره خوښۍ کيټو ته د ورتلو او وړيا مشاورتي خدماتو وړانديز کړی و. هر وخت يې راسره ليدلی شول، په دې کار کې يو څه طبيعي طنز هم شامل و، خو ما دا کارونه په خپلو رخصتيو کې کولای شول. دا کس راته ګران و، ورته مې ويلي وو چې ستا هيواد ته

د درنو لپاره بهانې ګورم. هغه موسکی شو او راته یې وویل چې که هر کله د تېلو په اړه کومه خبره کول غواړې؛ نو اړیکه راسره کولای شې.

دی تولنلی قومي مشر او رهبر و. د بیوزلو خلکو پر حق یې باور درلود، ویل به یې چې سیاسیون باید ملي شتمني او زړرمې په هوښیارۍ وکاروي . په ۱۹۷۸ ز کال کې یې ولسمشریز کمپاین پیل کړ، په لږ وخت کې د خپلو خلکو او هغو بهرنیانو پام ور واوښت چې هلته د تېلو په استخراج بوخت وو او یا یې د قوي نړیوالو له اثر او رسوخه ځان پټاوه. په اوسنیو رهبرانو کې لږو یې د رولډوس غوندې ښېګنې لرلې. یوه ښېګنه یې دا وه چې د (ستیټس کو) له مخالفته هم ونه وېرېد، د تېلو کومو شرکتونو چې ستیټس کو سره مرسته کوله دا یې پر ضد ودرید. ما اوریدلي چې د امریکا پر یوې تبلیغاتي ادارې (SIL) Summer institute of linguistics یې تور پورې کړی و چې د تېلو له شرکتونو سره یې جوړجاړی کړی دی. زه د SIL له مبلغینو سره د پیس کور له وخته بلد وم، دوی د نورو هیوادونو سره اکوادور ته هم له دې شعار سره راننوتي وو چې د ځایي ژبو مطالعه، ثبت او ژباړه به کوي.

SIL په امازون کې پر حوراني Huaorani قبیله ډېر کار کاوه. دا هغه وخت و چې د تېلو استخراج نوی پیل شوی او د SIL د یوې ځورونکې کړنلارې راپور ورکړل شو. کېدای شي دا به تصادف و او کوم ثبوت به یې نه درلود؛ خو د امازون په ځینو ډلو کې دا کیسه مشهوره شوه چې د زلزلو د چارو کارپوهانو د امازون په داسې یوه سیمه کې مرکزي دفتر جوړلو غوښتل چې د تېلو نښې پکې لیدل شوې وې، په همدې وخت کې SIL ځینې مبلغین هلته ورغلي وو، له ځایي خلکو سره خبرې یې کړې وې چې له خپلو ځایونو کډه وکړي او د مبلغینو سیمو ته ورشي. ورته ویل شوي وو چې هلته به وړیا

خواړه، روغتیایي خدمات او زده کړې ورکول کیږي. ددې کیسې له مخې
ددې ټولو وړیا خدمتونو شرط یوازې دا و چې خلک خپلې ځمکې د تېلو
شرکتونو ته ورکړي.

داسې اوازې هم وې چې د SIL مبلغینو ددې لپاره ډېرې دسیسې جوړې
کړې چې خپل ځایونه پرېږدي. دا ډېره مشهوره وه چې مبلغینو په خلکو
جلاب لرونکي خواړه وېشلي وو او چې اسهال خپور شو نو بیا یې درمل
وېشل. له الوتکو یې داسې بسکیټ وغورځول چې راډیو ټرانسمیټرونه پکې
نصب شوي وو، ویل کیږي ددې ټرانسمیټرونو اړیکه د امریکایي پوځ له
هډو سره وه، چې هلته به پیغامونه ترې ترلاسه کول. د سیمې کوم تن به
چې مار وچیچه یا به سخت ناروغ شو؛ نو مبلغینو به د تېلو د شرکتونو په
چورلکو کې درمل او تریاک ور وړل.

د تېلو د استخراج په لومړیو کې د پنځو مبلغینو مړي وموندل شول چې د
حوارانې قبیلې نیزې یې پر سینو خښې وې. وروسته بیا د سیمې خلکو وویل
دا کار یې ځکه کړی چې مبلغینو ته له خپلې سیمې د لیرې ګرځېدو پیغام
ورسوي. په دې پیغام غوږ ونه ګرول شو، اغېز یې اپوټه و. د یوه وژل شوي
پلوي راشل سینټ Rachel Saint په ټوله امریکا وګرځېده او پر ټلویزونو کې
به یې په دې خبرونه کوله چې SIL او د تېلو شرکتونو ته فنډ او مرستې پیدا
کړي.دعوه یې دا وه چې ټول په ګډه د هغو وحشیانو د متمدنه او باسواده
کولو لپاره هلې ځلې کوي.

د ځینو سرچینو په وینا SIL سره مالي مرسته راک فیلر کوله. د راک فیلر
کورنۍ نازولي جان ډي راک فیلر د سټېټ ایل شرکت بنسټ ایښی و چې
وروسته بیا د شیوران CHEVRON ایګزون EXXON او موبل MOBILE په
شمول لویو شرکتونو کې مدغم شو. (۱)

ما فکر کاوه رولډوز هغه کس دی چې د طوريجو په روښانه کړې لار به ځي، دواړه د نړۍ مقتدر ځبرځواک ګوابنلی و، طوريجو کانال بېرته واخيست او رولډوز د تېلو له مشهورو او مخورو شرکتونو سره اړولې وه. رولډوز هم د طوريجو غوندې کمونيست نه و. د خپل هيواد د حقونو بيرغ يې راپورته کړی او غوښتل يې خپل تقدير په خپله وليکي. سياسي پنډتانو وړاندوينه کړې وه چې لويې سوداګريزې ادارې او واشنګټن به رولډوز هم د سياسي مشر په توګه ونه زغمي او د طوريجو په سرنوشت به يې اخته کړي، که چيرې دا ټاکنې وګټي؛ نو انجام به يې هماغه وي چې د ګويټې مالا آربينز او د چيلي آلندې ورسره مخ شوي وو.

ما فکر کاوه چې دا دواړه به د لاتيني امريکا په سياست کې د يوه نوي تحريک سرلاري وي او يو داسې خوځښت به رامنځته کوي چې ټوله نړۍ به ترې اغېزمنېږي. دوی دواړه کياسترو يا قذافي نه وو. روس او چين سره يې اړيکه نه لرله. دواړه يې په خلکو ګران او ځيرک مشران وو. يوازې نظري خلک نه وو، علمي هم وو. قام پرست وو خو د امريکا پر ضد نه وو. کارپوريټوکراسي په درې ستنو ولاړه وه، شرکتونه، نړيوال بانک او حکومت ... خو رولډوز او طوريجو دا وړتيا درلوده چې د حکومت ستنه يې ولړزوي.

د رولډيز په پاليسيو کې تر ټولو مهمه هغه يې د هايډروکاربن وه. ددې پاليسۍ فرضيه دا وه چې پټرول د اکوادور تر ټولو ستره طبيعي سرچينه ده او په راتلونکي کې بايد پرې داسې کار وشي چې خلکو ته يې تر ټولو ډېره ګټه ورسېږي. رولډيز په دې باور و چې د حکومت مسئوليت غريبو او بېوزله خلکو سره مرسته ده. دده په باور هايډرو کاربن پاليسي هغه وسله وه چې پر مټ يې ټولنه اصلاح کېده. دده کار د تورې پر ژۍ د تګ هومره باريکه و، دی پوهېده چې د نورو هيوادو په څېر دی په ايکواډور کې هم تر هغه نه

شي ټاکل کېدی چې شتمنې کورنۍ ورسره نه وي او که په یوه ډول بې ددوی له مرستې ټاکل شوی هم وی؛ نو بې ددوی له ملاتړه یې خپل پلانونه نه شول عملي کولای.

زه خپله ډاډه وم، دا وخت په سپینه ماڼۍ کې د کارټر غونډې کس ناست و، د ټیکساکو او تېلو د نورو ګټو له لورې تر سخت فشار لاندې بیا هم واشنګټن تر ډېره حده خپله لمن غوړولې وه. زه پوهېدم چې بله هره اداره (دیموکرات یا جمهوري غوښتونکي) وای دا کار ناشونی و.

د نورو ټولو مسایلو په مقابل کې یوازې هایدروکاربن هغه لامل و چې له مخې یې هر اکوادوري رولډوز خپل مشر غوښت. د امیرینو (زورواکو) تر اوږد لیست وروسته دا ددوی لومړی راتلونکی منتخب ولسمشر و. ده د ۱۹۷۹ ز کال د اګست په لسمه نېټه په یوه وینا کې د خپلې پالیسۍ خاکه داسې وړاندې کړه:

(موږ ډېر ګټور اقدامات کوو چې د انرژۍ د ملي سرچینې دفاع وشي. دا د حکومت مسئولیت دی چې هر حالت کې په استخراج کې بدلون وساتي او خپله اقتصادي خپلواکي په خطر کې وانه چوي .... زموږ د پرېکړو تر شا به یوازې ملي ګټې وي. موږ به د خپل لوړ اقتدار په دفاع کې هېڅ ډول نیمګړتیا پرې نه ږدو.) (۲)

واک ته له رسېدو وروسته باید رولډوز پر کوټیکساکو ډېر پام کړی وی، ځکه د تېلو په لوبه کې همدا لوی لوبغاړی و. دا ډېره ستونزمنه لاره وه. د تېلو دې شرکت پر نوي ولسمشر باور نه کاوه ، نه یې غوښتل چې ددې پالیسۍ برخه وګرځي او په دې لوبه کې کوم نوی ریکارډ جوړ کړي. دوی پوهېدل چې دا پالیسي د نورو هیوادونو لپاره هم یو بېلګه ګرځېدای شي.

د رولډوز یوه ارشد مشاور Jode Carvajal د نوې اداري پالیسۍ خاکه داسې وړاندې کړه:

(که زموږ یو شریک (ټیکساکو) خطر نه مني، د تېلو پر کشف پانګونه نه کوي، یا د تېلو له هغو خدماتو ګټه نه اخلي چې لري یې؛ نو بل شریک دا حق لري چې خپله پانګونه وکړي او د خاوند په توګه قابض شي ...

موږ غواړو چې له بهرنیانو سره مو اړیکې پر انصاف ولاړې وي. په دې هلو ځلو کې به له خپل موقف کلکه دفاع کوو. د هر ډول فشار زغملو ته به چمتو یو؛ خو دې بهرنیانو سره د معاملې پر وخت باید د هېڅ ډول وېرې یا کمترۍ احساس ښکار نه شو.) (۳)

۱۹۸۰ د یوې نوې لسیزې پیل و، اته ویشت ورځې وروسته به مې عمر پنځه دېرش کاله شي، ځان سره مې پرېکړه وکړه چې را روان کال به په خپل ژوند کې یو ستر بدلون راوړم او وروسته به هڅه کوم چې خپل ژوند د نوي دور د مشاهېرو جیمي رولډوز او عمر طوریجو د ماډل سره سم تېر کړم.

څو میاشتې مخکې یوه بله ستره پېښه شوې وه، د ګټې کولو له مخې برونو د MAIN په تاریخ کې تر ټولو بریالی مشر و. خو په یو دم او بې له کوم خبرداري میک هال Mac Hall برونو له خپلې دندې لیرې کړی و.

## حوالې :

د SIL او تاريخ په اړه يې د لا زياتو معلوماتو لپاره د ګرارډ کولبي کتاب "They will be done" ولولې، سربېره پرې د جوکين ليکنه "SAVAGE" هم مطالعه کړئ.


۲- " Politics and Petroleum in Ecuador" John. D. Martz.

۳- "Objectivos politicas de CEPE" Jose Carvajal Candall.

## پنځه ویشتم فصل

# زما بېلتون

د برونو په تګ په MAIN زلزله غوندې راغله. په دفتر کې شخړې او مخالفتونه پیدا شول، خلکو به چې خبرې کولې ویل به یې چې برونو شرکت ته ډېره ګټه رسولې ده، له پنځلس کالو یې دلته کار کاوه، اوس یې چې لیرې کړ لامل یې دا و چې مشر ترې وېرېدلی و، ټول پوهېدل چې دا پرېکړه د حسد له مخې شوې وه.

یوه یې وویل: (هال دا نه شول زغملی چې برونو دې دومره پرمختګ وکړي، هغه پوهېده چې لږ وخت کې یې برونو ځای نیوه او ډېر لوی خلک له میدان وتل.)

دې خبرو هله زور واخیست چې د هال له خوا پال پر دې PAUL PRIDDY د نوي رئیس په توګه وګومارل شو. پال له څو کلو د MAIN معاون و. ډېر نرم او تکړه انجنیر و. د مشر (چیرمین) هره خبره یې منله او نوي مشر له ډېرې ګټې هېڅ وېره نه لرله، ډېر خلک زما له خبرې سره موافق وو.

ما فکر کاوه چې د برونو تګ خطرناک و. هغه زما شخصي ملګری او ناصح و، څو زمونږ په نړیوالو مسایلو کې یې شخصیت د ځانګړي پام وړ و. اپوټه د پردې پام ډېر داخلي مسایلو ته او د بهرنیو مسایلو په اړه لږ پوهېده. ما غوښتل د شرکت په راتلونکي پوه شوم، د برونو کور ته مې زنګ وواهه، څو د هغه غبرګون ډېر فلسفي و.

هغه راته د هال په اړه وویل چې : (هغه پوهېده چې هېڅ جواز یې نه درلود، ما د بېلتون لپاره غوښن امتیاز وغوښت او هغه یې راکړ. زه پوهېږم چې د هغه رایې ډېرې وې او که کوم ګام یې پورته کړ وی نو زه به یې وسه کېدم.)

برونو راته وویل چې نړیوال بانک یې پېرودونکی پاتې شوی دی، د کوم لوړ پوست وړاندیز یې ورته کړی او دا پرې فکر کوي.

ما ترې وپوښتل چې زه باید څه وکړم؟

مشوره یې راکړه چې: (سترګې پرانستې ساته، هال له حقایقو سره اړیکه پرې کړې، خو دا خبره به ورته هېڅوک نه کوي، خصوصاً په داسې حال کې چې پوهېږې ماسره یې څه کړي.)

د ۱۹۸۰ ز کال دمارچ په میاشت کې مې په ورجن جزیره د کښتۍ چلولو تفریح پیل کړه، د MAIN یوه کارمنده میري هم راسره وه. ما چې د استراحت لپاره کوم ځای ټاکلی و هغه وخت نه پوهېدم، خو اوس پوهېږم چې زما د نوي کال د پرېکړې په عملي کولو کې یې لویه ونډه لرله. زه یې په اشاره هغه وخت پوه شوم چې په سینټ جان جزیره کې مو چکر ووهه او سر فرانس ډریک کانال ته ننوتو، دې کانال وېرجن برطش جزیره (آیلند) له امریکا جلا کوله.

دا کانال د هسپانیایي بېړۍ چلوونکي ډریک په نوم نومول شوی و. له دې پوه شوم چې تېرو څو کالو کې مې څو ځله په ذهن کې د بحري جنګیالو او تاریخي شخصیتونو خبره راغلې وه. داسې نومونه هم پکې وو؛ لکه ډریک او سرهنري مارګن ، دوی غلاوې وکړې، خلک یې ولوټل خو بیا یې هم په شان کې قصیدې لیکل شوي دي، تر دې چې د سر (ښاغلي) خطاب ورته وشو. ما څو ځله له ځان وپوښتل، زه خو هم دې لپاره روزل شوی یم چې د داسې خلکو عزت وکړم، نو بیا ولې زما ضمیر ما د اندونیزیا، پانامې، کولمبیا او اکوادړو هیوادونو په استحصال ملامتوي. ایتهنی ایلن، توماس جیفرسن، جورج واشنګټن، دانیال بیون، ډیوي کراکټ، لویس او کلارک زما مشاهېر وو. دوی خو اندینز، غلامان او هغه ځمکې استحصال کړې چې د دوی نه

وې. ما به د خپل جرم د سپکولو لپاره ددې مشاهېرو بېلګې وړاندې کوې، خو اوس چې د سرافرانسيس کانال ته روان وم نو په خپلې پخوانۍ عقليت پسندۍ مې د کم عقلتوب احساس کاوه.

د تېرو کلونو څو خبرې مې رايادې شوې. ايتهين ايلن څو کاله د برطانوي بېړۍ په تنګ او تياره محبس کې تېر کړل. زياتره وخت به يې په پښو کې دېرش پونډه بېړۍ پرتې وې، بيا يوه اوږده موده د برطانيه په زندان کې جنګي اسير و. دی د ۱۷۷۵ ز کال د مانټريال په جګړه کې نيول شوی و، که څه هم ده د خپلواکۍ داسې جګړه کوله لکه عمر طوريجو او جيمي رولډوز يې چې د خپلو خلکو لپاره کوي. توماس جيفرسن، جورج واشنګټن او نورو اساسي مشرانو د همداسې فکر لپاره ځانونه په خطر کې واچول. د خپلواکۍ د جګړې کومه حتمي پايله نه وه. دوی پوهېدل که ناکام شوي وی نو د ناکامۍ په جرم يې ځای د اعدام تخته وه. په همدې دانيال بون، ډيوي کراکټ، ليوس او کلارک هم ډېرې ربړې تېرې کړې او سترې قربانۍ يې ورکړې دي.

ډريک او مارګان څه مقام درلود؟ د تاريخ په دې باب کې مې دومره مالومات نه لرل خو دومره پوهېدم چې معترضينو د انګلستان له هسپانوي کاتوليکانو ډېر خطر احساسوه. فکر کوم دوی دواړه ځکه د بحري قزاقانو لاره غوره کړه چې د هسپانيه پر بېړيو بريدونه وکړي ، ځکه دا کار په اصل کې ددې امپراتورۍ زړه داغل وو. د خپلې ګټې پر ځای به يې غالباً د انګلستان د دفاع لپاره دا کار کاوه.

موږ چې کانال ته نږدې شو نو په ډېر ارام د هغه غر خواته روان شو چې د اوبو له منځه راوتی و. GREAT THATCH ISLAND په شمال کې وې او سينټ جان په جنوب کې. دې سره هم له هغوافکارو خلاص نه شوم، هغه

افکار مې په ذهن خپاره وو. ميري راته يو بير راکړ او د جمی بفي د سندرې غږ يې لوړ کړ. سره له دې چې ښايسته منظرې راته ښکاريدې او کښتيو راته د خپلواکۍ احساس راکاوه خو بيا هم زه ورک ورک وم. ما غوښتل له دې حالته ووځم او په همدې نيت مې بير له ستوني تېر کړل.

نه ! دې خفګان زه نه پرېښودم، د تاريخي له پاڼو دې راتلونکو غږونو زه ځورولم. خپل پلار او هغو غږونو ته مې غوسه راتله چې ما پکې يو سپيڅلی ښوونځي ولوست او هلته يې دا خبرې راته په ذهن کې کينولې. د بيرو بل بوتل مې خلاص کړ، دومره احساساتي وم چې حتی ميک هال مې د برونو په سر وژلای هم شو.

يوه لرګينه بادبان لرونکې کښتۍ مو له څنګه تېره شوه. د کښتۍ دواړه بادبانونه خلاص وو. څو ښځو موږ ته لاسونه خوځول او شور يې کاوه. خوشاله وې، شوخ رنګ کالي يې اغوستي وو. د کښتۍ پر فرش يوه جوړه (ښځه او سړی) لوڅه پرته وه. کښتۍ او خلکو ته په يو نظر معلومات کېده چې خلک مسافر دي. ددوی خپله ګډه ټولنه ده، عصري قزاقان، دوی خپلواک وو، هېڅ بنديز پرې نه و.

ما غوښتل لاس ورته وخوځوم، خو لاس مې راسره ملګري ونه کړه، لکه چې حسد مې پرې راغی. ميري تر ډېره د کښتۍ پر فرش ولاړه وه، تر دې چې هغه بله کښتۍ فنا شوه، ويې پوښتلم :

(په تا دا ژوند ښه لګي؟)

ايله زه په ټوله خبره پوه شوم، زما غوسه مې مور، پلار او ښوونځي ته نه راتله، دا اصل کې زما خپل ژوند و چې کرکه مې ترې کوله، ددې مسئول يوازې زه وم، ما خپل ځان نه کرکه کوله.

میري کوم څه ویل، د کښتۍ بلې څنډې ته یې اشاره کوله، بیا ماته رانږدې شوه ویل یې : (لینسټر خلیج) را ورسید، شپه به همدلته کوو.)

دا ځای د سینټ جان له وچې (ای لینډ) سره نښتی و، همدلته د قزاقانو کښتۍ د هسپانوي ګولډفلیټ په موضع کې پټه شوې وه، ما خپله کښتۍ لږه ورنږدې کړه، بیا مې کښتۍ میري ته پرېښوده او زه یې بل سر ته لاړم، هغې کښتۍ د واټر میلن کی نه راتاوه کړه او ښایسته خلیج ته ننوتو.

ما د کښتۍ لنګر را خلاص کړ، میري په ډېر مهارت بادبان راښکته کړ، لنګر مې یوې خواته واچوه، درون زنځیر سپینو اوبو کې ډوب شو او کښتۍ ودریدله. په ارام چې ودریدو میري لږه وګرځېده او بیا ویده شوه. ما ورته یو پیغام پرېښود او خپله ساحل خواته روان شوم. هلته د ګنیو ویجاړو شویو پټو سره ودریدم. څو شېبې اوبو ته نږدې کیناستم. ډېره هڅه مې وکړه چې څه فکر ونه کړم او ذهن مې له احساساتو تش کړم خو بریالی نه شوم.

ماسپښین بیا د یوه غره سر ته وختم، په نږېدلي دیوال کیناستم او لنګر اچونکې بیړۍ ته مې کتل. لمر په کارابین بحیره کې ډوبیده. دا هر څه ساده او خوندور وو خو زه پوهېدم چې زما خواته پراته پټې خورونکي وو. دلته زرګونو تورپوټکو غلامانو خپل ژوند له لاسه ورکړی و. په دوی یې د ټوپک په زور ښایسته مانۍ ابادې کړې، ګني یې پرې وکرل او ګانې یې پرې وچلولې. ددې ځای د سکون تر شا د ظلم او وحشت کیسو شور جوړ کړی و. په دې ځای یوازې د امن پرده راخړیدلې ده، همداسې زما په ذات کې په شته کشمکش او طوفان هم یوه پرده ځړیدلې وه.

ددې جزیرې د ژېړو غرونو شاته لمر ډوبیده. په اسمان د ارغواني رنګ یو محراب خپور شوی و. سمندر تیاره شوی و. اوس مې نو دا تریخ حقیقت مخې ته ولاړ و چې ما خو هم خلک غلامان کړي دي. MAIN کې زما کار

یوازې دا نه و چې هیوادونو ته پورونه واخلم، ددې پورونو هدف خو یوازې همدا نه و چې د پوروړو هیوادونو په تېلو واکمن شوې او د وجود توتې ترې پرې کړو، زما او د MAIN د شریکانو کار یوازې ګټه زیاتول نه وو. زما دندې له خلکو او د هغوی له کورنیو سره ژوره اړیکه لرله. دوی هم دهغو غلامانو په څېر وو چې دا دیوال یې پرې رغولی او پکې خښ کړي یې دي، دا دیوال چې یې زه پر نړیدلي وجود ناست یم. رښتیا خبره خو دا ده چې موږ د خلکو استثمار کړی دی.

له لسو کلونو زه د همدې غلام سازو خلکو وارث یم. دوی به د افریقا ځنګلونو ته تلل، ښځې او نر به یې نیول او په زوره به یې بېړیو ته پورته کول.

زما کار یو څه عصري و، نازک او پیچلی، ما څوک نه دي وژلي، د مړو بویونه نه مې نه دي حس کړي. دردونکي چیغې مې نه دي اوریدلي، خو څه مې چې کړي هر شبه یې له بدیو ډکه ده، ځکه چې ما ځان له داسې دردوونکو پېښو خوندي ساتلی دی، ما د چا مرګ، چیغې او فریادونه نه دي لیدلي، زه ډېر ګنهګار وم.

یو ځل مې خپلې کښتۍ ته وکتل، ولاړه وه او له څپو سره یې مبارزه کوله، میري په تخت ګرځېدله، لکه چې له مارګریتا شرابو یې خوند اخیست، په تمه به وه چې زه ببرته ورشم او ماته یې هم راکړي. ما چې د ډوبیدونکي لمر په دې وروستیو کې شپبو کې لیدله ډېره ارامه او بیغمه ښکاریده. زه ولړزیدم، زه دې او خپلو نورو همکارانو سره څه کوم؟ په کومو حیلو مې له دوی اقتصادي جنایتکاران جوړول. ما دوی سره عیناً هماغه څه کول چې کلاډین ماسره کړي وو، خو په دې توپیر چې زه د کلاډین هومره ښتینی نه وم. ما غوښتل دوی د پرمختګ او معاشونو په حرص کې فاسد او غلام ساز

کړم، خو زما په خبر دوی هم له نظام سره نبنتي وو او په خپله هم غلامان وو.

له سمندر، اسمان او ارغواني مابنامه مې مخ واړواه. له هغو دیوالونو مې هم سترګې پټې کړې چې د جوړولو لپاره يې له افریقا نه غلامان راوستل شوي وو. غوښتل مې له هر څه جلا شم. یوه شېبه پریوتم، اسمان ته مې ولیدل، چې سترګې مې پرانستې په یوه کوتک (لرګي) مې سترګې ولګیدې، ډبلوالی يې د کلنګ د لاستي قدر و، کوتک مې راواخیست او دیوال ته مې ونیوه، تر هغه مې دا دیوال وواهه چې بلاخره زه ستړی شوم، بیا ښایسته شېبه په کبلو (چمن) پریوتم په اسمان کې مې وریځو ته کتل.

بلاخره راستون شوم، څو شېبې پر ساحل ولاړ وم، خپله کښتۍ مې ولیده چې په شنو اوبو کې ولاړه وه، زه په دې پوه شوی وم چې څه باید وکړم. پوه شوم چې که خپل پخواني ژوند MAIN او اړوندو مسایلو ته ورستون شم له منځه به لاړ شم. معاش، تقاعد، بیمه، جایزې، سفریې ... دا ډېر زړه راښکونکی جال و، څومره چې پکې اوسېدی همدومره ترې راوتل ستونزمن وو، زه غلام وم یوازې غلام، زه باید یا بهر راوتی وی او یا مې ټول عمر ځان داسې وهلی وی لکه دا دیوال مې چې وواهه.

دوه ورځې وروسته بېرته بوسټون ته راستون شوم، د ۱۹۸۰ ز کال د اپریل په لومړۍ نېټه د پال پرډي دفتر ته ورننوتم او استعفا مې ورکړه.

## شپږ ویشتم فصل

# د اکوادور د ولسمشر مړینه

د MAIN پرېښودل اسان نه وو. د پال پردي باور نه کېده، سترګې يې وموښلې ويې ويل: (اپریل فول کوې مې؟) (د اپریل لومړۍ نېټه د دروغو نړیواله ورځ ده. ژ)

ما ورته وويل چې جدي يم. د پاولا نصیحت مې په یاد و چې راته یې ویلي وو، هېڅوک مه خبروه چې ته ګني اقتصادي جنايتکار افشاء کوې. ما ورته وويل چې MAIN راته څه کړي د ټولو قدر کوم، خو زه باید لاړ شم. تل مې غوښتل د هغو خلکو په اړه لیکل وکړم چې په MAIN ورسره معرفي کړم. له داسې خلکو نړۍ ډکه وه خو زما لید سیاسي نه و. ورته مې وويل چې د نیشنل جیوګرافیک یا کومې بلې مجلې سره به د ازاد خبریال په توګه کار کوم، دې سره به مې د سیل او چکر شوق هم پوره شي. له MAIN سره مې د وفادارۍ ژمنه وکړه او ومې ویل چې هر ځای کې به ددوی صفتونه کوم او بلاخره پال پردي ومنله.

له دې وروسته راته ټولو ویل چې استعفا دې بېرته واخله. تکراراً راته ددې ادارې ګټې په ګوته کېدې او ځینو خو آن لیونی وبللم. زه پوهېدم دوی دا نه شوه زغملای چې زه دې دوی په خپله خوښه پرېږدم. لږ تر لږه په جزوي ډول همداسې وو، ځکه له دې پېښې وروسته باید هغوی په خپلو معاملاتو هم فکر کړی وی. که ما دا ځای د کوم لیونتوب له امله نه و پرېښي نو دوی باید فکر کړی وی چې ددوی په کې څه ګټه ده؟ ددې ستونزې یوازینی حل دا و چې ما خپل حواس بایللي دي.

تر ټولو خورونکی غبرګون زما د پرسونل و. دوی فکر کاوه چې زه ګنې ورسره ټګي یا خیانت کوم. ځکه دوی ته بل قوي ځای ناستی هم نه ښکاریده خو ما پخه اراده کړې وه. له دومره تودو سړو وروسته مې نن ایله پخه پریکړه کړې وه.

له بده مرغه هر څه هغسې نه شول چې ما يې فکر کاوه. ما دنده نه لرله. د MAINهم نیمګړی شریک وم. دومره څه نه وو چې ورته ناست وی، که زه له دې دفتر سره لږ وخت نور پاتې وی نو د حساب له مخې، ځلوېښت کلنۍ کې به مې ښې پیسې لرلې. خو اوس مې باید په پنځه دیرش کلنۍ کې ددې هدف ترلاسه کولو لپاره ډېرې هلې ځلې کړې وی. په بوستن کې د اپریل دا میاشت سړه او بې خونده وه. یوه ورځ راته پال پرډي وویل چې د هغه په دفتر کې ورسره وګورم. په لیدنه کې يې راته وویل : (زموږ یوه پېرودونکي د کار نه راکولو ګواښ کړی دی، موږ ته يې کار په دې شرط راکاوه چې د متخصصینو پر وړاندې به يې ته وکالت کوې.)

ما په دې مسئله فکر وکړ. همدلته مې فکر وکړ، د خپل کار بیه مې ورته وویله، دا بیه په MAIN کې زما له معاشه درې چنده زیاته وه. زه حیران یم چې څنګه يې راسره ومنله، په دې توګه مې د عاید یوه سرچینه پیدا شوه.

په وروستیو څو کلونو کې زه د ډېر معاش اخیستونکی مختصص وکیل وم. په اصل کې زه د هغو امریکايي برېښنايي شرکتونو وکیل وم چې د عامه چارو له کمیسیون نه يې د نویو برېښنا کوټونو د نصب امر اخیسته. په پېرودونکو کې مې یو د نیوهمپشایر د عامه خدمتونو شرکت هم و. زما دنده دا وه چې په ډېره دعوه مې د سي بروک نیوکلر پلانټ د عملي کولو جواز قسماً وړاندې کړی وی.

که څه هم اوس مې له لاتيني امريکا سره مخامخ اړيکې نه لرلې خو له پېښنو يې خبريدم، کار مې داسې و چې د حاضريو (جلسو) په منځ کې مې ډېر وخت درلود. پاولا سره مې اړيکه لرله. ترڅنګ مې يې د اکوادور په پيس کور کې هم له ځينو پخوانيو ملګرو سره اړيکې ورغولې. دې هيواد په ناڅاپي ډول د تېلو په نړيوال سياست کې مرکزي ونډه خپله کړې وه.

جيمي رولډوز پر مخ روان و، کمپاين کې پر کړيو ژمنو عمل يې کاوه، د تېلو د شرکتونو پرضد يې پراخ کمپاين پيل کړی و، هغه شيانو ته ځير و چې د پانامې د کانال د دواړو خواو چارواکو ته نه ښکاريدل يا يې پرې سترګې پټې کړې وې. د ځمکې لاندې هغو څپو باندې ښه پوهېده چې نړۍ يې په نړيواله امپراتورۍ بدلوله. پوهېده چې دا څپې به د هيواد وګړي د داسې يوې لوبې برخه وګرځوي چې پولې به يې په لوړه او بيوزلې ختميږي. دده په اړه له خپريدونکو ليکنو ډېر اغېزمن وم. دا سړی خپله هم پوهېده او په نورو مسايلو يې هم سر خلاصيده. دې ژورو مسايلو دې ته اشاره کوله چې نړيوال سياست نوي دور ته ننوځي.

د ۱۹۸۰ ز کال د نومبر په مياشت کې کارټر ټاکنې وبايللې او ريګن بريالی شو. دده د بايلات لاملونه، طوريجو سره د کانال تړون، ايران کې د امريکا د سفارت کارکوونکي يرغمال کېدل او په خلاصون کې دده ناکامې هڅې وې. ځينې پېچلې پېښې هم شوې وې. د يو ولسمشر اصلي هدف نړيوال امن و او غوښتل يې په تېلو د امريکا تکيه کمه کړي خو اوس يې ځای داسې يو کس نيولای و چې پوهېده د امريکا اصلي مقام تر ټولې نړۍ لوړ دی او دا مقام يوازې په پوځي قوت ترلاسه کېدای شي. دا چې چېرته هم د تېلو زېرمې دي، نيول يې د (تقدير ليک) يوه برخه ده. اوس هغه ولسمشر تللی و چې د سپينې مانۍ پر چت يې د لمريزې برښنا تختې نصب کړې وې.

پر خای یې داسې یو کس راغی چې ځنګه OVAL دفتر ته رانوت دا تبنتې یې لیرې کړې.

کېدای شي کارټر به د امریکا لپاره ډېر ګټور نه و، خو افکار یې هغو ارادو ته ورته وو چې د خپلواکۍ په جګړه کې ښودل شوې وې. اوس چې شاته ګورم، نو دا سړی راته ډېر زوړ فکره انسان ښکاري. دا هغه زاړه افکار وو چې امریکا یې په یوه نوي چوکاټ کې واچوله او زموږ پلرونه یې سینې پورې ونیول. موږ یې چې له اوسنیو مشرانو سره پرتله کوو؛ نو ددوی له ډلې نه ښکاري. دده نړیوال لید له اقتصادي جنایتکارو سره جوړ نه ښکاري.

ددې اپوټه ریګن د نړیوالې امپراتورۍ رغوونکی او د کارپوریټوکراسۍ خادم و. دا چې بریالی شو نو ما وې چې د هالیووډ ممثل پوسټ ورته ښه و. هلته به یې روزلی وی چې د مشرانو په وینا عمل وکړي او هدایت اخیستل خو یې ښځي په فطرت کې نه وو. دا به حتمن د هغو خلکو غوښتنې مني چې کله په شرکتونو ګرځي، کله په نړیوال بانک کې وي او کله بیا په لویو حکومتي پوستونو کار کوي. دا به د هغو خلکو خدمت کوي چې په ظاهره دده خدمت کوي خو په اصل کې ټول نظام پر مخ وړي. تاسو یې له دې نومونو پیژندلای شئ: د ولسمشر معاون جورج. ایچ. ډبلیو بوش، د بهرنیو چارو وزیر جورج شټلز، د دفاع وزیر کسپر وین برجر، ریچارد چیني، ریچارد هلمز او رابرټ میکنامارا. دا ولسمشر به د هر هغه شي ملاتړ کوي، چې دوی یې غواړي: داسې امریکا چې پر ټوله نړۍ او سرچینو یې واکمنه وي. داسې نړۍ غواړي چې ددوی حکم ومني، داسې پوځ چې د امریکا احکام نافذ کړي،د نړیوالې سوداګرۍ او بانکدارۍ داسې سیستم چې مشر یې تل د امریکا په خدمت کې وي.

ما چې راتلونکي ته وکتل، نو فکر ومې وکړ داسې یوه دور ته داخلیږو چې د اقتصادي جنایتکارو لپاره به یو ستر نعمت وي.

دا هم د قسمت کار و چې په ما په دې وخت کې د MAIN پرېښودو پرېکړه کړې وه، څومره فکر مې چې کاوه هومره مې پرېکړه سمه ښکاریده، دا بې ډېر ښه وخت و. د اوږدمهالو اغېزو په اړه مې وړاندوینه نه شوه کولای؛ خو د تاریخ مطالعه ښیي چې امپراتورۍ ډېر وخت دوام نه کوي. ما چې له کومې زاویې لیدل رولډوز غوندې خلک راته هیله بښوونکي ښکاریدل. زه پوهېدم چې د اکوادور اوسنی ولسمشر له اوسنیو پېچلتیاو ښه خبر دی. دا هم رامعلومه وه چې هغه د طوریجو مینه وال و او د پانامې د کانال په اړه یې د کارټر زړور موقف ته په درنه سترګه کتل. ما باور درلود چې د رولډوز قدمونه به نه لړځیږي. هیله من وم چې دده کړنې به یوه شمع روښانه کړي، چې نور ولسمشران یې له رڼا ګټه واخلي، خو ددې لپاره ورته د طوریجو په څېر خلکو فیض اړین و.

په ۱۹۸۱ ز کال کې د رولډوز ټیم د هایدرو کاربن د قانون مسوده د اکاډور کانګرئیس ته وړاندې کړه. که دا قانون پلی شي نو ددې هیواد او تېلو شرکتونو اړیکې به ښې شي. د هراړخیز معیار له مخې دا انقلابي او پر اقلیت ولاړ ګڼل کېده، دې قوانینو دومره وړتیا لرله چې د کاروبار رخ یې بدلولای شو. دده اغېزې به له اکودوره پیل او تر لیرې ځایونو خپرې شي، لاتینې امریکا او حتی ټولې نړۍ ته. (۱)

لکه څنګه چې فکر کېده د تېلو شرکتونو سخت غبرګون وښود. مخالفانه تبلیغات یې پیل کړل او د رولډوز د بدنامولو لپاره یې زهرجنې ژبې وخوځولې، چې حاشیې یې له کیټو نه تر واشنګټن وغځیدې. لاسي بکس یې له چاودیدونکو توکو او رشوته ډک شو. د اکوادور د معاصر دور منتخب ولس

مشر يې د کاسټرو په رنګ کې وښوده. خو رولډوز د وېرې سړی نه و. د ځېرې خواب يې په سوک ورکړ او د تېلو، مذهب او سياست تر منځ جوړجاړی يې وغنده، که څه هم کوم ثبوت يې نه درلود، خو تور يې پورې کړ چې سمر انسټيټيوټ آف لنګوسټکس د تېلو له شرکتونو سره جوړجاړی کړی، بيا يې يو زړور ګام پورته کړ او امر يې ورکړ چې SIL دې دا هېواد پرېږدي. (۲)

کانګرس ته د مسودې له ليږلو او د SIL د مبلغينو له وتلو څو ورځې وروسته يې تولې بهرنۍ ادارې (د تېلو شرکتونو په ګډون) وګواښلې چې که د اکوادور د ولس په ګټه پلان نه عملي کوي، نو له دې هېواده به وويستل شي.

ده د کيټو په هالپا اولمپيک لوبغالي کې يوه تاريخي وينا وکړه او بيا يوه واړه کلي ته روان شو. همالته د ۱۹۸۱ ز کال د مئ په ۲۴ نېټه په يوه هوايي پېښه کې مړ شو. (۳)

ټوله دنيا ولړزيده، د لاتينې امريکا خلک خفه شول، ددې نيمې وچې په ورځپاڼو کې د (قاتله CIA) عنوان خپور شو. يو حقيقت خو دا و چې واشنګټن او د تېلو شرکتونو ورسره ستونزه لرله، ددې حقيقت تر څنګ ځينې نور داسې شواهد هم رامخته کېدل چې د خلکو په ذهن کې يې شکونه زېږول. ثابت هېڅ هم نه شول، خو د عيني شاهدانو په وينا رولډوز ګواښل شوی و چې ژوند ته يې خطر دی. ځينې حفاظتي تدابير يې هم نيولي وو، چې يو يې پکې پر يوه وخت د دوو الوتکو پرواز و. هېڅوک نه پوهېدل چې هغه په کومه الوَتکه کې سفر کوي، په همدې ورځ يې امنيتي مسئول دا په هغه الوتکه کې کيناوه چې په هوا کې يې چاودنه وکړه. ټوله دنيا کې غوغا جوړه وه خو د امريکا رسنۍ پرې غلې وې.

اسوالډ هرټاډو نوی ولسمشر شو، دده په اداره کې د SIL کارکوونکو بیا فعالیت پیل کړ او ځانګړې ویزې یې ورکړې. د تېلو په کیندنو کې د زیاتوالي پلان یې ورکړ چې د ټیکساکو ارزښت پکې ډېر و. (۴)
عمر طوریجو پرې په تبصره کې رولډوز خپل ورور وباله او دا یې ومنله چې دده ژوند ته هم خطرونه پېښ دي، د خپل یوه وېرونکي خوب د ویلو په ترڅ کې یې وویل چې د اور په یوه لوی غونډاري کې له اسمان راولېږي، دده وراندوینه تکي په تکي رښتیا وه.

**حوالې**

١. "Politics and petroleum in Ecuador" John.D.Martz.

٢. "They Will de Done......."- Gerard Colby

٣. "Politics and petroleum in Ecuador" – John D. Martz.

٤. Ibid

# اوه ويشتم فصل

## پانامه د يوه بل ولسمشر په دور کې

د رولډوز د مرګ په اوريدو هک پک شوم، زه بايد داسې نه واى شوى، ځکه زه دومره ساده نه وم، چې په دې مسايلو پوه نه شم. زه د آربينز، مصدق، الاندې او نورو ډېرو خلکو په اړه په ډېر څه پوهېدم، ددوى په اړه په مجلو او خبرونو کې تبصرې کېدې، خو ددوى ژوند تباه او يا لنډ شو، ځکه چې دوى سوداګري (کارپوريټوکراسي) ننګولې وه، ماته که څه هم لړزونکى خبر و، خو نور هر څه ښکاره وو.

په سعودي کې زموږ له بې سارې بريا وروسته ما ګڼلې وه چې داسې څرګند بې ځايه اقدامات اوس زړه کيسه ده. ما دا هم ګڼلې وه چې (ګيدړان) به اوس ژوبن لوټي. ما په دې کې هېڅ شک نه درلود، چې د رولډوز مرګ پېښه نه وه، دده په مرګ کې د CIA دسيسه له ورايه ښکاريده، زه پوهېدم دا وژنه ښکاره ځکه شوې چې خلکو ته ترې يو پيغام ور ورسيږي. (ګيدړان) ببرته تللي وو، ددوى نښه اوس عمر طوريجو او ټول هغه خلک وو، چې د کارپوريټوکراسى مخالفت يې کاوه.

خو طوريجو سر نه ټيټاوه، دى هم لکه د رولډوز، زړور و، ده هم SIL اداره له هيواده بهر کړه، د ريګن هغه غوښتنه يې رد کړه، چې پر کانال د بيا خبرو اترو لپاره يې کړې وه.

د رولډوز له مرګه دوه مياشتې وروسته د عمر طوريجو خوب ربښتيا شو او دى هم د ۱۹۸۱ ز کال د جولايي په ۳۱ مه نېټه په هوايي پېښه کې ووژل شو. لاتينه امريکا او ټوله دنيا ولړزيده، طوريجو هر چا پيژانده، خلکو يې قدر کاوه، دا هماغه کس و، چې قوت يې امريکا ببرته د پانامې کانال ورکولو ته

اړ کړې وه، تر څنګ یې د ریګن پر وړاندې هم نیغ ولاړ و. د انساني حقونو لوی سرلاری و، داسې رهبر و چې سیاسي مظلومینو ته یې ښه راغلاست وایه، یو پکې د ایران شاه هم و، د ټولنیز عدالت لپاره یې غږ پورته کاوه، خلکو باور درلود چې د نوبل جایزې ته به ونومانديږي، دا کس مړشوی و، (د CIA یو بل قتل)، په ټوله نړۍ کې د رسنیو ستر عنوان و.

په پانامه هوټل کې مې چې له ګراهم ګرین سره وکتل، نو د هغه د نوي کتاب Getting to Know the General په اړه مو خبرې وکړې، ددې کتاب یو پاراګراف دی چې :

(د ۱۹۸۱ په اګست کې د پانامې د پنځم سفر لپاره زما بکس چمتو و، چې په ټیلیفون مې د خپل ملګري او کوربه، عمر طوریجو د مرګ خبر واورید، هغه وړوکې الوتکه د پېښې ښکار شوه چې عمر پکې خپل غرني کور ته روان و، په الوتکه کې سپاره ټول خلک ووژل شول، څو ورځې وروسته یې پر ټیلیفون د ساتونکي سرجنټ چوچو غږ پورته شو، سرجنټ چوچو په پانامه پوهنتون کې د مارکسي فلسفې استاد و، ترڅنګ یې شاعر هم و، هغه راته وویل چې په الوتکه کې بم و، زه باوري یم چې په الوتکه کې بم و، خو دا چې ولې و؟ په ټیلیفون یې نه شم ویلی.) (۱)

په هر ځای کې د هغه کس پر مړینه ماتم کیږي چې د بیوزلو او بې کسو خلکو ساتونکی ګڼل کیږي. خلکو پر واشنګټن غږونه کول چې د CIA پر فعالیتونو دې څېړنې وشي، خو داسې ونه شول. له طوریجو ډېرو خلکو کرکه هم کوله، په دوی کې داسې خلک هم وو، چې ډېر قوت او شتمني یې درلوده. زه چې څومره پوهېږم دا سړی د ریګن، بوش، وین برجر او نورو سترو ستهو د لارې خنډ و. کارټر د هغه تړون په مادو خفه و، چې له مخې یې دوی باید سکول اف امریکاز او ټراپیکل جنګي مرکز بند کړي وی، دا د

پوځي مشرانو پر وړاندې لویه ستونزه وه، یا خو یې باید دا ترون بدل کړی وی او یا یې باید داسې هیواد موندلای وی چې دوی ته یې دا تولې اسانتیاوې ورکولې. د شلمې پیړۍ په وروستۍ لسیزه کې دا ناشونې وه، اوس یوازې یو بدیل پاتې وه، چې طوریجو له مخې لیرې شي او د هغه له ځای ناستي سره د نوي ترون خبرې اترې پیل شي.

د طوریجو په کاروباري رقیبانو کې تول ستر نړیوال شرکتونه وو. زیاتره پکې امریکایي سیاسیونو پورې تړلي وو. دوی د لاتیني امریکا د مزدورانو، طبیعي زېرمو، صعنت، لرګیو، فلزاتو او کرنې په استثمار اخته وو. په دوی کې صنعتي، ترانسپورتي، بحري، انجینري او نور شرکتونه شامل وو. د امریکا د حکومت او شخصي شرکتونو تر منځ د اړیکو ښه بېلګه بیشټل انټرنیشل ګروپ و، چې په مشرانو کې یې جورج شلټرز او کیسپر وین شامل وو. ما بیشټل ښه پیژانده، زه چې په MAIN کې وم دې شرکت سره زیاترو کارونو کې نږدې پاتې شوی وم. ددوی مشر انجینر زما شخصي ملګری و. بیشټل د امریکا ډېر اغېزناک ساختماني او انجینري شرکت دی. د بیشټل زیاتره کارکوونکو له عمر طوریجو کرکه کوله، ځکه هغه د یوې جاپانی پروژې کلک ملاتړ کاوه، چې پکې د پانامې پر ځای د یوه بل ګټور کانال د کیندلو پلان هم موجود و. په بله وینا ددې معنا دا وه، چې د پانامې د کانال ملکیت له امریکایانو پانامې ته لیږدول کېده، تر څنګ به یې د پیړۍ تر تولو ستره ساختماني پروژه د بیشټل له لاسه وتله.

طوریجو ددې خلکو مخې ته سینه سپر کړې وه او دا تول کارونه یې په ډېره زړورتیا، ښایست او د حیرانتیا تر حده په خندونکي ډول وکړل. اوس هغه په دې نړۍ کې نه و، د هغه ځای یوه ناوړه کس مینوول نوریګا نیولی و، دی

نه د طوریجو غونډې هوښیار و، نه ځیرک او د ډېرو خلکو په وینا دا سړی د ریګن، بوش او بیشتل پر وړاندې هېڅ هم نه و.

دې پېښې زه وځورولم، له طوریجو سره مې په خپلو خبرو فکر کاوه، یو ځل مې د شپې تر ناوخته په مجله کې د هغه تصویر ته کتل، په پانامه کې لومړۍ شپه رایاده شوه چې په ټیکسي کې روان وم او د سرک پر غاړه ځړیدلی یو لوی انځور مې ولید، انځور لاندې لیکل شوي وو : (د عمر فکر خپلواکي ده او تر اوسه داسې توغندی نه دی جوړ شوی چې فکر ووژني.)

دې لیک مې په زړه یخني نتویسته، په هغې طوفاني شپه هم همداسې شوی وم.

هغه وخت زه په دې نه پوهېدم چې طوریجو به له کارټر سره د کانال په بېرته سپارلو کې مرسته وکړي. زه نه پوهېدم چې د امریکایي کمونیستانو او چاړواکو تر منځ د سولې هلې ځلې به ګني ریګن او د بوش اداره دې حد ته راولي، چې د طوریجو مرګ ته به غاړه کیږدي، د سینټ له خېړنو دا خبره ځرګنده شوه. (۳) هغه وخت زه څه پوهېدم چې دا به په توره شپه کې په یوه وړه الوتکه کې وژل کیږي او نړۍ به هېڅ شک هم نه کوي، چې ۵۲ کلن طوریجو ګني د امریکا CIA وژلی دی.

که هغه ژوندی وی نو د منځنۍ او جنوبي امریکا د خلکو تر منځ د زیاتېدونکي تاوتریخوالي د مخنیوي هڅه به یې کوله. د هغه سوانح ته په کتو ویلای شو داسې یو نظام به یې رامنځته کړی وی چې د تېلو شرکتونو به د امازون په سیمه کې (اکوادور، کولمبیا او پیرو) کې د بربادۍ جرات نه کولای. یوه ګټه یې دا وه، واشنګټن چې کومه جګړه د ترهګرۍ او نشه یي توکو جګړه ګني او دوی یې د مظلومو خلکو د بقا جنګ ګني، دا شخړه به حل شوې شوه. زه په دې باور یم چې دا به د امریکا، آسیا او افریقا د

رهبرانو لپاره یوه الګو وای او دا هغه څه دي چې CIA ، NCI اوEHM (اقتصادي جنایتکار) یې هېڅکله نه شي زغملی.

## حوالې :

۱."Getting to Know the General" – Graham Greene

۲. نکبسن/فورډ اداره (۱۹۷۲ تر ۱۹۷٤، جاج شلټز د خزانې وزیر او د اقتصادي پالیسی د کونسل مشر و. ۱۹۷٤ نه تر ۱۹۸۲ پورې د بیشتل مشر و. د ریګن او بوش په اداره کې د بهرنیو چارو وزیر و. په همدې دول کیسپروین بجر هم د نیکسن او فورډ په دوره کې د معارف، روغتیا اوټولګټو چارو وزیر و. تر څنګ یې د بودیجې او ادارې امورو د دفتر مشر هم و. د بوش په دوره کې د دفاع په وزارت کې و او په زړه پورې دا ده چې له ۱۹۷۵ نه تر ۱۹۸۰ پورې د بیشتل ګروپ معاون هم و.

۳. په ۱۹۷۳ د واټرګیټ قضیې د اوریدنې پر مهال جان ډین لومړی کس و چې د امریکا د سینټ پر وړاندې یې دا کشف کړه چې د طوریجو په وژنه کې د امریکا دسیسه وه، د سناتور فرنیک چرچ په مشرۍ د CIA په اړه څېړنه کېده، ۱۹۷۵ ز کال کې دوی ته د طوریجو او نوریګا د وژنې په اړه لا ډېر اسناد او شواهد مخې ته شول، د لا ډېرو معلوماتو لپاره وګورئ.

"The Memoirs of Manuel Noriga ...." Peter Eisner

اته ويشتم فصل

# زما شرکت ، انران او جورج ډبليو بوش

د طوريجو له مړينې وروسته مې د پاولا له ليدو څو مياشتې اوښتې وې. په دې موده کې مې څو مېرمنو سره د مينې ملاقاتونه شوي وو، چې يوه پکې (وېني فريډ) هم وه. دا ښايسته مېرمنه د چاپېريال پلان جوړوونکې Enoviromental planner وه. ما ورسره په MAIN کې وليدل. پلار يې په بېشتل کمپنۍ کې مشر انجينر و. پاولا د کولمبيا له يوه خبريال سره ليدنې کولې. موږ ښه ملګري وو، خو پرېکړه مې کړې وه چې د مينې تار سره پرې کړو.

زما دنده د مسلکي وکيل وه. د سي بروک نيوکلر انرژۍ شرکت د جواز لپاره دليل ويل زما مسئوليت و. ما به تل فکر کاوه، چې ځان مې وپلوره او يوازې د پيسو لپاره بېرته خپل پخواني مسلک ته ننوتم. په دې موده کې راسره وېنې فريډ ډېره مرسته وکړه. هغه چاپېريال پوهه وه، خو تر څنګ يې د برېښنا د لوړېدونکې تقاضا په اړه هم معلومات لرل. دا د سان فرانسيسکو د ختيځ خليج په برکلي سيمه کې رالويه شوې وه. همالته يې زده کړې هم کړې وې. پراخ فکره مېرمن وه. د ژوند په اړه يې افکار زما له سختګير پلار او AAN سره بېخي په تضاد کې وو.

اړيکې مو پراخېدې. دې له MAIN نه رخصت واخيست او موږ دواړه زما په شخصي کښتۍ کې د فلوريډا اتلانتيک ساحل په چکر ووتو. د وخت کمی نه و. په زياتره ساحلونو کې به مو کښتۍ پرېښوده او زه به د خپلې دندې په اړه د نظر ورکولو لپاره په الوتکه کې سپور شوم. بلاخره د فلوريډا په ويسټ نومې ساحل کې ميشت شو او يو اپارتمان مو کرايه کړ. همالته مو واده وکړ

د ۱۹۸۲ کا مئ په ۱۷ نېټه مو لور (جيسيکا) وزېږده. زما عمر په دې وخت کې ۳٦ کاله و.

زما مسئوليت دا و، چې نيو همپشاير کې د عامه خدمتونو يو شرکت قايل کړم، چې له اقتصادي پلوه حکومت ته اټومي انرژي تر ټولو ښه ټاکنه ده. له بده مرغه ما چې څومره دا دوسيه لوستله همدومره مې ښېرته په خپلو دلايلو شک او ترديد زياتېده. ددې موضوع اوسني ادبيات په بدليدو وو. له دې ښکاريده چې د څېړنې ساحه څومره پراخه شوې ده. اوسنی شواهد ښيي چې د انرژۍ ډېرې متبادلې سرچينې له مسلکي او اقتصادي پلوه تر اټومي انرژۍ ښې دي.

دې پخواني نظر اوس وزن بايللی و، چې ويل به يې اټومي انرژي خوندي ده. اوس د BACK UP سيستم د روغتيا په اړه بېلابېلې پوښتنې راولاړې شوې وې. تر څنګ يې د چلوونکو روزنه، انساني خطاوې، د ماشينری خوړ او د فاضله موادو د ليږد نيمګړی سيستم ... هغه ستونزې وې چې موږ ورته مثبت ځواب نه درلود. د شاهدانو په ځای کې به مې چې قسماً کوم موقف اختيار کړی و هغه ته هم اندېښمن وم ، ځکه دا ټوله د محمکې د چارو برخه وه. ما دا هم منله چې نوي فني اکتشافات د برښنايي انرژۍ ترلاسه کولو لپاره داسې لارې چارې وړاندې کوي، چې چاپېريال ته به هم په ګټه وي. مهمه خبره پکې دا وه، چې اوس هغه فاضله مواد هم ښېرته کاريدل، له کومو چې د برښنا انرژي توليدېده.

يوه ورځ مې د نيو همپشاير په يوټيليټي شرکت کې چارواکي خبر کړل چې زه ددوی له خوا شاهدي نه شم ورکولای. دا ګټوره دنده مې هم پرېښوده. بيا مې وويل چې خپل يو شرکت به جوړ کړم او عصري ټکنالوجي به ددې عمل ميدان ته راوباسم. مېرمن مې ويني فريډ راسره ډېره مرسته وکړه. که

څه هم پوهېدو چې زموږ نوی پلان ډېر د ډاډ وړ نه دی خو بیا مو هم یو نوی ژوند پیل کړ او نوې نړۍ ته ننوتو.

په ۱۹۸۲ کال کې د جیسیکا له زېږېدو څو میاشتې وروسته مې د خپل شرکت INDEPENDENT Power System (IPS) بنسټ کېښود. ددې شرکت اهداف دا وو : د داسې یوه برېښناکوټ نصب چې چاپېریال ته زیان ونه رسوي او د داسې موډلونو رامنځته کول چې نورو ته د هغوی د موخو په ترلاسه کولو کې حوصله ورکړي. په کاروباري لحاظ دې پلان ډېر خطرونه لرل. همدا لامل و، چې زموږ ډېر سیالان بلاخره ناکام شول. خو ځینې داسې پېښې وشوې، چې موږ یې له ناکامۍ راوویستو. ما باور درلود، چې زیاتره وخت یو څوک د مرستې لپاره راوځي او په دې هم باوري وم، چې پخواني خدمتونه او چوپتیا به مې هرو مرو څه بدل راکوي.

برونو زمبوټي په کورني پراختیایي بانک کې ستره دنده واخیسته. ده په IPS بورډ کې د برخه اخیستو او نوي شرکت سره د مالي مرستې په برخه کې زموږ ملاتړ وکړ. اوس نو موږ د ډېرو سترو ادارو لکه ، بینکرز ټرسټ، ای ایس ای انرژي، پروډشنل انشورنش کمپني، شډ بورن اینډ پارک، ریلي ستوکر کارپوریشن ملاتړ درلود. پر دې سربېره مو د کانګرس ملاتړ هم ترلاسه کړ، هغوی راته یوه ځانګړې ډول مالیه معاف کړه او دې سره موږ په خپلو سیالانو باندې شو.

په ۱۹۸۴ کال کې ببشتل او IPS شرکتونو په دوو جلا جلا ځایونو کې، پر داسې برېښنا کوټونو کار کاوه، چې ضایع د شویو ډېرو سکرو تزابیت به یې نه خپراوه او د نوې ټکنالوجۍ په مرسته به یې هغه ببرته د بیاځلي کارونې لپاره رغوله. ددې لسیزې تر پایه دې دواړو شرکتونو یو انقلاب رامنځته کړې و. دې کار د هوا د کړکتیا پر ضد نویو قوانینو سره مرسته وکړه. دا هم ترې

ثابته شوه چې ډېر ضایعات په برېښنايي انرژۍ اوښتی شي او د ډېرو سکاره داسې هم سوځي، چې تیزابیت یې خپور نه شي. تر دې دمه چې د ټولګټو چارو شرکتونو د تیزابیت په اړه کومې دعوې کولې ټولې ناسمې ثابتې شوې. موږ دا هم ثابته کړه، هغه ټکنالوجي چې تراوسه باوري شوې هم نه وه، یوه وړوکي شرکت د وال سټریټ او نورو مالي ادارو په مرسته د باور وړ وګرځوله. ۱ نورو شرکتونو له برېښناکوټه خارجېدونکې حرارت تر یخو برجونو رساوه، خو موږ برعکس همدا حرارت هغه ۷ جریبه ځمکې ته ولیږداوه، چې د ترکارۍ او نیالګیو شنه خونه (ګرین هاوس) پکې جوړه شوې وه.

د IPS شرکت د مشر په توګه مې د انرژۍ صنعت لور ته ذهني دريځې په خلاصیدو شوې . ددې کاروبار په برکت له ډېرو بارسوخه خلکو سره بلد شوم، چې وکیلان، لابي ګران، بانکداران او د لویو شرکتونو خاوندان پکې شامل وو. د خپل خسر ملاتړ مې هم درلود، هغه په بیشټل شرکت کې د مشر انجینر دنده لرله او اوس یې په عربستان کې یو ښار ګوتې رغاوه. ما چې په ۱۹۷۰ ز کال کې په عربستان کې د پېسو مینځلو کوم کار کړی و، دا د هغې مستقیمه پایله وه. وني فرېډ په سان فرانسیسکو کې د بیشټل د نړیوال مشر له دفتر سره وروزل شوه او اړیکه له یې کاروباري کورنۍ سره وه. له برکلي تر فراغت وروسته یې لومړۍ دنده هم په بیشټل شرکت کې وه.

د انرژۍ صنعت د بیا رغونې په دور کې و. د انجینرۍ لویو شرکتونو د مکمل انحصار لپاره هلې ځلې کولې یا به یې د ټولګټو چارو له شرکتونو سره سیالۍ کولې. تر دې مخکې د ټولګټو چارو شرکتونو یوازې تر ملي حده انحصار درلود. ددې انحصار ماتول د وخت مهمه اړتیا وه. قوانین او ضوابط په ډېر سرعت بدلېدل. کاري فرصتونه ډېر وو. یوازې له دې فرصته ګټه په کار وه،

لکه په دې وخت کې کانګرس او محاکم بې وسه وو. د صنعت هونبیارانو
په دې حالت ته د انرژۍ وایلډ ویسټ WILD WEST وایه.
ددې عمل یو ښکار MAIN و. لکه برونو چې ویلي وو، میک هال له
حقیقته لیرې تللی و او هیڅا دومره جرات نه درلود، چې دا خبره یې ورته
مخامخ کړې وی. پال پردي هېڅکله د قابو د سختولو هڅه ونه کړه او د
MAIN اداري نه یوازې دا چې له دې بدلونونو یې ګټه وانخیسته؛ بلکې د
تېروتنو یوه لړۍ یې راپیل کړه. برونو چې کومه ګټه کړې وه، څو کاله
وروسته د MAIN جنایتکارو ختمه کړه او شرکت له مالي بحران سره مخ
شو. پایله دا شوه، چې شریکانو یې MAIN شرکت په یوه ستر انجینري
شرکت وپلوره، دې انجینري شرکت هغه وخت خپل چال په پوره نزاکت
لوبولای و او پکې کامیاب هم شول. ما خپل اسهام په ۱۹۸۰ کال کې په
۳۰ ډالره في سهم بیه پلورلي وو. نورو شریکانو ته څلور کاله وروستي ددې
قیمت نیمايي هم ونه رسید. په دې توګه سل کلن شرکت ذلت او رسوایۍ
سره مخ شو. زه د شرکت په دې حال خفه شوم، خو بیا مې په دې لړه د
ارام ساه واخیسته، چې په وخت کې مې پرېښی و.
د نویو خاوندانو تر سیوري لاندې یو څه وخت د MAIN نوم و، خو وروسته
یې دا نوم هم پرېښود. هغه شرکت چې یو وخت یې د نړۍ په ېلابېلو برخو
کې پروژې لرلې اوس یوازې یوه هېره شوې کیسه وه.
د انرژۍ په صنعت کې به چې کوم شرکت ځان د وخت له بدلون سره بدل
او عیار نه کړ؛ نو MAIN یې د سرنوشت ښه بېلګه وه. تر دې منظره هاخوا
د اینران په نوم یو شرکت و، چې په کاروباري نړۍ کې یې ډېر چټک
ګامونه اخیستل. خدای خبر دا شرکت له کومه راغی او د سترګو په رپ کې
بیا د نړۍ ستر قراردادونه له دوی سره شول. د کاروباري ناستو پیل زیاتره

ـخت په ټوکوټکالو وي، شریکان په خپلو ځایونو کې ناست وي، چای او قهوه څښي او اړين کاغذونه ترتيبوي. دې ورځو کې د ټوکو ټکالو محور اينران و. له دې شرکته بهر هېڅوک نه پوهېدل، چې دوی څه معجزه کړې ده. د شرکت کورنيو خلکو به هم يوازې په شونډو مسکا خپره کړې وه او هېڅ به يې نه ويل. چې ټينګار به وشو نو يوازې دومره به يې وويل: اداري ورتياوو ته نوې کتنه؛ تخليقي ماليات او داسې چارواکي ګومارل چې د ټولې نړۍ ولسمشران د اقتدار غلامو کړيو ته د راوستلو په چل پوهېږي.

ماته دا هر څه د پخوانيو اقتصادي جنايتکارو EHM د تکتيکونو نوې بڼه ښکاريده. نړيوالې امپراتورۍ په ډېر سرعت پرمختګ کاوه.

په موږ کې به چې چا د تېلو او نړيوال منظر سره ليوالتيا لرله، نو د بحث وړ راتلونکي موضوع يې دا وه: د ولسمشر د معان زوی جورج ډبيلو بوش او دده پخوانی شرکت اربستو (اربستو هسپانوي لغت دی او د بوش په معنا دی) ناکام شو، چې وروسته بيا په ۱۹۸۴ کې په سپيکټرم ۷ کې مدغم شو. بيا سپيکټرم هم ديواليه شو او په ۱۹۸٦ کال کې هارکن انرژي کارپوريشن دا ډوبېدونکې بېړۍ وپېرله. جورج ډبليو بوش يې د بورډ د غړي او مشاور په توګه ځان سره ومانه او کلنی معاش يې يوسل او شل زره ډالر وټاکل شو. ۲ موږ فکر کاوه، چې د پلار نوم يې ګني ددې دندې ستر لامل و، ځکه ددې ځوان يو کار هم دومره ګټور نه و، چې په ليدو دې يې ددې دندې جواز ورکړل شي. دا هم کومه پېښه نه وه، چې هارکن له فرصته په ګټې په خپل کاروباري تاريخ کې د لومړي ځل لپاره په نړيوال ميدان کې قدم کېښود او ډېر زر يې په منځني ختيځ کې د نفتو په برخه کې پانګونه وکړه. وينټي فيير VANITY FAIR مجلې وليکل :

(بوش چې څنګه په بورډ کې وګومارل شو، هارکن عجیبو مسایلو سره مخ شو. نوې پانګونه، مالیاتي سرچینې او له ښه مرغه په ناڅاپي ډول د تېلو کوهیانو کیندلو حقونه.) ۳

په ۱۹۸۹ ز کال کې اموکو له بحرین سره د بحر په غاړه د کوهیانو کیندلو په مذاکراتو بوخت و. دې وخت کې معاون ولسمشر بوش، ولسمشر شوی و. تر دې لږه موده وروسته د بهرنیو چارو د وزارت مشاور په بحرین کې د نوي امریکايي سفیر چارلس هوسلر مشاور وګومارل شو. دې سربېره د بحرین حکومت او هارکن شرکت تر منځ د خبرواترو زمینه برابره کړه او د اموکو ځای هارکن ونیو. څو اونیو کې د اسهامو په بازار کې د هارکن شرکت د اسهامو بیه شل سلنه یعنې له ۴،۵ نه ۵،۵ ته لوړه شوه. ۴

د بحرین په دې پېښه د انرژۍ د صنعت ټول کارپوهان غوسه وو. زما یو وکیل ملګری چې د جمهوري غوښتونکو سخت پلوي او د انرژۍ د چارو کارپوه دی، په یوه تبصره کې یې وویل: (ج، ډبلیو دې داسې کوم کار نه کوي، چې زیان یې پلاز ته ورسیږي. زه نه پوهېږم چې هغه څه کوي.) موږ د وال سټریټ په یوه کونج کې کوکټیل (جوس) څښنه او ده په نهیلۍ لهجه وویل: (زه وېرېږم، دې چې څه کوي ایا دومره ارزښت لري، چې دومره ستر خطر دې ورسره ومنل شي، آیا د زوی راتلونکی دومره مهم دی، چې د امریکا ولسمشرۍ دې پرې داو شي؟)

زه د خپلو ملګرو په نسبت لږ حیران وم، ځکه دا هر څه مې له یوې نوې زاویې لیدل. ما د کویټ، عربستان، مصر او ایران حکومتونو ته کار کړی و. زه د منځني ختیځ د سیاست په اړه ډېر پوهېدم. زه پوهېدم چې د انران شرکت مشرانو غوندې بوش هم د اقتصادي ترهګرۍ د هغه شبکې غړی و،

چې ما او ملګرو مې راجوړه کړې وه. په حقیقت کې همدا خلک یعنې بوش او ملګري یې ددې تولې لوبې اصلي طراحان او ملاتړي وو.

**حوالې**


۱." The George W. Bush Success Story" Harper Magazine, feb ۲۰۰۰.

۲. " Saving the Saudeis" , Vanity Fair, Oct ۲۰۰۳.

۳.

- " The Turning Point After Coming Up Dry" Washington Post, july ۳۰. ۱۹۹۹.

"The George W. Bush success story" Harper magazine, Feb ۲۰۰۰.

"The Bush Family Oligracy – Part two: the Third generation".

http://www.newnetizen.com/

presendential/bushoiligarchy.html.

## نهه ويشتم فصل

# زه بيا خرڅ شوم

د خپل ژوند په دې پړاو مې احساس کړه، چې موږ په رښتيا هم د نړيوال اقتصاد يوه نوي دور ته ننوتي يو. يو وخت به رابرټ ميکنامارا زما ايډيال شخصيت و. دا سړی د دفاع وزير او د نړيوال بانک د مشر په توګه د خپل وخت حاکم و. ده چې مسايل څنګه پر مخ وړل چټکتيا پکې راغله،تر دې چې زما تر ټولو بد شکونه يې هم شاته پرېښودل. د کينز پر نظرياتو ولاړ دده سړي فکر او رهبرۍ هرې خواته نفوذ کاوه. همدارنګه د اقتصادي جنايت پاليسي دومره پراخه شوې وه، چې هر ډول چارواکي او بېلابېل کاروباونه يې په خپله ولکه کې راوړي وو. ددې ګومارنې او چمتوالی NSA کړی و، دوی هم هماغه کار کاوه، خو په دې توپير چې سترو اقتصادي جنايتکارو د نړيوالي بانکدارۍ د سيستم فنډ نه مصرفاوه. پخواني اقتصادي جنايتکار، يعنې ما غوندې خلک هم ګرځېدل، خو دا نوی کهول ډېر وران و. ۱۹۸۰ مه لسيزه کې له منځنۍ درجې اداري ځينې ځواني مېرمنې او سړي راڅرګند شول، دوی ويل چې موخې ته د رسيدو لپاره هره وسيله بايد وکارول شي او نړيواله امپراتوري خو هسې هم د ګټې لار وه.

دا نوې ليوالتيا د انرژۍ صنعت پورې محدوده وه، ما هم په دې برخه کې کار کاوه. کانګريس په ۱۹۷۸ کې د PUPRA قانون پاس کړ، بيا دا قانون له ډېرو پيچليتاو تېر شو او بلاخره په ۱۹۸۲ کال کې د قانون په توګه ومنل شو. اصلاً کانګرس غوښتل چې ددې قانون په مرسته زما په څېر د وړو شرکتونو حوصله ورزياته کړي او د برښنا او انرژۍ د ترلاسه کولو نوې لارې چارې ولټول شوي. ددې قانون له مخې د ټولګټو چارو لوی شرکتونه اړ وو،

چې د ورو شرکتونو تولید کړې برښنا ترې وپېرې. د کارټر هیله دا وه چې په تېلو تکیه راکمه شي هغه که کورني وي او که بهرني. ددې قانون څرګنده موخه د ورو انرژیو موندلو د نویو لارو چارو لټولو تر څنګ د هغو خپلواکو شرکتونو ملاتړ و، چې د امریکایي ادارې څرګندونه ترې کېده خو حقیقت بېخي بل ډول رابښکاره شو.

په ټوله ۱۹۸۰ مه، بلکې ۱۹۹۰ مه لسیزه کې نوي کاروبار رامنځته کولو پر ځای اصلاحاتو ته ډېر پام وشو. په دې موده کې ما ولیدل چې سترو شرکتونو ډېر واړه شرکتونه له ستوني تېر کړل. تر دې چې د ټولګټو چارو شرکتونو هم له ورو یونټونو سره همداسې وکړل.

ځینې شرکتونو ته د قانون له مخې داسې جواز ورکړل شو، چې اخیستونکې شرکتونه (هولډینګ کمپني: هغه شرکتونه چې اسهام اخلي) یې جوړ کړل او د انرژۍ د تولید پر پر ټولو خپلواکو منظمو ( ریګولیټېډ) او نا منظمو شرکتونو واکمن شول. ( ریګولیشن : دا د انرژۍ د شرکتونو لپاره ځانګړی قانون و.) په دوی کې زیاترو یې شرکتونه اول دیوالیه کړل او وروسته یې وپېرل. ځینې یې داسې هم وو، چې له صفره یې پیل کړه او د خپلواکو شرکتونو معادل شرکتونه یې جوړ کړل.

پر تېلو د تکیه د کمې فکر په ډېران ولوید. ریګن د تېلو د شرکتونو احسانمن و. د تېلو د سوداګر په توګه خو بوش هسې هم معلوم و. دا دواړه هغه مشران وو، چې چارواکې یې زیاتره یا د تېلو د شرکتونو غړي وو یا د ودانیزو شرکتونو او له دې دواړو ادارو یې ښه ګټه ترلاسه کوله. ډېرو دیموکراتانو هم په دې موده کې ښه ګټه وکړه او پر ځای ددې خلکو منندوی وو.

IPS د چاپېريال له پلوه د ګټورې انرژۍ په پيدا کولو کې خپل اوږدمهالي فکر پر ځای وساته. موږ د PUPRA په تاکل شوي اصلي موخې د عمل اراده لرله او داړه ژوند مو کاوه. موږ له څو هغه خپلواکو شرکتونو يو وو، چې هم مو ځان ساته او هم مو پرمختګ کاوه. ددې لامل هغه تېر خدمتونه وو،چې ما د کارپوريټوکراسۍ لپاره کړي وو.

د انرژۍ په ډګر کې چې هرڅه کېدل د هغه ميلان نښه وه، چې په ټوله نړۍ غوړېده. د ټولنيز پرمختګ فکر، چاپېريال او د ژوند د ښېګڼې مسايل اوس دويم لاس موضوعات وو. ددې بازار اصلي سکه اوس حرص وه. ټول بهير کې ډېر ټينګار پر دې کېده، چې شخصي کاروبار پرمختګ وکړي. دا نظر هم و چې پانګوال نظام د سوسياليستي نظام په پرتله ښه دی او دا خپله د کمونيزم مخنيوی دی. وروسته معلوم شوه، چې دې جواز ته هېڅ اړتيا هم نه وه. دا خبره د يوه نظر په توګه منل شوې وه، چې لويې پروژې که د دولت پر ځای شخصي پانګوال ته ورکړل شي، نو څه ناڅه ګټه به حتمن لري. نړيوال بانک هم ددې نظر ملاتړ کاوه، دوی هم ويل چې اوبه رسونه، ټرانسپورټي سيستم، ټولګټې چارې او نورې اسانتياوې چې تراوسه دولتي وې، خصوصي سکتور ته دې ورکړل شي.

دې سره د جنايتکاري فکر خپراوی اسان شو. اوس له کاروباري کړيو مشران هغه ډګر ته استول کېدل، چې تر دې مخکې به څو کسان ورتلل او ددې کار لپاره به ټاکل کېدل. دا مشران په ټوله نړۍ کې خپاره شول. تر ټولو ارزانه کارکوونکي يې ولټول. اسانه زېرمې او سرچينې يې وموندلې او پراخه بازارونو ته يې مخه کړه. دوی په خپل کار کې ډېر چالاک وو. د خپلو مشرانو جنايتکارو غوندې ، لکه زه چې په اندونيزيا، پانامې او کولمبيا کې وم. دوی په خپلو فسادونو د پردې اچولو لپاره ورته د اقليت پالنې نوم ورکړ.

زموږ غونډې دوی ټولنې او هیوادونه په لومه کې بند کړل. دوی پوروړو هیوادونو سره د ډېرو پیسو ژمنه وکړه او له پوره د خلاصي لاره یې ورته د خصوصي سکتور کاروونه وروښوده.

دوي ښوونځي او سرکونه جوړ کړل، ټیلیفون، رسنۍ او طبي اسانتیاوې یې رامنځته کړې خو که به یې بل ځای کې ارزانه زېرمې او مزدوارن پیدا کړل دا ټولنه یې همداسې پرېښوده او ترې وتل. ددې ټولنو هیلې لوړې او پایلې یې ډېرې بدې شوې. خو کاروباریان په دې کارونو نه پښېمانه شول او نه یې وجدان نا آرامه شو.

زه به حیران وم، چې ددوی اروا به نارامه شوې وي؟ آیا زما غونډې دوی ته هم کله شک په نصیب شو؟ آیا دوی هم کله په کوم چټل نهر کې کومه ښځه په لمبا لیدلې، او کوم سپین ږیری سړی نهر ته په رفع حاجت ناست دی؟ له بده مرغه اوس په دې لوبه کې کوم هاوورډ پارکر نه و پاتې، چې داسې پوښتنې یې کړې وای.

که څه هم IPS ښه روان او ما له ګډ ژونده خوند اخیست خو د خفګان یو څپه هم راباندې راغلې وه، ځکه زه د یوې پېغلې لور پلار وم او دا فکر مې کاوه، چې دې ته به څه میراث پاتې شي. ما چې څه کړي، د جرم احساس لې زه یې خوړلم.

چې مخ به مې واړاوه، له ځورونکي تاریخ سره به مخ شوم. د نوي دور معاصر اقتصادي سیستم له دویمې جګړې وروسته راجوړ شو. دا نظام د بېلابېلو هیوادونو مشرانو په یوه ناسته کې رامنځته کړ، دا ناسته د نیو همشپایر په Bretton woods کې شوې وه. زه د همدې ایالات یم. نړیوال بانک او IMF ادارې رامنځته شوې، چې په جنګ کې ویجاړه شوې اروپا بیا ورغول شي. دا دواړه ادارې ډېرې کامیابې شوې. دا نظام ډېر په چټکۍ

خپور شو. د امریکا هر متحد پرې د تصدیق ټاپه ووهله او دا مرض یې آب حیات وباله. موږ ټولو ته دا باور راکړل شو، چې د کمونیزم له ناوړه پنجو به خوندي یو.

زما شک په خپل ځای چې دا هر څه موږ کومې خواته بیایي خو د ۱۹۸۰ کال په وروستیو کې چې شوروی اتحاد او نړیوال کمونیزم وپرځید، دا خبره څرګنده شوه، چې د کمونیزم مخنیوی له سره هدف نه و. تر څنګ یې دا هم ښکاره شوه، چې د نړیوالې امپراتورۍ ریښې په پانګوال نظام کې دي او د ودې فرصت ورکول کیږي. جم ګیرئیسن تبصره کړې وه چې :

( نړۍ یوه کېښل؛ خصوصاً اقتصادي نړیوالتوب او د ازاد بازار سوداګري هغه پراسراره پانې دي، چې خپله په خپل ذات کې یوه ریښتیني امپراتوري ده .............. نړۍ کې داسې ملت نشته، چې ځان د نړیوالتوب له جاله خوندي وساتي. البته ځینې استثنا دي چې د نړیوال بانک، نړیوال سوداګریز مرکز او IMF ادارو له اصولو او قوانین خوندي پاتې وي. دا نړیوالې مالي ادارې که هر څومره ناوړه لو نیګمرې دي خو دا ثابتوي، چې د اقتصادي نړیوالتوب معنا څه ده؟ منل یې څه ګټه او نه منل یې څه زیان لري؟ که ټولنه هر څومره نابرابره وي، خو ددې اقتصادي نړیوالتوب قوت دومره ډېر دی، چې موږ به په خپل ژوند د نړۍ ټول اقتصاد، د ازاد بازار په یوه نړیوال سیستم کې ګورو. )۱

ما چې دا حالت ولیداو فکر مې وکړ؛ نو پرېکړه مې وکړه چې زه باید د اوس د Conscience of an Economic Hit Man (د اقتصادي جنایتکار ضمیر) په نوم کتاب ولیکم او په دې کتاب کې به دا هر څه بیانوم. خو ما ددې کار د پټولو هېڅ هڅه ونه کړه. نن هم داسې لیکوال نه یم، چې په خپلو کړنو دې پرده واچوم. ما ته چې څه کول نورو سره مې پرې خبرې اترې کولې.

دې سره له نورو خلکو داد اخلم. زه له ټولو غواړم چې مرسته راسره وکړي او تېرې پېښې سمې انځور کړو. زه غواړم دا مواد چې زه پرې کار کوم، له خپلو ملګرو سره شریک کړم او د هغوی غبرګون هم وګورم. زه پوهېږم دا کار خطر لري، خو زه یې په یوه طریقه لیکلای شم. خو دا خبره پټه وه، چې ما په MAIN کې کوم وخت تېر کړی، په اړه یې کتاب لیکم.

د ۱۹۸۷ ز کال په یوه مازیګر د MAIN پخواني همکار زنګ راووهه او له Stone and Webster Entineering corp. شرکت سره د یوه ګټور مشاورتي قرارداد وړاندیز یې راته وکړ. دا شرکت یو له لویو انجینري او ساختماني شرکتونو و. په قرارداد کې ویل شوي وو، چې زه به ددوی یوې ځانګې ته راپور ورکوم، دا ځانګه یې زما iPS ته ورته د انرژۍ یوه خپلواکه اداره وه. زه په دې ډاډه وم، چې د نړیوالو اقتصادي جنایتکارو په هېڅ ډول پروژه کې به ککړ نه یم.

ملګري مې راته وویل، چې زما کار هم پکې ډېر ته دی. زه یو له هغو بختورو خلکو وم، چې خپل شخصي شرکت مې جوړ کړ، پرمختګ یې وکړ او ما د انرژۍ د صنعت په ډګر کې لوی نوم وګاټه. دSWEC شرکت زما له CV سره ډېره لیوالتیا لرله او غوښتل یې چې زما نوم د خپلومشاورینو په لیست کې شامل کړي. دا یو قانوني او د صنعت د چارو برعکس طرزالعمل و. دا وړاندیز مې ډېر خوښ شو، ځکه په څو دلیله ما غوښتل چې خپل شرکت IPS وپلورم.

په کومه ورځ چې SWEC ته ورننوم، نو اجرایه رئیس مو ځان سره دودۍ ته بوتلم. څو شیبې مو شخصي خبرې وکړې. دې وخت کې زه پوه شوم، چې زما د شخصیت یوه برخه غواړي چې د سوداګریز مشاوریت دې برخې ته راشي. د انرژۍ د پېچلو مسئولیتونو، د کارکوونکو کنټرول، کتنې، سلګونه

خلک او د هغوی کارونه څارل، له دې ټولو جنجالونو د خلاصي لپاره زما د شخصیت یوې برخې دا وړاندیز مانه. له مخکې مې فکر کړی و، چې ددې شخص په وړاندیز شویو پیسو به څه کوم؟ پریکړه مې وکړه، په دې پیسو به یوه غیر انتفاعي (خیریه) اداره رامنځته کوم.

تر دوډۍ وروسته مو خواږه خوړل چې زما کوربه زما د یوه کتاب The Stress Free Habit یادونه وکړه. ویلی یې چې ددې کتاب صفتونه یې اوریدلي دي. بیا یې زما سترګو ته په راکتو وویل: (ته د کوم کتاب د لیکلو اراده لرې؟)

زما معدې درد وکړ، پوه شوم چې څه خبره ده، ورته مې وویل: (نه! اوس خو اراده نه لرم.)

هغه وویل : (په دې خبره خوښ شوم، د MAIN په څېر موږ هم غواړو، چې خبرې مو خوندي وي.)

ما ورته وویل: (زه پوهېږم)

هغه موسکی شو او بېرته یې په خپله څوکۍ کې ډډه ووهله.

(ستا وروستی کتاب چې د ذهني مسایلو په اړه دی ښه دی. ځینې وخت داسې کتابونه د انسان راتلونکی روښانه کوي. زموږ د شرکت د مشاور په توګه ته داسې کتابونه لیکلای شې.) ماته یې راوکتل او د ځواب په تمه شو.

( مننه، خوښ شوم.)

( بالکل ! موږ یې درسره منو. البته ددې ویلو اړتیا نشته، چې ته به په کتاب کې زموږ د شرکت یادونه نه کوې او زموږ د کار د څرنګوالي په اړه به څه نه لیکې. پردې سربېره، چې تا په MAIN کې څه کړي، په هغه به هم خوله

بندوي. همدارنګه سیاسي موضوعات، نړیوالو بانکونو سره اړیکې او پرمختیایي پروژې هم ستا له حدودو بهر دي. یوازې د راز ساتلو خبره ده.) ما غوښتل ډاډ ورکړم : (ښخي سمه ده، ددې خبرې اړتیا نشته.)

یوه شببه مې ویل ګني زړه مې ودرید، یو پخوانی احساس بیا راتازه شو، ښځي هماغسې لکه اندونیزیا کې چې هاوورډ پارکر سره، پانامه کې فیډل او کولمبیا کې پاولا سره و. زه یو ځل بیا خرڅېدم، له سوچه قانوني پلوه دا کوم رشوت نه و. دا یو حقیقي تړون و، چې یو شرکت زما نوم په خپله حاطرې کې لیکي او وخت ناوخت ما خپل دفتر ته د مشورې اخیستو لپاره ورغواړي. زه خو پوه شوم چې ددې وړاندیز تر شا اصلي موضوع څه ده. ده د یوه رییس په معادل معاش زه خپل شرکت کې وګومارلم.

په دې مازیګر زه هوایي ډګر کې د فلوریډا پرواز ته په تمه غلی ناست وم. ځان راته یوه فاحشه او تر هغې بدتر ښکارېده. ما احساسوله چې خپلې لور، کورنۍ او هیواد سره مې خیانت وکړ خو ځان ته مې دا ډاډ ورکړ، چې زه بله لاره نه لرم، زه وېرېدم چې که دا وړاندیز مې نه وای منلی؛ نو پایله به یې له خطره ډکه وه.

۱. "American Empire: global Leader or Rogue Power?" Jim Garrison.

## دېرشم فصل

# پانامه د امريکايي برید پر وړاندې

طوریجو مړ شوی و، خو پانامه زما په زړه کې ژوندۍ وه. زه په لویدیځه فلوریډا کې اوسېدم، خو د منځنۍ امریکا له پېښو د خبرېدو وسایل مې لرل.
د طوریجو پاتې شوني وو، خو د هغه د پرمخ وړلو لپاره هغه وقار، شخصیت او هوډ نه و. په ټوله نیمه کره کې د شخړو د حل هڅې رواني وې.
همدارنګه امریکا ته د کانال د شرایطو پر تړون د پابندۍ هوډ هم قوي و.
د طوریجو ځای ناستي مینول نوریګا د خپل مشر سیاستوال په پلونو روان و. ما نوریګا ونه ولید. لومړیو کې یې هڅه وکړه چې د لاتیني امریکا د مظلوم او بېوزله ولس په ګټه کارونه وکړي. له دې پلانونو یې یو دا و چې د نوي کانال امکانات وڅېړل شي، ددې کانال ودانیزې چارې جاپان پر مخ وړلې. له تمې سره سم واشنګټن او امریکایي شخصي شرکتونو ددې کار سخت مخالفت وکړ او نوریګا پخپله ولیکل:
( د بهرنیو چارو وزیر جورج شلټز د بیشټل نړیوال ساختماني شرکت رئیس پاتې شوی دی. د دفاع وزیر کسپر وین برګر ددې شرکت معاون و. بیشټل ته دا تر ټولوښه فرصت دی، چې د کانال د جوړولو له لارې بې حسابه ډالر وګټي .......... د ریګن - بوش ادارې خطر احساسوه، چې په دې معامله کې به جاپان میدان وګټي. دلته خبره د خلکو د ګټې نه؛ بلکې د کاروباري رقابت وه. که اجاره جاپان اخیستې وای؛ نو امریکایي ساختماني شرکتونه به له بیلیونونو ډالرو ګټې برې خې پاتې وو.) ۱
خو له بده مرغه اوس کیسه له نوریګا سره وه، طوریجو نه وه. ده د خپل رهبر په څېر وقار او جدیت نه درلود. د وخت په تېریدو یې د فساد کیسې

خپرې شوې. تر دې چې د يوه سياسي حريفHugo Spadafora د وژنې تور هم پرې پورې شو. د نوريګا شهرت د پانامې د پوځ له G.۲ يونټ پيل شو، چې دی يې قومندان و.دا د پوځي استخباراتو شعبه وه او د امريکا له CIA سره يې اړيکې لرلې. له دې لارې يې د CIA له مشر ويليم جي کيسې سره شخصي اړيکې رامنځته کړې. CIA له دې اړيکو په کارابين او منځنۍ لويديځې امريکا کې د خپلو پروژو عملي کولو لپاره ګټه واخيسته. مثلاً په ۱۹۸۳ ز کال کې امريکا پر ګرينيډا د بريد ګواښ وکړ. دا اخطار يې بايد کاسترو ته ورکړی وای، خو Casey نوريګا ته وويل چې دا ګواښ دې تر کاسترو ورسوي. نوريګو خپله کولمبيا او د مخدره توکو په نورو مرکزونو کې CIA د نفوذ لاره هواره کړه.

تر ۱۹۸۴ ز کال نوريګا پڼمختګ وکړ، جنرال او د پانامې د دفاعي پوځونو سپه سالار شوی و. ويل کيږي په همدې کال چې Caseyپانامې ښار ته سفر وکړ، په هوايي ډګر کې ورته د CIA استازي ښه راغلاست وويل او ده ترې وپوښتل چې: (زما زوی نوريګا چېرته دی؟) بيا چې نوريګا امريکا ته لاړ دواړو د Casey په کور کې سره شخصي ليدنه وکړه. څو کاله وروسته نوريګا خپل اعتراف وکړ، چې له Casey سره د نږدې اړيکو له امله اوس ځان نه بدليدونکی ګڼي. دی پوهېده چې د G.۲ په څېر CIA هم د خپل حکومت قوي شعبه ده. دی داډه و، چې د کانال د تړون او پر امريکايي پوځي بيز به دده له موقف سره بيا هم Casey ورته خونديتوب ورکوي. ۲ طوريجو په نړيواله توګه د انصاف او مساوات سمبول و خو نوريګا د فساد او پستۍ نښه ګرځېدلې وه. دا خبره هله پخه شوه، چې نيويارک ټايمز ۱۹۸٦ کال د جون په ۱۲ مه نېټه يوه ليکنه خپره کړه، ددې ليکنې عنوان و : (د پانامې اوسپنيز سړی د مخدره توکو او تورو پيسو په راکړه ورکړه کې ښکيل

دی.) دا لیکنه یوه د Pulitzer جایزې ګټونکي معتبر خبریال کړې وه، ده ویلي وو، چې د لاتیني امریکا جنرال د مخدره توکو په پټ او ناوړه کاروبار کې شریک دی. ده د امریکا او کیوبا دواړو لپاره او پر ضد جاسوسي کړې او په دې برخه کې یې هم شخصیت د یوه دوه مخي جاسوس دی. G-۲ د ده په امر د هوګوډا فورا سر پرې کړ او په پانامه کې د مخدره توکو ټول کاروبار دی خپله رهبري کوي. دې لیکنې سره د جنرال یو انځور هم خپور شوی و او په سبا یې نور جزیئات هم خپاره شول. ۲

د نوریګا خپلې ستونزې هم ډېرې وې، بیا یې لا داسې ولسمشر سره مخه شوه، چې د هغه شهرت خپله هم ددې ستونزو ښکار و او خبریالانو د جورج ډبلیو بوش د شخصیت Wimp Factor ونوماوه. ۴ ددې خبرې ارزښت هله زیات شو، چې سکول اف امیریکاز ته یې پنځلس کلن تمدید ور نه کړ.د جنرال په یادښتونو کې ډېر په زړه پورې حالت بیان شوی دی:

(موږ غوښتل چې په ډېر فخر او قوي هوډ د طوریجو نظریات عملي کړو، خو امریکا نه منل. امریکا د خپل (سکول آف امریکاز) تمدید یا پرې له سره خبرې اترې غواړي. هغوی ویل چې په منځنۍ امریکا کې د مخ پر زیاتېدو چمتوالي لپاره دوی، دې ته هم اړتیا لري. خو دا ښوونځی زموږ د خوړېدو لامل کیږي. موږ په خپله خاوره ځنګه وژونکې ډلې DEATH SQUAD یا د کیڼ اړخو متشددو پوځیانو ته د روزنې اسانتیاوې ورکړو.)۵

دې حالت ته په کتو نړۍ باید دمخه پوه شوې وای چې څه کېدونکي دي، خو ټوله نړۍ هله حیرانه شوه، چې د ۱۹۸۹ کال د دسمبر په ۲۰ مه نېټه امریکا پر پانامه برید وکړ. له دویمې نړیوالې جګړې وروسته په هېڅ یو ښار داسې هوایي یرغل نه و شوی. ٦ پانامه او وګړي یې له هېڅ پلوه امریکا یا

نورو هیوادونو ته خطر نه و. سیاستوالو، حکومتونو او رسنیو د امریکا دا یو ارخیز عملیات وغندل او د نړیوال قانون پر ضد عمل یې وباله.

که دا پوځي عملیات د یوه داسې هیواد پر وړاندې شوي وی، چې عام وژنه پکې شوې وی؛ نو خلکو زغمل. مثلاً د پینویشت - چیلی، د ستړانر - پیراګویې، د سوماسا - نکاراګو او د دې آبسن - ال سلویډور ، یا د صدام حسین عراق ... خو پانامې داسې هېڅ حرکت نه و کړی. ددوی ګناه یوازې دا وه، چې د زورورو سیاستوالو او کاروباري اشخاصو پروړاندې یې سر ټیټ نه کړ. دوی ټینګار کاوه، چې د کانال ترون ته دې درناوی وشي. له ټولنیزو مشرانو سره یې خبرې اترې وکړې او جاپان سره یې د یوه نوي کانال د کیندلو په امکاناتو هم فکر کړی و. پایله دا شوه، چې دوی خپله له بربادۍ سره مخ شول، نوریګا ولیکل:

( امریکا دا نه غوښتل چې پر کانال دې خپلواکه پانامه واکمنه وي او جاپان دې ترې ملاتړ وکړي. ددې لپاره یې له ۱۹۸۲ ز کاله یو کمپاین پیل کړ او بلاخره په هوایي برید پای ته ورسید....

په دې وخت کې سلتز او وین برګر داسې وښودل، چې دوی ګني د ولس خدمتګار چارواکي دي. په اصل کې دوی د پراخه جهالت لاملین وو. دوی نه پوهېدل چې د ځواکمنو خلکو د اقتصادي ګټو لپاره کاریږي. دوی غوښتل چې ما له خپلې مخې لیرې کړي، ددې لپاره یې تبلیغات پیل کړي وو. )۷

واشنګټن یو کس ددې برید مسئول وباله. آمریکا خپلې ښځې او ځوانان پانامې ته ددې لپاره ولېږل چې یو کس ته سزا ورکړي. دې ښځلو او ځوانانو خپل ژوند او ضمیرونه داو کړي وو. ډېر شمېر ماشومان او بې ګناه خلک بې ووژل. د پانامې ښار یې وسیځه او سزا یې یوازې یو کس ته ورکوله،

هغه نوریګا نومیده. دا یې د بدۍ د سمبول په توګه وړاندې کړ، د ولس دښمن یې وباله، د نشه یي توکو په سوداګرۍ یې تورن کړ او په دې توګه د امریکا حکومت یوه بهانه پیدا کړه چې د یو سل او شل زره نفوس لرونکي دې ښار باندې بې ساری پوځي یرغل وکړي، دې خلکو له بده مرغه د ځمکې یوه قیمتي ټوټه لرله.

زه دې برید دومره خفه کړم، چې څو ورځې ځوریدم. دا سمه ده چې نوریګا ساتونکي لرل، خو ګیدړان Jackals بیا هم ده ته ورسیدل. هماغسې لکه رولډوز او طوریجو ته چې ورسیدل. دده زیاتره ساتونکي امریکایي پوځ روزلي وو. دوی پېرل کیدل. ګیدړانو خپل کار کولای شو او دوی پرې سترګې پټولای شوی؛ بلکې خپله یې هم دا کار کولای شو.

ما چې په دې برید څومره فکر وکړ، دې پایلې ته ورسیدم، چې امریکا د امپراتورۍ جوړونې پخوانیو وسلو ته مخه کړې ده. د بوش ادارې دا هوډ کړی و، چې له ریګن به یو قدم مخته کیږي او نړۍ ته به دا پیغام ورکوي، چې دوی خپل هدف ته د رسېدو لپاره ښکاره تشدد هم کولای شي.

دا خبره لمر غوندې روښانه ده، امریکا غوښتل له پانامې د طوریجو پاتې شوني ختم کړي او داسې یو لاسپوڅی نظام رامنځته کړي چې ددوی غلام وي. پر دې سربېره یې غوښتل چې عراق غوندې هیوادونه ووېروي او د ځان تابع یې کړي.

ډیوېډ هېرئیس د نیویارک ټایمز مجلې ایډیټر او د ډېرو کتابونو لیکوال دی، ده ډېره په زړه پورې تبصره کړې وه، ۲۰۰۱ کال کې یې Shooting the Moon نومي کتاب کې لیکلي:

( امریکا د نړۍ په هر کونج کې له بې شمېره چارواکو، متقدرو اشخاصو، مشرانو او پوځیانو سره معاملې کړې دي. په دې ټولو کې یوازینی شخص

جنرال انتونيو نوريګا دی چې امريکا پرې داسې ور ولويدله. په خپل دوه نيم سوه کلن تاريخ کې دوی لومړی ځل په يوه هيواد بريد کړ او د هغه هيواد ولسمشر يې محکمې لپاره امريکا ته راوست چې د امريکايي قانون له مخې سزا ورکړل شي، خو دا جرمونه مجرم امريکا کې نه؛ بلکې په خپله خاوره کړي وو.)۸

له بمبارۍ وروسته د امريکا حالات يو څه درانه شوي وو. يو وخت داسې فکر کېده، چې هر څه ګني برعکس شول او ټول تاوان به دوی پرې کوي. د بوش ادارې به بنايي نوريګا مات کړی وی، خو ددوی پر وړاندې پرته ستونزه قانوني جواز و. د خلکو په ذهن کې يې يو وېرونکی بدماش تصوېر جوړ کړی و، چې کمزوري خلک به يې ګوابنل، وروسته بيا د ترهګرۍ په دور کې همداسې ثابت هم شو. ويل کيږي چې امريکايي ځواکونو تر درې ورځو بمبار شوې سيمې ته رسنۍ، کارپوهان او د سره صليب کارکوونکي نه پرېښودل. وروسته خبريالانو دا پوښتنه راپورته کړه چې څومره شواهد له منځه وړل شوي او څومره خلک د طبي اسانتياوو نه لرلو له امله مړه شوي دي؟ دې پوښتنو هېڅ ځواب نه درلود.

ددې بريد په ډېرو حقايقو به هېڅکله پوه نه شو او نه به دا معلومات وشي، چې په دې ټول وژنه کې څومره خلک مړه شوي دي. د دفاع وزير د مړو شمېر له پنځو سوو تر شپږو سوو ښودلی و خو د بشرپالنې خپلواکو ادارو دا شمېر له درې زرو تر پنځه زرو ښودلی او د پنځه ويشت زرو خلکو بې کورۍ خبر يې ورکړی و. ۹

نوريګا يې ونيو، ميامي ته يې وليږداوه او هلته په څلويښت کاله بند محکوم او د امريکا پر ځمکه يوازينی بهرنی جنګي بندي وبلل شو. ۱۰

د نړۍ تر ټولو ستر قوت بشريت ته سپکاوی وکړ او زرګونه بې ګناه خلک يې ووژل، ټوله نړۍ پرې خفه وه، خو په امريکا کې لږ خلک د واشنګټن په دې کړې جرم پوهېدل. رسنيو دې پېښو ته محدود لاسرسی درلود، لاملونه يې ډېر وو: حکومتي پاليسي، خپرندويه ادارې او د رسنيو مشرانو ته د سپينې ماڼۍ لارښوونې. د کانګرس غړي هم وېرېدل چې بوش سره يې ستونزه رانه شي او خبرياﻻنو هم ويل چې دې ولس ته اتلان په کار دي، نه موخې.

ددې ظلم او وحشت په ټوپان کې يوازې يوه استثناء وه، هغه هم د NEWS DAY ايډيټر او اسوشيټډ پريس خبريال Peter Eisner، ده پر پانامې بريد څېړل کړ او څو کاله يې بيا پرې شننې کولې. (د مينول نوريګا يادښتونه، د امريکا بندي) په ۱۹۹۷ ز کال کې خپور شوی او ېکې يې ليکلي:

(نوريګا سره د جنګ تر نامه لاندې چې کومې وژنې، ورانی او ظلم شوی دی او ددې په اړه چې د دروغو څومره اوازې خپرې شوې، دا د امريکايي جمهوريت لپاره لوی خطر دی.... پوځيانو ته امر شوی و، چې د پانامې خلک ووژني او هغوی همداسې وکړل. ورته ويل شوي وو چې دا هيواد بايد له يوه ظالم او جاهل مشر نه وژغورل شي. دوی چې دا کار وکړ؛ نو خپلو هيوادوالو ( امريکايانو) ترې په يوه خوله ملاتړ وکړ.)۱۱

په امريکايي زندان کې له نوريګا سره د مرکې په شمول تر ژورو څېړنو وروسته Peter Eisner وليکل:

(په نوريګا چې کوم تورونه پورې شوي فکر نه کوم، چې شواهد دې يې جرم ثابت کړي. د يوه بهرني سپه سالار او خپلواک ولسمشر په توګه چې ده څه کړي، فکر نه کوم چې امريکا ته دې پر پانامې د بريد جواز ورکړي او نه دده کړنو امريکا ته کوم امنيتي خطر پېښاوه.) ۱۲

په وروستيو کرښو کې ليکي :

(د سياسي حالاتو له مطالعې او په بريدونو د راپورنو په لړ کې دې پايلې ته ورسيدم، چې دا بريد د قوت د ناوړه کارونې يوه کرکجنه بېلګه ده. دې بريد امريکايي ساينسپوهانو او د هغوی پانامايي شريکانو ته موخې اسانې کړې او بيه يې د بې ساري انساني وينې تويولو په شکل پرې شوه.)۱۳

له طوريجو مخکې واکمنه ډله او آرياس کورنۍ بيا واک ته ورسيده. له کولبيا د پانامې د جلا کولو او د طوريجو واک ته رسيدو په موده کې دا خلک د امريکا لاسپوڅي وو. د کانال د نوي تړون اختلافي موضوع حل شوه، خو په عمل کې پر دې اوبلنې لويې لارې امريکا واکمنه شوه؛ سره ددې چې په رسمي اسنادو کې داسې هيڅ خبره نه وه شوې.

ما MAIN کې د خپلو تجربو په رڼا کې پر دې پېښو فکر وکړ او هماغه پوښتنې مې په ذهن کې راولاړې شوې :

دې خلکو د سم ګام پورته کولو پر ځای څومره ډېرې پرېکړې د خپلو غوښتنو له مخې وکړې؟ په دې کې هغه مهمې تاريخي پرېکړې هم وې، چې ميليونونه خلک ترې اغېزمنېدل. زموږ د حکومت څومره چارواکي د ملي ګټو پر ځای خپلو شخصي ګټو پسې منډې وهي؟ او څومره جګړې يوازې ددې لپاره وشوې، چې ولسمشر خپلو رايه اچوونکو ته ځان قوي، زړور او فعال وښيي؟

نوې اداريSWEC سره مې ژمنه هم کړې وه، خو پر پانامې د ناوړه بريد خفګان زه دې ته وهڅولم چې په خپل کتاب بيا کار پيل کړم، يوازې په دې توپير چې غوښتل مې طوريجو د خپلې توجه مرکز وګرځوم. دې کيسې دا فرصت راکړ، چې له ټولو شويو ظلمونو او بې عدالتيو پرده پورته کړم، دې

کړنو زموږ ژوند خوړ. دا ځل مې پرېکړه وکړه چې هر څه به پټ کوم او له هېڅ مشر یا ملګري سره به یې په اړه مشوره نه کوم.

په دې کتاب مې چې کار کاوه، دې ته حیران پاتې وم، چې موږ اقتصادي جنایتکارو په څومره هیوادونو کې څومره پراخ عملیات کړي دي. څو داسې هیوادونه مې غوره کړل، چې بېلګې پکې څرګندې وې، خو داسې هیوادونه سخت ډېر وو، چې زموږ تر عملیاتو وروسته ډېر خراب شوي دي. خپل دې فساد ته په کتو مې وېره احساس کړه. ځان سره د حساب په لړ کې پوه شوم، چې د ورځنیو چارو او بوختیاوو له امله مې دې موضوعاتو ته هېڅ په پراخه نظر کتلي نه وو. زه چې په اندونیزیا کې وم د هاوورډ پارکر خبرو او د زلمي ریزي ځینو ټکو به په تشویش کولم. په پانامه کې چې فیډل ځینې شیان (کانال، ټاپرۍ (د وښو کورونه)، د کانال ساحه او د نڅا ځای) راوښول؛ نو دې شیانو راباندې ژور اغېز وکړ. همدارنګه په ایران کې له یمین او ډاکټر سره خبرو هم نارامه کړم، پر دې کتاب د کار کولو سره مې ذهن هم پراخه شو. زه اوس پوه شوم چې محدود فکر ښه وي، ځکه د خپلو کړنو د اغېز سم معلومات راته نه کېده.

په ښکاره دا هر څه اسان دي، خو دا تجربې څومره مرموزې وې. ماته ځان د یوه جنګیالي په څېر ښکاره شو. په پیل کې ساده او معصوم وي، د خلکو په وژلو یې ښایي ذهن کې د اخلاقیاتو اړوند ځینې پوښتنې وي. خو زیاتره وخت خپله د وېرې احساس کوي، خپل پاېښت ته یې پام کېږي، ښایي د خپلې کورنۍ فکر به هم ورسره وي او د هغوی په مرګ به خفه کېږي. خو د وخت په تېرېدو چې څو جګړو کې برخه واخلي او خلک ووژني؛ نو زړه یې هم کلکېږي او مسلکي جنګیالي ترې وځي.

زه هم مسلکي جنګيالى شوى وم. ددې حقيقت له منلو وروسته مې د ذهن دريځې ببرته شوې او درک مې کړه، چې جرمونه څنګه کيږي او نړيواله امپراتوري څنګه رامنځته کيږي. اوس په دې پوه شوم چې دومره خلکو څنګه ظلمونه کړي دي؛ مثلاً هغه شريف خلک څنګه د شاه د پټو پوليسو د لاس آلې شوې، چې خپلې کورنۍ هم پرې ګرانې وې. ښه او نېک المانيان څنګه د هټلر ملاتړي شول او څنګه د امريکا ښځو او نرو په پانامې بمبار وکړ؟

د يوه اقتصادي جنايتکار په توګه مې يوه تنګه هم مخامخ له NSA يا دولتي ادارې نده اخيستې، ما خپل معاش له MAIN شرکته اخيسته. زه يو عام وګړى وم او شخصي اداره کې مې کار کاوه. په دې پوهېدو مې معلومات نور هم زيات کړل چې د اقتصادي جنايتکارو په توګه به د کاروباري مشرانو ونډه څه وي. نړۍ ته د جنګياليو (پوځيانو) يوه وېرونکې ډله په راتلو وه، دا خلک د خپل کار په اړه لې حسه وو، ما وليکل:

(نن زموږ ښځې او نړه تايلنډ، فلپاين، بوتسوانا، بوليويا او هغه نورو هيوادونو ته ورځي، چې هلته ښايي کارغوښتونکي خلک پيدا شي. دوى هلته د هغو خلکو د استثمار په اراده ورځي. دوى چې د کومو خلکو ښکار ته ورځي هغه خلک په سوى تغذيه او لوږه اخته دي. دا خلک په خامو جونګړو کې اوسيږي او د ښه ژوند فکر هم نه شي کولاى. دوى خو دا تمه هم نه لري چې سبا به ګني لمر راخېژي. ددوى ښکاريان امريکا کې له خپلو سړو او تودو دفترونو راوځي، په الوتکه کې له بحرونو اوړي، هلته په عصري هوټلونو کې اوسيږي او ښه رستورانتونو کې ډوډۍ خوري، وروسته بيا د بدمرغو او نهيلو خلکو په لټه له همدې ځايه وځي.)

په موږ کې نن هم د غلامانو سوداګري شته. خو نننۍ سوداګر په غلامانو پسې د افریقا تورو ځنګلو ته نه ځي او نه هم د ښه توکو په لټه د چارلټسن، کارتاجینا او هوانا د لیلامیو صالونونو کې ګرځي. دوی هماغه بدمرغه خلک ګوماري، بیا پرې د جاکټونو، پطلونونو، بوټانو، پرزو، کمپیوټر او نورو وسایلو فابریکې جوړوي، چې خپل توکي د خپلې خوښې بازار کې وپلوري. دوی دا اړتیا هم نه لري، چې د فابریکې جوړولو زیار وګالي، همالته له یوه ځایي سوداګر سره خبره کوي او د هغه له خدمتونو ګټه اخلي چې خپلې ناوړه چارې پرې ترسره کړي.

دا ښځې او سړي ځانونه ډېر ریښتوني ګڼي. دوی چې بېرته کورونو ته ستنېږي خپلو بچو ته د زړو کنډرو جالب انځورونه وړي. سیمینارونو کې برخه اخلي، یو بل سره مرسته کوي او په لیرې پرتو هیوادونو کې د ګمرک له چارواکو سره د چلند پر بېلابېلو لارو خبرې اترې کوي. ددوی بادارن ځیني وکیلان ګوماري، دا وکیلان دوی ته ډاډ ورکوي چې ټولې کړنې یې له قانون سره سمې دي. دوی ځینې ارواپوهان او د مزدورانو چارو کارپوهان هم لري. دا کارپوهان اقتصادي جنایتکار په دې قانع کوي، چې دوی په اصل کې له بدمرغو خلکو سره مرسته کوي.

د غلامانو پخوانیو سوداګرو به ځان ته دا ډاډ ورکاوه، چې دوی د یوه توکي سوداګري کوي، دوی پوره انسانان نه دي او د سوداګرۍ ګټه یې دا ده چې د عیسوي کېدو ښه فرصت هم ورته برابرېږي. دوی په دې پوهېدل چې د ټولنې د پایښت لپاره غلامان مهم دي او دا په اقتصادي پرمختګ کې هم مهم عنصر دی. د غلامانو عصري سوداګر ځان په دې ډاډه کوي، چې له بېکارۍ خو د ورځې په یوه ډالر کار ښه دی. تر څنګ یې دا فرصت هم ورکوي، چې له خپلې نړیوالې ټولنې سره یوځای شي. دوی په دې هم

پوهېږي، چې د شرکت د پایښت لپاره یې دا نهیلي خلک مهم دي او ددوی ژوند پر همدې بدمرغو خلکو جوړ دی. خپله هم نه پوهېږي چې دوي خپله، د ژوند دول یې او تر شا یې شته اقتصادي نظام له نړۍ سره څه کویاو بلاخره به داهر څه ددوی د خپلو اولادونو په راتلونکي څه اغېز کوي؟

## حوالې :

١. The Memoirs of Manuel Noriega..... " Peter Einser.

٢. "Shooting The Moon: The True Story of an American Man hunt unlike other, Ever", David harris

٣. ibid

٤. The Memoirs of Manuel Noriega....."

٥. Ibid

٦. See www.famoustexans.com/georgebush.

٧. The Memoirs of Manuel Noriega"

٨. "Shooting the Moon" David harris

٩. www.famoustexans.com/georgebush.

١٠. "Shooting the Moon" David harris

١١. The Memoirs of Manuel Noriega"

١٢. Ibid

١٣. Ibid

## يودېرشم فصل

# عراق کې د اقتصاد جنايتکارو ماته

۱۹۸۰ لسيزه کې د IPS د مشر او د ۱۹۹۰ په وروستيو کې د SWEC د ستر سلاکار په توګه ما د عراق په اړه هغه معلوماتو ته لاسرسی درلود، چې ښايي هر چا به نه درلود. رښتيا دا ده چې په ۱۹۸۰ مه لسيزه کې لږ امريکايان د عراق په اړه پوهېدل. ددوي په ذهن خپور منظر کې عراق نه و، خو هلته چې څه کېدل ماته په زړه پورې وو.

زه خپلو ټولو هغه ملګرو سره په اړيکه کې وم چې په نړيوال بانک، USAID، IMF او نورو مالي ادارو کې يې کار کاوه. تر څنګ مې د بېشټل او نورو انجينري شرکتونو له کارکوونکو سره هم اړيکې لرلې، چې زما خسر هم پکې شامل و. ډېر هغه انجينران چې د IPS په څانګو يا نورو خپلواکو ادارو کې يې کار کاوه، اوس د منځني ختيځ په پروژو کې بوخت وو. زه ښه پوهېدم چې اقتصادي جنايتکار به عراق کې ډېر زيار ګالي.

د ريګن او بوش ادارې پوخ هود کړی و، چې عراق به هم سعودي عربستان ته ورته کوي. ډېر لاملونه وو چې له مخې يې بايد صدام حسين د آل سعود پر پلونو تللی وی. ددې راضي کولو لپاره يوازې د هغو ګټو يادونه بس وه، چې سعودي عربستان د پېسو مينځلو په پروسه کې کړې وه. عربستان سره چې معامله وشوه، په دښتو کې ښارګوټي جوړ شول، په رياض کې ښار کې د رمو ځای اوس پاکو لاريو ونيوه او ښاريانو له عصري ټکنالوجۍ ګټه اخيسته. په دې کې د ترخو اوبو چاڼخونې، د ارتباطاتو سيستم او برښنا شامله وه.

صدام حسين پوهېده، چې د نړيوال قانون په مسئله کې هم عربانو ته ترجيح ورکول کېده. واشنګټن کې دده ښو ملګرو د سعودي په کارونو سترګې پټولې، په دې کارونو کې يو يې له مذهبي جنونيانو سره مالي مرسته وه. عربستان له يوه داسې سياسي انقلاب سره په خپله اړيکه پوهېده چې پولې پر ترهګرۍ ختمېدې. پردې سربېره يې نړيوالو مجرمينو ته هم ځای ورکاوه. امريکا خپله روسيه سره د جهاد په نوم اسامه بن لادن ته، له سعودي مالي مرستې غوښتې او ترلاسه کړي دي. د ريګن او بوش ادارې نه يوازې سعودي ته ددې کار داډ ورکړ؛ بلکې په نورو هيوادونو يې هم د ورته کار فشار راوړ.

۱۹۸۰ مې لسيزې کې په عراق کې ډېر شمېر قوي اقتصادي جنايتکار مېشت وو او فکر يې کاوه چې صدام به يوه ورځ لارې ته سم شي. که. عراق امريکا سره د سعودي په څېر تړون کړی وی، نن به صدام ته پر خپل هيواد د حکومت سربېره سيمه کې د خپل رسوخ موندلو اجازه هم ورکړل شوې وه.

دې هېڅ توپير نه کاوه چې صدام حسين ظالم او جابر حاکم و، لاسونه يې په وينو رنګ وو او کارونو يې خلکو ته هېټلر رايادوه. امريکا مخکې هم ورته خلک زغملي او ملاتړ يې ترې کړی دی. موږ ته دا خبره هم ښه وه، چې د پيټرو ډالرو (د تېلو پيسو) پر ځای مو ورته د امريکايي حکومت تضمين پانې (سيکورټي) ورمخکې کړې وی. دې سره به د تېلو د بې خنده عرضې تړون شوی وی او د تضمين پاڼو د سود په پيسو به لويو امريکايي شرکتونو په عراق کې ودانيزې چارې ترسره کولای. دې شرکتونو به ټول عراق کې د بنسټيزو پروژو په نامه لوی ښارونه اباد کړي وی او وچې دښتې به يې د کجورو په شنو باغونو بدلې شوې وی. ددې کار د کېدو په صورت کې به

مورډ ټانکونه او جنګي الوتکې هم ورکړې وی او لکه د نورو هیوادونو به مو د اټومي وسلو بټۍ هم ورته فعالې کړې وی. مورډ دې کیسه کې هم نه وو، چې هغوی به ګني په دې بتیو کې عصري وسله جوړولای شوه.

عراق مورډ ته ډېر مهم و، تر هغه څو چنده ډېر چې په ظاهره ښکارېده. د عام نظر برعکس د عراق معامله یوازې تر تېلو محدوده نه وه.په دې کې د اوبو او جغرافیايي سیاست مسئله هم ډېره مهمه وه. دجله او فرات دواړه سیندونه په عزاق کې بهیږي، په سیمه کې دا یوازینی هیواد و چې د اوبو پر مهمو سرچینو واکمن و او دا ارزښت ورځ یې تر بلې لوړېده.

مورډ چې د انرژۍ له سکتور سره اړیکه لرو په دې پوهېږو چې په ۱۹۸۰ مه لسیزه کې د اوبو سرچینې له سیاسي او اقتصادي پلوه څومره ارزښت لري. د شخصي کولو په دې دور کې لویو شرکتونو لومړی د انرژۍ وړو شرکتونو ته سترګې نیولې وې چې څنګه یې تر ستوني تېر کړي او اوس یې پر دې فکر کاوه چې څنګه کولای شي افریقا، لاتیني امریکا او منځني ختیځ کې د اوبو سرچینې د خصوصي کولو (Privatization) ښکار کړي.

پر تېلو او اوبو سربېره عراق د جغرافیايي موقیعت له مخې هم مهم و. له ایران، کویټ، عربستان، اردن، شام او ترکیه سره پولې لري او ساحل یې هم له فارس خلیج سره لګیږي. دا ځای اسرائیلو او پخواني شوروي اتحاد ته دومره نږدې دی چې راکتي برید ترې په اسانه کېدی شي. د پوځي چارو کارپوهان دې ځای ته په دومره ارزښت قایل دي، لکه د فرانسې، هندي جنګونو او امریکايي انقلاب کې چې د هډسن HUDSON درې درلود. اتلسمه پېړۍ کې فرانسویان، انګریزان او امریکایان ښه پوهېدل، چې دره چا ونیوله لویه وچه د هماغه ده. نن خلک په دې پوهېږي چې عراق د ټول منځني ختیځ کونجي ده. پر دې سربېره عراق د امریکايي ټکنالوجۍ او

انجینري خدمتونو بنه بازار هم ثابتېدای شي. له ټېلو پر دې غني سیمه (د ځینو خلکو پر وینا تر سعودي غني ده) واکمنېدل په دې معنا وو، چې دلته د بنسټیزو پروژو او صنعتي پلانونو پلې کولو زرین فرصت شته دی. ټولو سترو لوبغاړو، انجینري او ودانیزو شرکتونو، د ټکنالوجۍ شرکتونو؛ د الوتکو،ټانکونو او توغندیو شرکتونو؛ د درملو او کیمیاوي موادو شرکتونو او ... همدې سیمې ته سترګې نیولې وې.

د ۱۹۸۰ مې لسیزې تر نیمایي دا څرګنده شوه، چې صدام د اقتصادي جنایتکارو په دام کې نه نښلي. دا خبره د بوش ادارې د خفګان او نهیلې وړ وه. د پانامې په څېر عراق هم هغه مسئله وه چې د بوش بېځ زړه توب، ناوړتوب او بې اغېزتوب پکې ننګول شوی و. بوش لا له دې شخړې د وتلو په فکر کې و، چې صدام حسین خپله لوبه پیل کړه، د ۱۹۹۰ز کال د اګست په میاشت کې یې پر کویټ برید وکړ، بوش سمدستي غبرګون وښود او له نړیوال قانونه د سرغړونې پر بنسټ یې دا ِصدام دا کړنه وغندله، په داسې حال کې چې څه کم یو کال مخکې بوش خپله پر پانامې همداسې غیر قانوني او یو اړخیز برید کړی و.

دا د حېرانۍ وړ نه ده، چې بوش د یوه ستر برید امر وکړ، د یوه نړیوال پوځ د برخې په توګه ، د امریکا پنځه سوه زر پوځ په دې برید کې برخه لرله. د ۱۹۹۱ په لومړیو میاشتو کې پر عراقي پوځ او ښاري ابادۍ د امریکا هوایي بریدونه پیل شول. تر دې وروسته نږدې سل ساعته ځمکني پوځ قوي برید ته دوام ورکړ، د عرق له هره اړخه کمزوری پوځ یې ټوټې ټوټې کړ او کویټ یې ترې یې وژغوره. د یوه ټولواک حاکم پر ضد ملاتړي عملیات شوي وو، خو سزا یې نه وه ورکړې. دې سره په امریکا کې د بوش د ملاتړو کچه ٪۹۰ ته پورته شوه.

په عراق چې برید کېده ما بوستون کې یو ملاقات درلود. ښه مې په یاد دي چې د بوش په پرېکړه څومره خوښي ښودل شوې وه. په ستون اینډ ویسټر کې ځیني خلک هوا ته الوتل، که څه هم دا خوښي له دې امله نه وه چې موږ د یوه جابر حاکم پر ضد ګام پورته کړی دی، دوی عراق نیول د دېرې ګټې فرصتونو او لوړو معاشونو په معنا ګڼل.

دا خوشالي یوازې تر موږ کاروبارې خلکو محدوده نه وه چې د ګټې په تمه وو، ټول ولس په دې خوښ و، چې پوځ یې بریالی شو.

ددې کار لاملونه ډېر وو، هغه فلسفي بدلون هم پکې وو چې د ریګن پر وړاندې د کاسترو د ماتې پر وخت رامنځ ته شو. ایران کې یرغمل شوي کسان راخوشې شول او ریګن اعلان وکړ چې د پانامې کانال په تړون به بیا مذاکرات کیږي. په پانامې د بوش برید په اور د تېلو کار وکړ.

د وطن پرستۍ او عملي اقداماتو تر شا د یوه باریک بدلون فکر هم روان و، فکر دا و چې د امریکا ګټې او هغه خلک چې کاروباري ادارو ته کار کوي، نړۍ ته په کومه سترګه ګوري. نړیوالې امپراتورۍ خواته تګ اوس ممکن خوب ګڼل کېده، چې د هیواد ډېره برخه پکې شریکه وه. د نړیوالتوب او خصوصي کولو دوه نظریات لکه د تورې دوه اړخونه زموږ په افکارو راڅرېدلي وو.

وروستۍ خبره دا چې اوس کیسه یوازې تر امریکا نه وه او له ټولو پولو اوښتې وه. د قانون له مخې ټول امریکایي شرکتونه اوس نړیوال شوي وو. دېرو شرکتونو په بېلابېلو هیوادونو کې رینښې ځغلولې وې او د دېرو قوانینو له منځه به یې د خپل کاروبار چلولو لپاره د خپلې ګټې هغه پلی کاوه. د نړیوالتوب تړونونو او ورپورې اړوندو ادارو دا کار لا پسې اسان کړی و. جمهوریت، سوسیالېزم او پانګوالي ... دا لغتونه اوس له ذهنه په وتو وو.

کارپوریټوکراسي اوس یو حقیقت و او د نړۍ په سیاست او اقتصاد یې اغېز ورځ تر بلې زیاتېده.

حالات عجیب خواته روان وو، زه هم ۱۹۹۰ ز کال کې هله د کارپوریټوکراسۍ په ګونډو کړم، چې IPS شرکت مې وپلوره. زما شریکانو ته دا ګټور فرصت و، خو ما دا شرکت ځکه وپلوره چې Ashland Oil شرکت راباندې فشار راوړی و. زه تجربو پوه کړی وم، چې دوی سره مبارزه راته تاوان کوي او د شرکت له پلوره مې ښه پیسې ترلاسه کولای شوې. دا هم ستم و چې د تېلو یو شرکت زما د انرژۍ د شرکت معادل یو شرکت ترلاسه کاوه، دې وخت کې زما د شخصیت یوې برخې پر ما د خیانت تور رالګاوه.

که د وخت خبره وکړو نو په SWEC کې مې ډېر وخت نه تېراوه. کله کله به یې راته ویل چې بوسټون ته د کومې ناستې لپاره ورشم یا په کومه پلان ګذارۍ کې مرسته وکړم. کله کله به RIO DE JANEIRO غوندې ځایونو ته هم ورتلم، چې د هغه ځای له محترک ډوله خلکو سره اړیکې جوړې کړم. یوه ورځ په یوه شخصي الوتکه کې ګویټي مالا ته هم تللی یم. زیاتره به مې د پروژې له مدیر سره اړیکه نیوله چې د خپل شتون احساس ورکړم. د دومره لږ کار په مقابل کې ډېر معاش اخیستو به مې کله کله ضمیر را ځوراوه. زه په دې کاروبار ښه پوهېدم او غوښتل چې مې یو ګټور کار وکړم، خو د هغو خلکو په اجنډا کې زه شامل نه وم.

دې فکر ډېر ځورولم چې زه اوس د نورو خلکو په منځ کې عام انسان یم، ما غوښتل داسې یو کار وکړم، چې زما د شتون جواز پیدا شي او د خپل تېر ژوند منفي اړخونه په مثبتو اړخونو واړوم. ما په غلي او نامنظم ډول په خپل کتاب (د اقتصادي جنایتکار ضمیر Consciecnce of Economic Hit

Man.) کار کاوه، خو دومره خوش باوره نه وم چې دا کتاب به ګنې چاپ شي.

۱۹۹۱ ز کال کې مې امازون ته د ځینو ورو ډلو لارښوونه پیل کړه. موخه مې دا وه چې دوی له شوار قبایلو سره لږ وخت تېر کړي، هغوی غوښتل چې د ځایي مالیاتي سیستم او روغتیا په اړه مالومات نورو خلکو سره شریک کړي. په راتلونکو څو کلونو کې د داسې سفرونو غوښتنه زیاته شوه او د Dream Change Coalation په نوم یوه غیر انتفاعي اداره رامنځته شوه. دا چې صنعتي نړۍ دې سیمې ته په کومه سترګه کتل او زموږ ورسره څه اړیکه وه؟ نوې ادارې خپل وخت د همدې فکر بدلون ته وقف کړی و. په همدې اساس ټوله نړۍ کې ددې ادارې مینه وال پیدا کېدل او دا واک هم ورکړل شوی چې ورته ادارې جوړولای شي. ټایمز مجلې دا اداره د هغو ادارو په لست کې راوړله چې له ویبسایټه یې Earth day موخې په ښه ډول څرګندېدې.

ټوله ۱۹۹۰ لسیزه کې زه له غیر انتفاعي ادارو سره بوخت وم. ما د داسې ډېرو ادارو په رامنځته کولو کې مرسته کړې او د نورو ادارو په رهبرۍ پلاوي کې زما خدمتونه څرګند وو. له دې جملې ډېرې ادارې د هغو خلکو منندوی وې چې په ډریم چینج اداره کې یې کار کاوه او د لاتینې امریکا په ځینو قبایلو؛ لکه د امازون شوار او اچوار؛ د وینډیز قویچو او د ګویتې په مایا کې یې کار کړی و. تر څنګ یې دې خلکو په امریکا او اروپا کې ددې قبایلو د رسم و رواج ښوونه هم کوله. دې کار یې د هغوی له خپل پروګرام United way سره هم اړخ لګاوه. ما یو څو نور کتابونه هم ولیکل، خو په دې احتیاط چې ټول پام مې ځایي مسایلو ته وکړ او د اقتصادي جنایتکار په توګه مې په خپلو ټولو کارونو سترګې پټې کړې. ددې بوختیاو له امله زما

خفګان کمېده. له لاتیني امریکا او سیاسي مسایلو سره مې یې اړیکه د خپل شوق له مخې ساتله.

ما هڅه کوله خان داډه کړم، چې خیریه کارونه او کتاب لیکنه به مې د تېرو ګناهونو کفاره شي، خو دا کار ستونزمن و. زړه کې په دې ښه پوهېدم چې د خپل لور په مقابل کې له شته مسئولیتونو تښتم. جیسیکا ته مې په مېراث کې هغه نړۍ پرېښوده چې سلګونه زره ماشومان پکې پوروړوی زیږیدل او مړه کېدل. په دې لړ کې باید زه خپل مسئولیت ومنم.

زما د کتابونو مینه وال ډېریدل، په ځانګړي ډول د A World is As You Dream it. له دې امله مې د لکچرونو او ورکشاپونو غوښتنه هم زیاته شوه. کله کله به چې د بوسټون، نیویارک یا میلان د خلکو مخې ته ولاړ وم نو دا احساس به مې کاوه: که دا نړۍ داسې وي چې موږ یې خوب لیدلی؛ نو موږ داسې خوب ولې لیده؟ او د دومره وېرونکي خوب د رښتیا کولو لپاره مو دومره کار ولې وکړ؟

۱۹۹۷ کال و، د اومیګا انسټیټوټ له خوا مې د کارابین په سېنټ جان ایي لینډ کې یو ورکشاپ ورکاوه. د شپې ناوخته ورسیدم، سبا چې راویښ شوم نو وړوکي بالکېن ته ووتم، سترګې مې په هغه ساحل ولګېدې، چې له ۱۷ کاله مخکې مې پکې د MAIN پرېښودلو پرېکړه کړې وه. زه خپلو احساساتو مات کړم او په څوکۍ کېناستم.

ټوله اونۍ به مې اوزګار وخت له همدې بالکنه سېل کاوه. عجیب حالت و، په خپلو احساساتو پوهېدل راته سخت شوي وو. فکر مې وکړ چې له دې ګردابه راووتم نو بل ګام مې څه واخیست؟ زه په دې هم پوهېدم چې په دې نظام کې ژوند زما په ذات څومره بد اغېز کاوه. د اونۍ په وروستیو کې پوه شوم، تر ما چاپېره هغه نړۍ نه وه چې ما یې خوبونه لیدل. اوس باید ما

هغه څه کړی و چې خپلو زده کوونکو ته مې پرې ټینګار کاوه. یعنې هغه باید په محسوس حالت کې رښتیا کړم او غوښتل مې دا حقیقت په خپل ژوند کې روان ووینم.

بېرته چې راغلم د مشاوریت دنده مې پرېښوده. د SWEC هغه مشر تقاعد شوی و چې زه یې ګومارلی وم ، په ځای یې یو کشر کس راغلی و او داسې ښکارېدل چې زما له زړو کیسو سره یې علاقه نه لرله، هغه د لګښت کمولو برنامه پیل کړې وه او پوهېده چې زما له غوښن معاش نه خلاصیدای شي.

ما پرېکړه وکړه چې خپل نیمګړی کتاب باید پوره کړم. دې پرېکړې ډ اطمینان احساس راکړ، خپل نږدې ملګري مې هم له دې کاره خبر کړل.

زیاترو یې په خیریه ادارو کې کار کاوه، د ځایي کلتوري میراثونو لپاره یې کار کاوه او د ځنګلونو ژغورنه یې د پلان برخه وه. هغوی زما په دې کار نهیلي وښوده او دا ماته د حېرانۍ وړ وه. دوی ویل چې رښتیا ویل به زما په تدریسي کارونو منفي اغېز وکړي او هغه خیریه ادارې به هم اغېزمنې شي چې زه ورته کار کوم. له مورږ ډېر یې په دې بوخت وو چې د امازون قبایل د تېلو د شرکتونو له پلاوو وژغورو. دوی ویل چې زما په دې کار به ښایي د خلکو باور راباندې مات شي او ممکن ټول تحریک ته یو ډول زیان واوړي. ځینو خو یې وګواښلم چې مرستې به راباندې بندې کړي. یو ځل مې له لیکلو لاس واخیست، ټول پام مې دې ته و، چې خلک د امازون منځ ته دننه کړم. ما غوښتل داسې ځایونه او قبایل ور وښیم چې د عصریت او تمدن له ځنګه هم نه وي تېر شوي. دا هغه ځای و چې زه پکې د ۲۰۰۱ ز کال د سپتمبر په ۱۱ نېټه اوسېدم.

## دوه دېرشم فصل

# یوولسم سپتمبر او اغېزې یې

د ۲۰۰۱ کال د سپټمبر په ۱۱ نېټه ما د اکوادور د امازون په یوه سیند کې سفر کاوه. د خپل کتاب Spirit of the Shuar شریک لیکوال Shakaim Chumpi هم راسره و. موږ شپاړس شمالي امریکایان د ځنګل په منځ کې یوې قبیلې ته ور وستل. دا خلک د هغوی پېژندلو او قیمتي ځنګلونو ژغورلو لپاره راغلي وو. نړدې وختونو کې د اکوادور او پیرو یوه شخړه راغلی وه او شکیم پکې د پوځي په څېر جنګېدلی و. د تېلو لویو مصرفوونکو هیوادونو خلک له دې جګړې خبر هم نه وو، خو دا جګړه اصل کې همدې هیوادونو ته د تېلو چمتو کولو پر بنسټ شوې وه. که څه هم ددې دواړو هیوادونو تر منځ د پولې په سر شخړه له کلونو روانه وه خو اوس یې فوري هوارۍ ته اړتیا لرله. دا اړتیا ځکه رامنځته شوه چې د تېلو شرکتونو غوښتل دلته د کوهیانو کېندلو لپاره دې هیوادونو سره مذاکرات وکړي او ددې کار لپاره د پولو ټاکل ډېر مهم وو.

شوار قبیلې د اکوادور د دفاع لومړۍ کرښه وه. دې قبایلو په خلکو ځانونه د ترخو جنګیالو په څېر منلي وو. دښمن له ډېر شمېر او وسلو سره بیا هم پر دوی نه شو راتلی. دا خواران د جګړې تر شا سیاست باندې نه پوهېدل. دوی دومره هم نه پوهېدل چې ددې شخړې په هوارېدو به د تېلو شرکتونو په مخ دروازې پرانېستل شي. دوی ددې لپاره جنګېدل چې جګړه یې په زړو روایاتو کې شامله وه او هېڅ بهرني پوځي ته یې هلته د ننوتلو اجازه نه ورکوله.

موږ له سیند سره یو ځای روان وو، شکیم مې وپوښت چې اوس لندمهالې سوله شته که نه؟

(هو! خو باید درته ووایم چې موږ تاسو سره د جګړې په چمتووالي بوخت یو.) بیا یې پوه کړم چې موخه شخصاً ما یا زموږ ډلې سره د جګړې خطر نه دی، ویې ویل چې تاسو زموږ ملګري یاست او ما په اصل کې د تېلو له شرکتونو سره د جګړې خبره کوله.

(موږ ولیدل چې هغوی له Huaorani قبیلو سره څه وکړل. ځنګلونه یې له منځه یوړل، سیندونه یې چټل کړل او د ماشومانو په ګډون یې ډېر خلک ووژل، اوس دا خلک د یوې قبیلې په توګه له منځه تللي دي. اجازه نه ورکوو، چې موږ سره هم داسې وشي، موږ چې څنګه د پېرو خلک خپلې ځمکې ته نه دې راپرېښي همداسې دا د تېلو شرکتونه هم نه راپرېږدو. موږ قسم کړی چې تر وروستۍ ساه به جنګیږو.) ۱

په دې شپه موږ له وښو او بانسونو جوړه شوې یوې ښایسته اوږدې کوټې کې اور ته ګردچاپېره ناست وو. ما خپل ملګري شکیم سره له کړو خبرو خبر کړل. موږ حیران وو، چې په نړۍ کې به څومره نور خلک زموږ د هیواد او د تېلو د شرکتونو په اړه موږ ته ورته فکر لري. د شوار قبایلو غوندې څومره نور خلک به په دې وېره کې وي چې موږ به یې ګني په ژوند کې مداخله وکړو او کلتور او تمدن به یې له منځه یوسو، څومره خلک به له موږه کرکه کوي؟

په سبا یې زه خپل کوچني دفتر ته لاړم، دلته مو یوه دوه طرفه راډیو(مخابره) نصب کړې وه. ما غوښتل خپل پیلوټ ته پیغام ورکړم، چې څو ورځو کې راشي او موږ له دې ځایه بوځي، هغه سره مې خبرې کولې چې یوه چیغه مې تر غوږو شوه، د راډیو له بلې خوا غږ راغی ... (اوه خدایه، په نیویارک بریدونه کیږي.) د راډیو د سوداګریز اعلان موسیقي په

صحنه ( بکګراونډ) کې اورېدل کېده، هغه د راډيو غږ پورته کړ، تر راتلونکي نيم ساعت پورې پر امريکا د کېدونکو بريدونو شېبه په شېبه احوال راکول کېده. دنورو غونډې ماته هم دا شېبه داسې وه چې هېڅکله به مې هېره نه شي.

فلوريډا کې خپل کور ته چې راستون شوم، نو ومې ويل چې ګراونډ زيرو ( هغه ځای چې نړيوال سوداګريز مرکز پکې و)، ته بايد يو ځل سر ورښکاره کړم او نيويارک ته د تلو تياری مې ونيو. ماسپښين خپل هوټل ته ورسېدم، د نومبر لومړۍ لمرينه ورځ وه، ښايسته شمال لګېده، زه د سنټرل پارک په څنډو ګرځېدم، طبيعت ډېر پر جوشه و، بيا د ښار هغه برخې ته لاړم چې پخوا مې پکې ډېر وخت تېر کړی و، دا ځای وال سټريټ ته نږدې سيمه وه چې اوس يې پواينټ زيرو باله.

زه چې ورغلم په هغه ځای کې د شور او مستۍ پر ځای يوه وېره خپره وه. د هغه ځای تصوير او بوی مې په ذهن ننوتل، بې سارې ورانی شوی و. د ودانيو کنډرونه، کنډوالې، خاورې، لوګي او د سوځېدلو غوښو بويونه ... ما دا هر څه په ټلويزيون ليدلي وو، خو په خپلو سترګو ليدل جلا وي.

ما دا حالت نه شو ليدی، ټول خلک همداسې وو، په دې پېښې دوه مياشتې اوښتې وې، خو کومو خلکو چې دلته نږدې کار کاوه له بريده ژوندي وتي وو؛ اوس به هم راتلل او دلته به ودرېدل. يو مصري موچي به د خپلې ورې غرفې مخې ته ګرځېده او سر به يې داسې خوځاوه لکه په دې هر څه يې چې باور نه کېده.

( زه دا نشم زغملای، زما مشتريان لاړل، زما وراره دلته مړ شو.) بيا يې په بريدو شنه اسمان ته وليدل: (ما لکه چې وليده چې راتوپ يې کړ ... سم

مې په ياد نه دي ... ډېرو خلکو ټوپونه راوهل .... خپل لاسونه يې داسې خوځول لکه په هوا کې د الوتو هڅه چې کوي.)

د خلکو له خبرو معلومیده چې دا هر څه ناڅاپي شوي او خلک يې په وېره کې پرېښي دي. نیویارک کې داسې پېښه حېرانونکې وه. د بیان لپاره يې توري نه وو. سترګې يې سره ولګېدې، که څه هم غم اوخفګان ترې څڅېده، يو بل ته يې په خواخوږۍ وکتل، له درده ډکه موسکا يې وکړه، په دې ادا کې زرګونه خبرې پټې وې.

خو دلته نور څه هم وو، ددې ځای په اړه عمومي احساس، سمدستي يې په اړه پوه نه شوم، خو وروسته يو دم پوه شوم، دا د هغه ځای د رڼا په اړه و. ما چې د IPS لپاره د پېسو راټولو کمپاين کاوه نو خپلو بانکدارانو ملګرو سره به دلته ډوډۍ ته راتلم. هغه وخت به Manhattan د رڼا چم ښکارېده، د رڼا ليدو لپاره به خلک د نړيوال سوداګريز مرکز بام ته ختل، خو اوس دا هر څه د کوڅې سطحې ته راښکته شوي وو، او دا چم ټوټې ټوټې شوی و. زه اوس دې کنډرو سره نږدې په کوڅه کې ولاړ وم، ګرمي مې وشوه، فکر مې وکړ چې د پراخه اسمان او لمر به د خلکو زړه هم خلاص کړی وي. دې فکر سره راکې د جرم احساس پيدا شو.

زه د Trinity کليسا خواته ورتاو او د وال سټريټ له څنګه تېر شوم. پخوانی نیویارک تيارو نغاړلی و. اسمان ښکارېده خو رڼا پکې نه وه، خلکو يو بل ته نه کتل او په ګړنديو قدمونو روان وو، په يوه ولاړ موټر پوليس تکيه وهلی ولاړ و.

زه په نږدې زينو کېناستم، ډېر غږونه راتلل خو ځرګند پکې د يوه ستر پکي غږ و. داسې ښکاريده لکه د نیویارک د اسهامو د بازار له ودانۍ چې راځي. زه خلکو ته ځير شوم، د سرک دواړو خواوو ته په خپلو خولو کې ډوب روان

وو، څوک کورونو ته روان او څوک له کاروباري سترۍ د کلبونو او میخانو خواته تلل. یو نیم به پکې ټوکې هم کولې، خو زیاتره هغه یې غلي او څوړند سر روان وو، ما غوښتل چاسره سترګې ولګوم، خو بریالی نه شوم.

په کوڅه کې د یوه موټر هارن متوجه کړم. یو کس له کوم دفتره رامنډه کړه، کونجي یې د موټر خواته وخوځوله او هارن غلی شو. ښایسته شېبه همالته غلی ناست وم، بیا مې له جېبه یو زوړ کاغذ راوایست، ځینې شمېرې او توري پرې لیکلي وو.

بیا مې هغه ته سترګې ور واوښتې، څمکې ته یې کتل او کوڅه کې روان و، ږیره یې سپینه وه، کورتۍ او جمپر یې اغوستې وه، دا نو د وال سټریټ په ننۍ ورځ عجیب ښکارېدل، زه پوه شوم چې افغان دی.

ماته یې راولیدل او له لږ ځنډ وروسته په زینو راپورته شو. په ډېر ادب یې سر وخوځاوه او ماسره څو فوټه نږدې په زینه کېناست، ما چې هغه له ځان سره داسې ولید؛ نو فکر مې وکړ چې خبرې باید زه پیل کړم :

- نن ښه ورځ ده کنه؟

- ډېره ښه ورځ ده، زما همداسې ګرمي پکار ده.

تلفظ یې ډېر دروند و. ما ووېل :

- ستا موخه دا ده چې د نړیوال سوداګریز مرکز له امله؟

د سر په خوځولو یې د هو اشاره وکړه، بیا مې وپوښت :

- ته افغان یې؟

ماته یې راولیدل، ویې ویل :

- دومره واضح ښکارم؟

- ما ډېر سفرونه کړي دي، اوس اوس له کشمېر او هېمالیا نه راغلی یم.

هغه په خپله ږیره لاس راکش کړ:

- هو ! کشمېر جنګ

ما وویل :

- هو، هند، پاکستان او هند مسلم لیګ، ایا ته د مذهب په اړه فکر کوې؟

ماسره یې سترګې ولګولې، سترګې یې تور ته نږدې نصواري وې، پوهه او خفګان ترې څڅېده، د نیویارک سټاک مارکیټ (اسهامو بازار) خواته تاو شو، په خپله کږه ګوته یې هغې ودانۍ ته اشاره وکړه.

ما هغه سره په توافق وویل

- ښایي دا له مذهب سره نه؛ بلکې له اقتصاد سره اړیکه ولري.

ویې پوښتلم:

- ته پوځي یې؟

زه موسکی شوم، هغه کاغذ مې ورمخکې کړ، چې شمېرې پرې لیکلې وې، ورته مې وویل :

- نه ! زه اقتصادي مشاور وم، دا مې وسله وه.

هغه رانه کاغذ واخیست او ویې ویل :

- دا خو شمېرې دي.

ما ورته وویل:

- د دنیا ارقام دي.

لږلیک یې ولید، بیا یې په خندا کاغذ ببرته راکړ، زیاته یې کړه :

- زه یې نه شم لوستی.

ما ورته وویل:

دا شمېرې ښيي چې هره ورځ څلورويشت زره کسان له لوږې مري.

ـه خولې يې د شپېلي تيټ غږ پورته شو. بيا يې له څو شېبو فکره وروسته سوړ اسويلی وويست :

- کندهار ته نږدې مې د انارو کوچنی بڼ و. بيا روسان راغلل او مجاهدين د ونو شاته ويالو کې پټ شول. هغوی روسانو ته غلي وو، زما ونې او د اوبو زېرمه يې وويشتل)

- بيا تا څه وکړل؟

کاغذ ته په اشاره يې وويل:

- په دې لست کې سوالګر هم شامل دي؟

زما په دې لست کې شامل نه وو، خو راياد مې شول، ومې ويل :

- نړۍ کې نږدې ۸ ميليونه دي.

- زه هم له هغو يو وم.

په نهيلۍ يې سر وخوځاوه، په خپلو فکرونو کې غرق ښکاريده، څو شېبې غلی ناست و، بيا يې وويل:

- زما سوال نه خوښېږي، خو زوی مې مرګِ حال و، بيا مې د کوکنارو کر پيل کړ.

ما ترې وپوښتل :

- موخه دې افيوم دي؟

خپلې اوږې يې پورته واچولې:

- زموږ ځای کې نه ونې شته نه اوبه، د خپلې کورنۍ د کفالت همدا يوه لار راپاتې وه.)

ما په خپل ستوني کې يوه غوټه غونډې احساس کړه، د زړه بدوالي او خفګان احساس ورسره مل و، ورته ومې ويل:

- موږ کوکنار کرل بد ګڼو، خو دا هېروو، چې ډېر شمتنو خلکو د همدې په قاچاق خپل ژوند جوړ کړی دی.)

هغه ماسره سترګې ولګولې او داسې فکر مې وکړ چې نظر يې زما اروا ته ښکته شو، سر يې وخوځاوه او ويې ويل :

- ته حتمن پوځي وې.

بيا په قلاره جګ شو او په رنګو قدمونو له زينو ښکته شو، ما غوښتل چې ويې دروم، خو د څه ويلو قوت راکې نه و. زه هم په زور ودريدم او هماغه پسې روان شوم، له زينو لاندې يوې لوحې ته مې پام شو، د هغې ودانۍ انځور پرې رسم و چې زه يې مخې ته ناست وم، د لوحې په لومړيو جملو کې خلکو ته خبر ورکړل شوی چې دا لوحه د نيويارک Heritage Trails نصب کړې او پسې يې ليکلي وو:

(وينس کې د سېنټ مارک د بېل ټاول Bell tower په سر د هالي کرنانس مقبره ده. د۱۴، وال سټريټ د ډيزان بنسټيز فکر همدا دی. ۵۳۹ فوټه لوړې ودانۍ کې په ابتدايي ډول د بانکونو د ټولنې د مشرانو دفترونه وو، چې د هيواد يوه له شتمنو ادارو ده.)

ما د ماتې احساس کاوه او هغه ودانۍ ته مې ليدل، دې (۱۴، وال سټريټ) د تېرې پېړۍ له پای سمدستي وروسته هغه کار کاوه، چې ترې را وروسته نړيوال سوداګريز مرکز کاوه. همدا ځای مقام د قوت او اقتصادي لوړاوي سمبول و. لکه څنګه چې پورته وويل شول دلته د بانکداراونو دفترونه هم دي، همدا ودانۍ ما خپل شرکت ته د پانګې چمتو کولو لپاره

ټاکلې وه، دا زما د ميراث مهمه برخه وه، همدې ته هغه بوډا افغان لاس ونيو او په څرګند ډول يې وويل چې د يوه پوځي ترکه (ميراث.)

په څرګنده خو دا يو تصادف و چې نن مې هغه افغان سره په خبرو ورځ تېره کړه. تصادف! دې کليمې ته متعجب شوم. فکر مې کاوه چې څنګه د ځينو پېښو په اړه زموږ غبرګون مو ژوند په يوه خاص چوکاټ کې اچوي. ددې تصادف په اړه به زما غبرګون څه وي؟

پياده روان وم، په ګڼه ګوڼه کې مې د خلکو سرونو ته وليدل، د هغه افغان څه نښه نه وه. په بله ودانۍ يوه لويه مجسمه ولاړه وه چې، اسماني رنګه پلاستيک پرې خپور و، ورلاندې تخته باندې له ليک ښکاريدل چې دا په ۲٦ وال سټريټ پروت نړيوال تالار و، دې تالار کې د ۱۷۸۹ ز کال په ۳۰ مه نېټه د امريکا لومړي ولسمشر جورج واشنګټن د ولسمشرۍ سوګند کړی و. په اصل کې دا هغه ځای و چې دې لومړي کس ته پکې انساني ژوند، خپلواکۍ او خوښيو لپاره د هلو ځلو د خونديتوب مسئوليت ورسپارل شوی و او هغه ددې مسئوليت د پوره کولو سوګند کړی و. دا هر څه زيرو پواينټ او وال سټريټ ته څېرمه شوي وو. زه له دې بلاکه راتاو شوم او پاين سټريټ ته راغلم، دلته زه د CHASE د نړيوال مشر دفتر ته مخامخ ولاړ وم، دا هغه بانک دی چې David rock filler جوړ کړی و، بانک د تېلو له پېسو ډک و او ما غوندې خلکو خروب کړی و. دې بانک اقتصادي جنايتکار پالل، نړيوالې امپراتورۍ ته يې کار کاوه او له ډېرو خواوو د کارپوريټوکراسۍ سمبول ګرځېدلی و.

زما هغه وخت راياد شو چې په ۱۹٦۰ کال کې راک فېلر د نړيوال سوداګريز مرکز پلانګذاري پيل کړې وه. نږدې کلونو کې دا کامپليکس قادوس Albatross (لوی اسماني رنګه مارغه) ګڼل کېده، قادوس د ځانغوښتنې د

مصبیت په معنا کارېده. شهرت یې داسې شوی و لکه له مالیاتي اړخه چې دا د ناموزون او د عصري دور د نوري فایبر او ټکنالوجۍ بې سارې جوړښت و. دپاسه پرې دوه څلي جوړ شوي وو، چې عامو خلکو به ډیوډ او نیسلن بلل.

زه په قلاره او نارامه روان وم، وېره غوندې مې په زړه کې وه، بې سدي مې احساسوله، فکر مې کاوه چې کومه پېښه کیږي، ددې حالت په لامل نه پوهېدم، خو ترې د خلاصون لپاره مې ګړندي ګامونه واخیستل. یو ځل بیا هغه دردوونکو کنډرونو او په ځمکه یوه لوی داغ ته ولاړ وم، په پېښه کې روغې پاتې شوې ودانۍ ته مې تکیه ووهله. فکر کې مې هغه خلک راوړل چې له ودانۍ یې د راوتلو هلې ځلې کولې، اور وژونکي مې تصور کړل چې اور یې مړ کاوه، د هغو نهیلو خلکو د تصور هڅه مې وکړه چې له لوړو پوړونو یې ځانونه راغورځول، خو بریالی نه شوم.

ددې په ځای مې ذهن کې اسامه بن لادن تصویر شو، هغه نغدې پېسې او د میلیونونو ډالرو وسله له یوه داسې کس نه اخیسته چې خپله د یوې مشورتې ادارې مشر و، خو دا اداره امریکا ته ژمنه وه. بیا مې په تصور کې ځان د یوه داسې کمپیوټر مخې ته ناست ولید چې سکرین یې مړ و.

ما له ګرانډ زیرو نه هاخوا دیخوا وکتل، د نیویارک سوځیدلي کوڅې مې ولیدې، دا کوڅې بېرته معمول خواته روانې وې، زه حیران وم، چې په دې کوڅو کې روان خلک به ددې مسایلو په اړه څه فکر کوي؟ ددې ودانیو په اړه نه؛ د انارو د هغو باغونو په اړه او هغو چې هره ورځ له لوږې څلورویشت زره مري. نه پوهېږم چې دوی به ددې شیانو په اړه فکر هم کوي او که نه. کاشکې دوی یوه شېبه خپل کاروبارونه، په تېلو روانې موټرې او د سود پېسې پرېږدي او دې ته فکر وکړي، چې د خپلو راتلونکو اولادونو د نړۍ

لپاره يې څه کړي؟ دوی افغانستان پېژني، هغه افغانستان نه چې له امريکايي پوځونو او ټانکونو ډک دی؛ هغه بوډا افغان افغانستان، خدای خبر هغه څلورويشت زره کسان به څه فکر کوي، چې هره ورځ له لوږې مري.

ما بيا ځان په تصور کې د هغه کمپيوټر مخې ته وليد، چې سکرين يې مړ و.

بيا مې خپل پام زيرو ګرونډ ته کړ، دې وخت کې يوازې په دې باوري شوم چې زما په هيواد يوه جذبه خپره ده او هغه هم د انتقام ... . ددوی د پام وړ مرکز د افغانستان غوندې هيوادونه وو، دا وخت مې د هغو ټولو ځايونو په اړه فکر کاوه چې پکې زموږ شرکتونو، پوځ، پاليسيو او نړيوالې امپراتورۍ ته په کرکه کتل کيږي.

فکر مې کاوه چې پانامه، لاتينه امريکا، اندونيزيا، ايران، ګويتې ماله او تر ډېره افريقا همدا کرکجن هيوادونه دي.

ما چې کوم ديوال ته تکيه وهلې وه، ځان مې ترې لېرې کړ او مخکې لاړم. يوه لنډ تور پوټکي سړي لاس کې ورځپاڼه خوځوله او په هسپانيايي ژبه يې څه ويل ، د موټرو او خلکو په ګڼه ګوڼه کې يې غږ راغی : ( وينزويلا د انقلاب په لاره)

ما ورځپاڼه واخيسته او څو شېبې يې عنوان ته متوجه شوم، دا عنوان د جمهوريت له لارې د ټاکل شوي او امريکا ضد ولسمشر Hugo Chavez په اړه و. په لاتينه امريکا کې د امريکايي پاليسيو سره د کرکې يوه بله ښکاره څرګندونه.

او وينزويلا هم د کرکجنو هيوادونو په لېست کې ورزياته شوه.

## حوالې

د حورانیانو په اړه د لا ډېرو معلوماتو لپاره ولولئ:

"Savages" – Joe kane.

## دري دېرشم فصل

# وينز ويلا، صدام وژغورله

ما له څو کلونو وينزويلا په دقيقه توګه څارله. دا د يوه داسې هيواد ځانګړې بېلګه وه، چې د خاورو له دېرې يې پيل وکړ او د تېلو په برکت يې ښې پيسې وګټلې. دا د هغه تاوتريخوالي بېلګه هم وه چې د تېلو د شمتنې له امله راپورته شوی و. په دې کې د بېوزله او شتمن ترمنځ د توازن ختمبدل او د کارپوريټوکراسۍ استثمار هم شامل وو. دا يوه داسې سيمه وه، چې زما په څېر زوړ فکره اقتصادي جنايتکار ورته په نوې کاروباري بڼه هجوم ور وړ.

نن چې ما ګراونډ زيرو کې څه پېښې ولوستې، تولې د ۱۹۹۸ کال د ټاکنو مستقيمه اغېزه وه. دې ټاکنو کې محروم او بېوزله ولس هيوګوشاويز په لوی اکثريت خپل ولسمشر وټاکه. (۱) ده سمدستي انقلابي اقدامات وکړل، محکمې او نورې ادارې يې خپل لاس کې ونيوې او کانګرس يې منحل کړ. د امريکا شرميدلی استعمار يې وغنده، د نړيوالتوب پر ضد يې غبر پورته کړ او نوی هايدروکاربن قانون يې جوړ کړ، دا قانون هغه ته ورته وو، چې جيمي رولډوز د خپلې الوتکې نسکوريدو نه مخکې جوړ کړی و. ددې قانون له مخې بايد د تېلو بهرنيو شرکتونو د اوسنۍ دوه چنده بيه ورکړې وای. ددې ترڅنګ يې د تېلو دولتي شرکت Petroleos de Venezuela استقلاليت ختم کړ، لوړپوړي چارواکي يې ګوښه کړل او پر ځای يې خپل خلک وګومارل. (۲)

د وينزويلا تېل د نړۍ ټولو اقتصادونو ته د ساه حيثيت لري. ۲۰۰۲ ز کال کې دا د تېلو څلورم لوی توليدونکی هيواد و، په همدې کال دې هيواد

امریکا ته د تېلو صادرونکو هیوادونو په قطار کې دربیم مقام درلود. (۳) د تېلو دولتي شرکت کې ځلوېښت زره کسان کار کوي او خرڅلاو یې په کال کې پنځوس بیلیونه ډالر دی. له تولیده د ترلاسه شوي عاید اتیا سلنه یې همدا جوړوي؛ نو له هره اړخه په ملي اقتصاد کې مهمه ونډه لري. (۴) ددې له خپلولو شاوېز په نړیوال ستېج د یوه قوي رول لوبولو مسئولیت په غاړه واخیست.

د وینزویلا د خلکو له نظره یې دا حق و. دا د هغه کار تکمیل و چې د همدې کال په سر کې پیل شوی و. د ۱۹۲۲ د دسمبر په ۱۴مه نېټه په Maracaibo کې د تېلو یوه لویه فواره راخوټېدلې وه. تر درې ورځو سل زره ببرله (ببلره) خام تېل هوا ته الوتل او همدا هغه ځمکنۍ پېښه وه چې د وینزویلا پانه یې واړوله. ۱۹۳۰ ز کال پورې دا د نړۍ په کچه تېلو تر ټولو لوی تولیدونکی هیواد شو او خلکو یې همدا تېل د خپلو ټولو رنځونو درمل وګڼل.

راتلونکو ځلوېښتو کلونو کې ببوزله وینزویلا د تېلو په برکت د لاتیني امریکا تر ټولو شتمن هیواد شو، ددې هیواد ټول ارقام جوړ شو، روغتیایي اسانتیاوې، زده کړې، کار او د نویو زیږیدلو ماشومانو خوندیتوب پلانونه جوړ او پلي شول.

۱۹۷۳ ز کال کې چې اوپیک په تېلو بندیز ولګاوه د تېلو بیې اسمان ته وختې او ورسره د وینزویلا ملي بودیجه څلور چنده لوړه شوه، اوس نو اقتصادي جنایتکار رامیدان ته شول. د نړیوالو بانکونو پورونه راپیل شول، له دې پورونو د بنسټیزو پروژو، صنعتي پلانونو او د لویې وچې تر ټولو لوړو ودانیو پېسې ورکول کېدې. په ۱۹۸۰ ز کال کې کاروبار ډوله اقتصادي جنایتکار رامخته شول، دوی ته د خپل ازمېښت زرین فرصت په لاس

ورغی. له اقتصادي پلوه د وینزویلا منځنی طبقه ډېره پراخه شوې وه او د بېلابېلو توکو لپاره ښه بازار جوړ شوی و. ترځنګ یې د بیوزلو قشر هم و، چې په فابریکو کې یې مزدوري کړې وای.

بیا کیسه دا شوه، چې د تېلو بیې په یو دم راولوېدې او وینزویلا خپل پور نه شو پرې کولای. ۱۹۸۹ کال کې نړیوالو مالي ادارو سخت اقدامات وکړل او په وینزویلا یې فشار راوړ چې کارپوریټوکراسۍ سره له نورو لارو لا ډېره مرسته وشي. ولس توند غبرګون وښود او شخړې راپیل شوې، چې له دوو سوو زیات کسان پکې ووژل شول. دې سره د تېلو د بې ساري شتمنۍ خوب هم پوره نه شو. له ۱۹۷۹ تر ۲۰۰۳ کلونو کې د وینزویلا سړي سر عاید تر ۴۰ سلنې ډېر راټیټ شو. ۵

بیوزلۍ سره بې قراري ( اضطراب) هم ډېره شوه او ولس کې واټنونه پیدا شول. اوس منځنۍ طبقه او بېوزله خلک یو بل سره مخ شوي وو. داسې کار په ټولو هغو هیوادونو کې کیږي چې ملي عاید یې په یوه توکي پورې تړلی وي، د ولس په ترتیب کې بنسټیزه خوځښت راغی. د ډوبېدونکي اقتصاد تر ټولو ډېر فشار د منځنۍ طبقې په خلکو راغی او ټیټې (بیوزلې) طبقې ته یې ورټېل وهل. نوي ترتیب شاویز ته میدان هوار کړی و، خو واشنګټن سره یې مخامخ هم کړ. واک ته په رسیدو سمدستي ولسمشر ځینې داسې کارونه وکړل چې د بوش ادارې ته یې د ننګونو درجه لرله. د یوولسم سپتمبر له پیښې لږ مخکې واشنګټن په خپلولمړیتوبونو فکر کاوه، اقتصادي جنایتکار ناکام شوي وو، پوښتنه دا وه چې : آیا ګیدړان مېدان ته ښکته شي؟

بیا ۹/۱۱ هر څه ګډوډ کړل. د بوش او مشاورینو پام یې یوازې په افغانستان کې امریکایي فعالیتونو او پر عراق د برید لپاره د نړیوالو ملاتړ ته اوښتی و.

پر دې سربېره د امریکاخپل اقتصاد هم له ځوږ سره مخ شوی و. د وینزویلا ...يلاه له صحنې ووته، خو دومره ښکاریده چې بوش او شاویز به یوه ورځ د ...يوه بل ګریوان ته لاسونه اچوي. که له عراق او منځني ختیځ هیوادونو نه د تېلو په صادراتو کې څه خلل وي؛ نو امریکا تر ډېره له وینزویلا نه شي بېغمه کېدای.

ګراونډ زیرو کې ګرځېدو، بوډا افغان سره خبرو او د شاویز په اړه فکر هغه پابلې ته ورسولم چې له کلونو مې ځنډوله. اوس دې ته اړ شوم چې په درې لسیزو کې مې کوم کارونه کړي؛ د هغو پابلو ته ځیر شم. ما پر خپل ترسره کړي رول سترګې نه شوې پټولای او په دې هم پوهېدم چې د اقتصادي جنایتکار په توګه به زما شخصیت زما په لور جیسیکا منفي اغېز وکړي. زه په دې هم پوهېدم چې د خپلو ګناهونو کفاره مې نوره نه شوه ځنډولای. اوس باید زه د خپل ژوند په اړه ثرګند اعتراف وکړم، په داسې توګه اعتراف چې د کارپوریټوکراسۍ په اړه د خلکو سترګې خلاصې شي او خلک پوه شي چې له نړۍ ولې له موږه کرکه کوي.

ما بیا لیکل پیل کړل خو خپله کیسه راته ډېره زړه ښکارېده، ددې لپاره چې له نویو حالاتو سره مطابقت ورکړم، نو فکر مې وکړ چې افغانستان، عراق او وینزویلا ته باید لاړ شم، چې روان حالات له نږدې وڅارم. دا درې واړه هیوادونه په اوسنیو نړیوالو حالاتو کې د ستم بېلګې دي. دا درې واړه هیوادونه له قوي سیاسي شخړو وروسته د داسې خلکو لاس ته ورغلل چې د ګولو ډېر کارونه یې ونه کړل. ظالم او جابر طالبان، تریخ اروايي ناروغ صدام او ناپوه شاویز او پر دې سربېره کارپوریټوکراسۍ نه غوښتل چې ددې هیواد اساسي ستونزې حل کړي. حل خو په خپل ځای دوی د هغوی رهبرانو ریښې په داخل کې وریبلې چې زموږ د تېلو د پالیسۍ مخالفت یې

کاوه. په زیاتره مسئلو کې د وینزویلا کیسه په زړه پورې وه. په افغانستان کې پوځي مداخله شوې وه او عراق کې کېدونکې وه. په دې حالاتو کې د شاویز پر وړاندې د امریکا غبرګون د یوې معما شکل خپل کړی و. زما موضوع دا نه وه چې شاویز ښه رهبر دی، موضوع دا وه چې امریکا به د داسې یوه رهبر پر وړاندې څه غبرګون ښیي چې زموږ د کارپوریټوکراسۍ په لاره کې خنډونه پیدا کوي.

ما لا د سفر تیاری نه و کړی چې حالاتو پکې خنډ راوړ. زه په ۲۰۰۲ کال کې د خپلو خیریه کارونو لپاره څو ځله سویلي امریکا ته لاړم. یوه وینزویلايي کورنۍ چې کاروبار یې د شاویز په وخت کې له سقوط سره مخ وه؛ ماسره د امازون په سفر کې مله وه، موږ ښه ملګري شو او د هغو کیسه مې هم واوریده. په لاتینه امریکا کې مې هغو خلکو سره هم ولیدل چې شاویز یې ژغورونکی باله. په کاراکاس (د وینزویلا پلازمینه) کې روانې چارو، دهغې نړۍ ښکارندويي کوله، چې موږ اقتصادي جنایتکارو پنځولې وه.

د ۲۰۰۲ کال تر دسمبر پورې د وینزویلا او عراق حالت بحراني شوي وو. دواړه هیوادونه د یو بل د چارو ردولو خواته روان وو. په عراق کې ټولې حیلې، چالاکۍ، اقتصادي جنایتکار او ګیدړان ټول د عراق په لاره کولو کې ناکام شوي وو او موږ ذهناً دې ته چمتو وو، چې وروستۍ لاره یې پوځي برید دی.

بل خوا په وینزویلا کې د بوش ادارې غوښتل چې په ایران کې د کرمټ روز ویلټ کړنې تکرار کړي، د نیویارک ټایمز راپور و چې:

( ئن د وينزويلا سلګونه زره اوسېدونکي واټونو ته راوتي وو او د هغه اعتصاب ملاتړ يې کاوه، چې پرې اتلسمه ورځ واوښتله. ددوی يوازينۍ موخه دا وه چې ولسمشر هوګيو شاويز له دندې ليرې کړي.

په دغه اعتصاب کې د تېلو د صنعت نږدې شل زره کارکوونکي برخه لري او ددې ولس د بربادۍ خطر يې ځان سره مخکې کړی دی. په نړۍ کې د تېلو صادروونکی دا پنځم لوی هيواد به تر راتلونکي مياشت له دې ستونزو سره مخ وي.

ياد اعتصاب رواني چارې په ټپه درولي خو ولسمشر شاويز هڅه کوي په هغو کارکوونکو د تېلو د دولتي شرکت چارې پرمخ يوسي چې اوسني اعتصاب کې برخه نه لري. اعتصاب کوونکي چې سوداګره طبقه او د مزدورانو مشران پکې شامل دي ادعا کوي چې په دې کار سره به يې د تېلو شرکت ټکان وخوري او ورسره به د شاويز د واک تخته هم په بله واوړي.) (٦)

دا عيناً هماغه وسله ده چې CIA يې پرمټ د مصدق حکومت ړنګ کړ او واک يې شاه ته وسپاره. حالت او پېښې ښځی سره ورته وې، فکر کېده چې پنځوس کاله پخوانی تاريخ بيا تکرارېږي خو پنځه لسيزې وروسته اوس هم د متحرک قوت يوازې تېل وو.

د شاويز ملاتړي له مخالفينو سره په ټکر کې وو. د معلوماتو له مخې ډېر خلک مړه او سلګونه ټپيان شول. په سبا مې يو پخواني ملګري سره خبرې وشوې، هغه په ګېډړانو کې و. زما په څېر ده هم دولت ته کار نه و کړی خو په ډېرو هيوادونو کې يې استخباراتي عمليات رهبري کړي وو. هغه ويل يوه شخصي قراردادي راته زنګ وهلی و چې کولای شي په کاراکاس کې لاريونونو ته هوا ورکړي او ځيني لوړ پوړي پوځي چارواکي هم ورسره د پېسو

په مقابل کې یو ځای کیږي، له دې پوځیانو یې زیاتره په امریکا کې روزل شوي وو. ده خو دا وړاندیز کړی و؛ البته چا چې منلی و هغه پوهېده چې ځنګه ګټه ترې واخلي. (۷)

د تېلو د شرکتونو لوړپوړي او وال سټریټ له دې خطر سره مخ و چې د تېلو بیې به لوړې شي. زه پوهېدم د منځني ختیځ حالت ته په کتو د بوش اداره خپل ټول قوت یوازې په دې مصرفاوه چې د شاویز حکومت څنګه رنک کړي . بیا خبر راغی چې دوی بریالی شول او شاویز له واکه لیرې شو. د حالاتو په بدلیدو نیویارک ټایمز یوه تاریخي تبصره وړاندې کړه او هغه کس په ګوته شو چې په وینزویلا کې یې د کرمټ روز ویلټ په څېر رول ولوباوه:

(امریکا د خپلو ګټو د خوندیتوب لپاره په سره جګړه او ورپسې موده کې د خپل دکتاتورانه حکومت ملاتړ کاوه.

ګویټې مالا کې د ۱۹۵۴ کال کې جمهوري نظام رامنځته شو، خو CIA رنګ کړ. تر څلورو لسیزو یې دکیڼ لاسو باغیانو پر وړاندې له ښي لاسو حکومتونو ملاتړ وکړ. په دې لړ کې تخمیناً دوه سوه زره کسان ووژل شول. چیلي کې چې د CIA په مرسته حکومتي بدلون راغی، په پایله کې یې Augusto Pinochet واک ته ورسید، دی له ۱۹۷۳ تر ۱۹۹۰ پورې واکمن پاتې شو. پیرو کې یو کمزوری حکومت اوس هم د CIA هغه کړنې افشاء کوي، چې تر یوې لسیزې یې د ولسمشر Alberto K. Fujemori او د هغه د بدنام جاسوس Vladimiro L.Montensinos ملاتړ کاوه. دا دواړه اوس له دندو ګوښه شوي دي.

د نشه يي توکو قاچاقبر او سوداګر مينول اى نوريګا د حکومت ړنګولو لپاره امريکا پر پانامه بريد وکړ. دا نباغلي شل کاله د CIA جاسوس پاتې شوی و.

پردې سربېره ۱۹۸۰ لسيزه کې د نکاګوارا د کيڼ لاسو مخالفينو ملاتړ او په ايران د وسلې پلورلو په تور هم د ريګن د ادارې ځينې لوړپوړي چارواکي مجرمين ګڼل شوي دي. د ځينو خلکو څېړنې چې وشوې اوټو جې ريش Otto J. Reich هم يکې و.

دا سړی د لاتينې امريکا په شخړو کې ډېر مجرب ګڼل کېده او شخصاً پرې کوم تور نه و پورې شوی. وروسته بيا دا په وينزويلا کې د امريکا سفير شو او اوس د ولسمشر له لورې د امريکا په نړيوالو چارو کې استازی ټاکل شوی دی. د شاويز ځوړ د همده د هڅو پايله وه.) (۸)

ريش او د بوش ادارې که د شاويز د حکومت ړنګيدو خوښي نمانځله؛ نو نيمايي کې به يې پرېښې وي. حالت واوښتل او په ۷۲ ساعتونو کې دننه شاويز بېرته واک ترلاسه کړ. د ايران د مصدق برعکس شاويز وکولای شول چې د پوځ ملاتړ ترلاسه کړي، که څه هڅه شوې وه چې لوړپوړي چارواکي ټول دده مخالف شي.

پر دې سربېره يې د تېلو دولتي شرکت هم قوي ملاتړ کاوه. د پيټروليوس ډي وينزويلاس شرکت زرګونه خلکو په اعتصاب کوونکو کاريګرو سترګې پټې کړې او په خپل موقف خپلواک پاتې شول.

د شورش ګرد چې کېناست، شاويز د تېلو شرکت په کارکوونکو خپله ولکه سخته کړه، پوځ يې له هغو چارواکو پاک کړ چې دی يې تېرايستلی و. خپل لوی مخالفين يې هيواد پرېښودو ته اړ کړل. د مخالف ګوند دوه سرلاري رهبران يې په شل شل کاله بند محکوم کړل، دا هغه خلک وو چې

واشنګټن سره یې جوړجاړی کړی و او خلک یې اعتصابونو ته تحریکول.
(۹)ددې پېښو ترتیب د بوش ادارې ته له یوه اٰفته کم نه و، لاس انجلس ټایمز راپور ورکړ چې: (د بوش ادارې لوړپوړو چارواکو د دوشنبې په ورځ ومنله چې غوښتل یې د وینزویلا ولسمشر شاویز له دندې ګوښه کړي او ددې لپاره یې د هغه ځای له پوځي چارواکو او ملکي مشرانو سره په میاشتو میاشتو خبرې اترې کړي دي. دا چې ادارې ددې ناکام بغاوت چارې څنګه سمبال کړي دي په اړه به یې پوښتنې ګرویږنې وشي.) (۱۰)
دا خبره خو څرګنده ده، چې وینزویلا کې اقتصادي جنایتکار او ګیدړان- دواړه ناکام شول. د ۱۹۵۳ له ایرانه د ۲۰۰۳ وینزویلا بېخي جلا وه. زه نه پوهېدم چې دا به ګني د یوه نوي توپان پیلامه وي یا به حالات د اټکل خلاف بې قابو کیږي، وبه ګورو چې د واشنګټن راتلونکی اقدام به څه وي.
زه پوهېږم چې د یوه ستر بحران موقتی مخنیوی شوی دی. شاویز د صدام حسین له امله وژغورل شو. د بوش ادارې نه شول کولای چې افغانستان، عراق او وینزویلا یوه وخت کې په نښه کړي. نه یې دومره پوځي قوت درلود او نه سیاسي ملاتړ. زه پوهېدم چې دا حالات بدلیږي او ولسمشر شاویز به نږدې وخت کې له سختو مخالفتونو سره مخ شي. د وینزویلا قضیه یوه یادونه ده چې پنځوسو کلونو کې بې پایلې ده او هېڅ بدلون پکې نه دی راغلی.

## څلوردېرشم فصل

# يو ځل بيا اکوادور

وينزويلا د خپل نوعيت له مخې يوه ځانګړې معامله (Case) وه. زه يې حالاتو ته ځير وم. زه دې حېران کړم چې په يوخ بل هيواد کې د يادونې وړ جګړې چمتوالی کېده. دې جګړه کې ستونزه د ډېرو ډالرو يا مرګونو نه وه، اصلي خبره يې له دې مادي موخو ډېره مخکې وه، چې دا د زياتره په امپراتوريو ځانګړنه وي. ددې جګړې کرښې له بانکدارانو، کاروباري مشرانو او سياستوالو اوښتې وې او آن د عصري تمدن تر ريښو رسېدې. دا کرښې په داسې هيواد کې جوړېدې چې ما پېژانده او مينه مې ورسره لرله، دا هيواد اکوادور نومېده او ما پکې په لومړي ځل رضاکاري کړې وه.

زه چې په ۱۹٦۸ کال کې ورغلم په دې هيواد کې د کارپوريټوکراسۍ تازه تمرينونه کېدل. زما هم دوره او زموږ هم مرتبه نويو کاروباري ملګرو تياری کړی و، چې دا هيواد به ديواليه (ملفس) کوو. موږ ميلياردونه ډالر ورکړل چې زموږ ساختماني او انجينري شرکتونو ته لوی لوی قراردادونه ورکړي او لويو کورنيو ته د پېسو ګڼلو فرصتونه په لاس ورشي.

درې ليسزو کې خبره ترې دې راغله چې د رسمي ارقامو له مخې د بېوزلۍ کچه له ۵۰ - ۷۰ او د بې روزګارۍ ښخي ټيټه کچه ۱۵ ته پورته شوه. پور له ۲۴۰ ميليونه ډالرو ۱٦ بيليونو ته وخاته او بېوزله خلکو ته ځانګړې شوې ملي وسيلې له ۲۰ نه ٦ سلنې ته راغلې. اوس حالت دا دی چې د رسمي اسنادو له مخې سختو بېوزلو خلکو سره نه يوازې دا چې مرسته نه کيږي؛ بلکې هر کال بايد د پور پرې کولو لپاره خپله نيمه بوديجه ځانګړې کړي. ۱

د اکوادور له حالته څرګندیږي چې دا حالت د کومې دسیسې پایله نه ده. دا د هغه کړنو پایله ده چې د جمهوري غوښتونکو او ډیموکراتانو دواړو حکومتونو له خو پرلپسې رواني وې. په دې کې سترو نړیوالو بانکونو، شرکتونو او مرستندویه ادارو ګډون درلود. دې شک نشته چې دا ټول د امریکا تر مشرۍ لاندې کېدل، خو یوازې موږ هم نه وو.

درې لسیزو کې اکوادور دې حالت ته رسولو لپاره زرګونو ښځو او نارینه و په ګډه کار کړی دی. په دې ستر لښکر کې ځیني خلک ما غوندې هم وو، چې پوهېدل څه کوي خو اکثرو دا کار ددې لپاره کاوه چې په ښوونیزو ادارو کې همدا وزرده شوي وو. دوی زما په څېر د لوړو پوړو چارواکو په پلونو روان وو، موږ (لوړپوړو چارواکو) ددې نظام په رامنځته کولو کې خپله حریصانه ونده ښودلې وه. تر څنګ یې د مکافاتو او مجازاتو لوبه وه چې نظام ته یې دوام ورکاوه. د کار شریکانو به خپل کار د ښېګڼې په نیت کاوه. دوی په دې خوش باوره وو، چې له یوه وروسته پاتې ولس سره ګني مرسته کوي.

دا لوبغاړي که څه هم بې خبره د مکر، ټګۍ او ځان تېرایستې ښکار شوي وو خو په هېڅ ډول جرمي دسیسه کې ښکېل نه وو. دا خلک په اصل کې د هغه نظام حاصل وو، چې استعماریت یې په نوي، پېچلي او ګټور ډول پر مخ وړ او نړۍ ترې خبره هم نه وه. هېڅوک اړ نه وو، چې ښځو او نارینه و پسې وګرځي، رشوت ورکړي یا یې وګواښي او د ځان ملګري یې کړي. شرکتونو، دولتي ادارو او بانکونو له مخکې داسې خلک ګومارلي وو. دوی ته رشوت د معاشونو، ډالیو، ترفیع، تقاعد او بیمې په شکل ورکول کېده. ټولنیز سمون لپاره د مېرمنو او ماشومانو ګواښن هم دوی ته پوښتنې راولاړولې.

دا نظام په ډېر شان او شوکت د بریا لوړو پوړیو ته روان و. نوې پېړۍ ته تر رانوتلو اکوادور ښه سم ترل شوی و. دوی اکوادور داسې نیولی و لکه د خښتو بټیو کې چې مزدورانو ته په مړي ژوندي کې پېشکي پېسې ورکوي او خشتمالان (مزدوران) بیا دوی سره ګانه وي.[۲] او یا دا چې د وړوکي کاروبار لپاره پور پېسې ورکوي. موږ خپل ښکار ته د مستۍ کولو ښه فرصت ورکړ، وخت ډېر و، صبر مو وکړ، ښه پوهېدو چې د اکوادور ځنګلونو لاندې د تېلو سیند بهیږي، خو بس د سم وخت په تمه وو.

هغه را ورسید، د ۲۰۰۳ ز کال په لومړیو کې زه په خپل موټر کې کېنو نه شیل خواته روان وم، شیل ښار په ځنګل کې اباد شوی او لار یې پیچومې لري. وینزویلا کې شاویز بیا واک ترلاسه کړی و. جورج ډبیلو بوش یې ننګولی و او بریا یې ترلاسه کړې وه. هلته صدام حسین هم میدان جوړ کړی و او جګړې ته په تمه و. په دریو لسیزو کې د تېلو عرضه بېخي راټیټه شوې وه او زموږ له اصلي زېرمې د لاډېرو تېلو ترلاسه کولو تمه پرې شوې وه. دې سره هغه پیسې هم ورځ تر بلې کمېدې چې کارپوریټوکراسۍ ورکولې، اوس نو د ځپلو شبیه رارسېدلې وه، دا نو هغه وخت و چې د پور په بدل کې باید له اکوادوره دبدن غړی پرې شوی وی.

زه چې د په پستازه سیند له جوړ شوي بنده تېرېدم نو احساس مې کړه چې دلته شتمن او ببوزله استثمار شوي او د استثمارګرو تر منځ زوایتي جنګ نښته. په حقیقت کې د جګړې همدا کرښې ښيي چې موږ د تمدن له پلوه

---

[۲] :د خښتو د بټیو بېلګه ما ورکړې ده، زموږ په ټولنه کې داسې بېلګې ډېرې دي چې کارمندان خان سره پکې اجاره کیږي، خو دا بېلګه راته ډېره مناسبه ښکاره شوه. اصل متن کې وايي : دوی اکوادور داسې نیولی و، لکه د مافیا یو مشر چې خپل ماتحت ته د هغه د لور په واده کې پېسې ورکوي او هغه د خپل لاس لاندې ساتي.

په کوم ځای کې ولاړ یو؟ موږ هغه لویدلي خلک وو، چې د خپلو تېلو لپاره مو دا ګلالی هیواد ځنګلو وهلو ته اړیسته او پاېله یې چې د کومې بربادۍ لامل شوه، هېڅ اټکل یې نه کیږي.

که په پور پرې کولو ټینګار وکړو نو اغېزې به یې دومره ډېرې وي چې په ذهن کې نه راځي. مسئله یوازې د ځایي انساني تمدن، ژوند، څارویو، خزندو، ماهیانو او هغو ونو بوټو نه وه، چې درمل ترې جوړېده. دا کیسه یوازې دومره نه وه چې دا ځنګلونه زموږ زهرجن صنعتي ګازات جذب کوي او زموږ د ژوند لپاره هوا ته اکسیجن ګاز ورکوي، بیا هغه فضا کې خپرېږي او هغو وریځو ته اوبه پمپ کوي چې ټولې نړۍ ته په کافي اندازه د څښاک اوبه برابروي. که چاپېریال پوهان سل ځله ووایي چې دا کارونه د هغه ځای د خوندیتوب لپاره کیږي، خو د محاربې خطونه له دې دلایلو تېرېدل او نبغ په نبغه زموږ اروا ته ښکته کېدل.

که موږ همدا ستراتیژي وساتله نو د یوه استعماري نظام خواته به روان یو چې له رومي امپراتورۍ مخکې راپیل شوې وه. موږ غلامي غندو خو زموږ نړیوالې امپراتورۍ له رومیانو ډېر خلک غلامان کړل او یوازې د رومیانو خبره هم نه ده، په دې ډګر کې موږ ټول یرغلګر نظامونه شاته پرېښودل. زه په دې نه پوهېدم چې په اکوادور کې که موږ داسې موقته پالیسي اختیاروو نو خپل ټولنیز وجدان به څنګه ژوندی ساتو؟

د موټر له کړکۍ مې بهرون وکتل چې د ANDES پخوانی شنې لوړې ژورې اوس خړې شوې وې. دې راکې یو عجیب احساس راوپاراوه، دا سوچه زما نظر و چې اکوادور دې مهمه جنګي کرښه شي. حقیقت خو دا دی ما چې په هر هیواد کې کار کړی او زېرمې یې نړیوالې امپراتورۍ ته مهمې وې هغه موږ لپاره د جګړې مهمې کرښې وې. دا هیواد ماته په زړه پورې و، د

۱۹٦۰ کال تر وروستیو پورې تر هغه وخته په زړه پورې و چې زه پاک او سپېڅلی وم. داسې فکر وکړئ چې دا زما له درونه یو غبږ و یا مې شخصي تعصب و.

که څه هم د اکوادور طبیعي ځنګلونه، ځایي خلک او ټول ژوندي موجودات ډېر ارزښتمن دي، خو د ایران له دښتو او د یامین له میراثه خو ډېر مهم نه دي. له دې اړخه که یې وګورو نو د جاوا غرونه، له فیلیپین ساحله هاخوا بحر، د اسیا هوار میدانونه، د افریقا دښتې، د شمالي امریکا ځنګلونه، د شمالي قطب واورین غرونه او داسې نور زرګونه شیان چې د کارپوریټوکراسۍ مخې ته خنډونه دي؛ په خپل ځای لوړ قیمت او ارزښت لري. دې ټولو ځایونو کې د جګړې کرښې شته، ټول راته چیغې وهي او موږ د خپل فردي او ټولنیز وجدان وژلو ته اړباسي.

ماته څینې ارقام رایاد شول چې لنډیز یې دا دی : په نړۍ کې ۵ سلنه هیوادونه شتمن او ۹۵ یې بیوزله دي، ددوی تر منځ د عاید تناسب په (۱۹٦۰) کال کې ۳۰ او ۱ وو چې په ۱۹۹۵ کال کې ۷۴ ته ورسېد. نړیوال بانک، USAID، نړیوالې مالي ادارې، بانکونه ،شرکتونه او مرستندویه ادارو په اړه ټول حکومتونه پرلپسې ټینګار کوي چې کارونه یې ښه روان دي او پرمختګ کوي.

اوس زه اکوادور کې وم، د نورو هیوادونو غوندې دلته هم د جګړې کرښې وې، خو دا هیواد ماته په زړه پورې و. اوس ۲۰۰۳ کال دی، پنځه دېرش کاله مخکې زه دلته د داسې امریکایي ادارې د کارمند په توګه راغلی وم چې نوم سره یې PEACE (سوله) کلیمه هم تړلې وه. زه اوس هڅه کوم د هغې جګړې اور مړ کړم چې د بلولو لپاره یې ما درې لسیزې کار کړی دی.

داسې ښکارېده چې د افغانستان، عراق او وینزویلا پېښې به موږ له یو بل ځکره وزغوري څو اکوادور کې حالت بېخي بدل و. دلته به امریکایي پوځونه نه جنګېږي، دې جګړه کې به یوې خواته څو زره ځايي اوسېدونکي وي چې په نېزو، تورو او يو دزي ټوپک به سنبال وي او پر وړاندې به يې د اکوادور عصري پوځ، ځانګړي ځواکونه،امریکایي مشاورین او د تېلو شرکتونو کې ګېډراټو روزلي کرايي مزدوران وي. دا به داسې جګړه وي چې ۱۹۹۵ کې د پېرو او اکوادور د شخړې غوندې به امریکایان ترې خبر هم نه شي. نویو پېښو ددې جګړې امکان لاپسې ډېر کړ.

د ۲۰۰۲ دسمبر میاشت کې د تېلو یوه شرکت پر یوې ځايي ډلې تور پورې کړ،چې ګواکې ددوی کارکوونک يې يرغمل کړي دي. دوی دا اوازه خپره کړه چې دا جنګي ډله له یوه ترهګر سازمان سره اړیکه لري او بنايي هغه القاعده وي. دا پېښنه په لوی لاس پېچلې شوه، ځکه دې شرکت ته لا حکومت د تېلو د استخراج جواز نه و ورکړی. بل خوا شرکت ویل دې کارکوونکو د ځمکې لومړنیو څېړنو اجازه لرله او دا کار په استخراج کې نه راځي. څو ورځې وروسته ځايي ډلو دا دعوه په کلکه وغندله او خپل دريځ يې روښانه کړ.

ځايي خلکو ټینګار کاوه چې د شرکت کارکوونکو بې ځايه مداخله کړې وه، جنګیالیو سره وسلې نه وې، نه يې کارکوونکو سره څه تاوتریخوالی کړی او نه يې ګواښلي دي. دوی يې خپل کلي ته په خوندي ډول ځان سره بوولي دي او هلته يې د خوارو تر ځنګ ځايي بییر (چیچا) هم ورکړي دي. ددوې میلمنو چې دودیز خوړله؛ نو قبایلو يې لارښوودان (Guides) تللو ته راضي کړل. قبایلو دا دعوه کوله چې کارکوونک يې په زوره نه دي ايسار کړي.او هغوی په خپله خوښه هر ځای ته تلای شول. (۳)

د سفر په وخت راياد شول چې د IPS له خرڅلاو وروسته مې دې خلکو ته د ځنګلونو د ساتنې وړانديز وکړ. دوی راته وويل: (نړۍ هماغسې ده ځنګه يې چې ته خوب وينې)، بيا يې وويل چې شمالي خلکو د لويو صنعتونو، بې شمېره موټرو او لوړو ودانيو خوب ليدلی، اوس معلومه شوه چې دا خوب ډېر وېروونکی دی او موږ ټول به تباه کړي.

دوی مشوره راکړه : ( چې خپل خوبونه بدل کړئ)، يوه لسيزه وروسته هم حالت هماغسې و. د ډېرو خلکو او خيريه ادارو ( زما په شمول) هڅو سره دا خوب بيا هم ډېر وحشتناک ښکارېده.

زما موټر چې د شيل په يوه ځنګلي کلي کې ودريد، زه سمدستي يوې ناستې ته ولېږدول شوم. په دې ناسته کې د کڅوا، شوار، آچوار، شويار او زپارو قبايلو ښځې او سړي راټول شوي وو. ځينو يې دلته د راتګ لپاره په ځنګلونو کې څو شپې ورځې مزلونه کړي وو او ځينې نور بيا د خيريه ادارو کښتيو رانقل کړي وو. ځينو يې خپل قبايلي کالي ( ګردې لمنې او د ښکو خولۍ) اغوستي وو او څېرې يې رنګ کړې وې. زياتره يې بيا د ښار د خلکو لباس ( پطلون، يخن قاق ...) کې راغلي وو.

د خبرو پيل هغې ډلې وکړ چې د يرغمل تور پرې پورې شوی و. دوی وويل د شرکت کارکوونکي چې ببرته خپل ځای ته ورسېدل څو شپې وروسته د اکوادور تر سلو ډېر پوځيان سيمې ته راغلل. دوی وويل په باراني ځنګلونو کې د يوه ځانګړي فصل پيل و چې ( چونټا Chonta) ونو پکې بار نيوه. دلته دا ونه مقدسه ګڼل کيږي. دا په کال کې يو ځل مېوه کوي او دا په دې معنا ده چې ددې سيمې مارغان (چې ناياب نسلونه هم پکې وو) به هګۍ اچوي او بچي به وباسي. دا مارغان چې دې ونو ته راشي، بيا اسانه ښکار

کیږي، ځکه نو د سیمې خلکو دې فصل (موسم) کې په ښکار بندیز لګولای دی.

یوې مېرمنې وویل : ( د پوځیانو راتګ ته تردې بد وخت نه و.) دوی مور ته وویل چې پوځیانو یې ځنګه ددې فصل او عقایدو سپکاوی وکړ، له خبرې یې غوسه او خفګان څرګنده. (د ښکار او خوراک لپاره یې مارغان وویشتل، فصلونه یې تر پښو لاندې کړل. سیندونو کې یې د کبانو رانیولو لپاره بمونه واچول او د خلکو څاروي یې حلال کړ. دځایي ښکاریانو وسلې یې ترې واخیستې. ځای ځای یې د حاجت رفع کولو لپاره کندې وکیندلې. د سیند اوبه یې چټلې کړې. ښځې یې بې ستره کړې او ډېرانونه یې جوړ کړل. په دې ډېرانونو ماشي او مچان بنګېدل.)

یو کس وویل: ( مور دوه لارې لرلې، چې یا چوپ پاتې شوي وی او د خپل زیان د راډکولو هڅې مو کړی وی او یا مو وسلې ته لاس کړی وی. مور وویل چې د جنګ وخت لا نه دی راغلی.) دوی وویل د پوځیانو د ظلم په مقابل کې یې خلکو ته وویل چې په نیمه ګېډه خوراک خواړه وخوري. خپل صبر یې له خوارو پرهېز ونوماوه، خو زه فکر کوم ( خیریه لوږه) یې ښه نوم دی. خلکو ته سم خواړه ونه رسېدل او ناروغه شول.

د رشوت او ګواښونو خبره یې هم وکړه، ویې ویل : ( زما زوی ته انګلیسي، هسپانیې او نورې سیمه ایزې ژبې ورځي. یوه سیاحتي شرکت سره یې د لارښود او ژباړن په توګه کار کاوه. ښه معاش یې اخیسته او د تېلو شرکت ورته لس چنده معاش وړاندیز کړی و. ده هغه وړاندیز ومانه، اوس چې دده پخوانی شرکت زموږ مرستې ته راځي دا یې په ابکنو کې غندي) بیا داسې ولړزېد لکه سېږي چې ځان ته اوبه څنډي چیغه یې کړه ( اه زما زوی، هغه اوس له موږه نه دی.)

د شامان قبیلې مشر د بنکو خولۍ په سر کړې وه ویې ویل : ( ته هغه درې کسه پېژنې؟ چې د تېلو شرکت لپاره موږ خپل استازي ټاکلي وو او په هوايي پېښنه کې مړه شول. زه تفصیل ته نه ځم، خلک وايي دا کار د تېلو شرکتونو کړی و، خو دا درته وایم چې ددوی مرګ زموږ په ډله کې درز وکړ او د تېلو شرکت ددې درز ډکولو لپاره خلک رانویتسل.)

یو بل کس یو ټرون راوویست او ویې لوست، د ټرون له مخې یوه پراخه ټوټه ځمکه د درې سوه زره امریکایي ډالرو په بیه د لرګیو شرکت ته ورکړل شوې وه. د درې قبایلو مشرانو لاسلیک هم پرې شوی و.

هغه وویل : (دا لاسلیکونه جعلي دي، په دې کې یو زما ورور دی، دا زموږ د مشرانو شخصیت وژنه ده.)

دې جبر ته ګوره، دا هر څه د اکوادور په هغه سیمه کې روان وو چې د تېلو کوهیانو کېندلو اجازه هم لا نه وه ورکړل شوې، خو هغوی له ځانه په ځینو ځایونو کې کیندنې پیل کړې وې او پایله یې ځایي خلکو هم لیدلې وه. دوی د خپلو ګاونډیانو د بربادۍ عیني شاهدان وو. ددوی خبرې مې چې واورېدې فکر مې وکړ که دا هر څه په CNN او Evening news چېنلونو وښودل شي؛ نو زما د هیوادوالو غبرګون به څه وي.

دا ټولنې ژوندۍ او خبرې یې اندېښمنې وې. په رسمي غونډو سربېره نور ډېر شیان هم وشول. ډېر څه وشول ... د دوډۍ پر وخت او نورو شخصي ناستو کې ډېرو خلکو پوښتلم چې امریکا ولې عراق ته ګوابنونه کوي؟ د اکوادور د ورځپاڼو په لومړیو مخونو کې دغه موضوعات راتلل او له هغه ځای دې ځنګل ته راسبدلي وو. د امریکا چاپي رسنیو بیا بل څه ویل. دلته ورځپاڼو د بوش د شخصي نفتي شرکتونو د ځای پر ځای کېدو حوالې ورکړې وې. تر

څنګ یې د ولسمشر د معاون په کړنو هم تبصرې شوې وې. چیني هغه وخت د هالي برټن اجرایه رئیس و.

دا لیکنې هغو خلکو ته لوستل شوې وې چې ښوونځي ته نه وو تللي. هر چا ته په زړه پورې وه. زه دلته باراني ځنګلونو د هغو خلکو په منځ کې ناست وم چې شمالي امریکایانو به جاهل او وحشیان بلل، خو دې خلکو داسې پوښتنې کولې چې د امپراتورۍ په زړه مخامخ ګوزارونه وو.

د شیل له مرکزه په راوتلو وم، د لوی بند (ډېم) له څنګه تېر او د ویندیز لوړو ته په ننوتلو وم چې فکر مې وکړ، د اکوادور په دې سفر کې مې چې څه ولیدل او واورېدل او څه چې په امریکا کې اورم؛ دواړو کې ډېر توپیر دی. داسې ښکاریده لکه موږ چې له امازون قبایلو ډېر څه زده کولای شو. زموږ له ټول تعلیم او چاپي او تصویري رسنیو سره بیا هم په دې خبرو نه پوهېدو چې دوی خدای خبره له کوم ځای خبر شوي وو. دې خبرو سره زما فکر د لاتینې امریکا یو وړاندوینې ته واوښت، داسې وړاندوینې ما په ډېرو هیوادونو کې اورېدلي دي. له ځینو کلتورونو چې زه خبر یم داسې وړاندوینه کیږي چې په ۱۹۹۰ لسیزه کې موږ یوه بې ساري انتقالي پړاو ته ننوتو. د همالیا په خانقاګانو، د اندونیزیا په مراسمو، د شمالي امریکا په مرکزي سیمو، د امازون له ژورو د انډیز تر لوړواو د منځنۍ امریکا لرغونو ښارونو پورې هر ځای کې همدا ویل کېدل چې په انساني تاریخ کې دا زموږ یو ځانګړی مقام دی او موږ هر یو ددې لپاره پیدا شوي یو چې دا ماموریت پای ته ورسوو.

ددې وړاندوینو په وینا او عمل کې یو څه توپیر و، خو ټولو په بېلابېلو ډولونو همدا یوه خبره کوله چې : د نوې دورې پیل، درېیمه زریزه، د کوارئیس زمانه، د پنځم لمر پیل، د پخوانۍ جنترۍ پای او د نوې پیل. له مخالفتونو

سره بيا هم په دې کې ډېر څه مشترک دي او دا وړاندوينه ځانګړی ځای لري. ددې له مخې پخوا انساني ټولنه وېشل شوی او په دوو لارو روانه شوې ده. يوه د زړه، وجدان او روحانيت لاره اوه او بله د فکر او ماغزو لار وه. ددې وړاندوينې له مخې په ۱۴۹۰ کال کې به دا دواړه لارې يو ځای شي. بيا به پنځه سوه کاله وروسته يعنې په ۱۹۹۰ کې بيا ځلي پيدا کيږي چې دا دواړه قوتونه به بيا يو ځای کيږي او په يوه لاره به پرواز کوي. که دا دواړه له دې لارې ګټه واخلي نو يوه نوې دوره راپيل کيږي، داسې دوره چې تر ننه يې سارى نه دی ليدل شوی.

دا وړاندوينه په بېلابېلو کچو تعبير شوه. عام تعبير يې دا وه چې ځايي پوهه او ساينسي علوم او ټکنالوجي به يو بل سره مرسته وکړي. ددې وينا له مخې که د امازون خلک لومړی ځله (د زړه او احساس) خلک شي، نو څرګندونه يې اسانه کيږي؛ مثلاً که موږ پوښتنه وکړو چې دې زريزه کې به انسانيت څنګه وي او راتلونکي څو پېړی مو اراده څه ده؟نو په کار ده چې سترګې پرانيزو او د خپلوکړنو پايلې په غور وګور، يعنې د فکري خلکو (امريکا) جاج واخلو چې افغانستان، عراق او اکوادور کې يې څه وکړل. اوس بايد له خواړه خوبه راويښ شو، موږ د انساني تاريخ قوي ولس يو، موږ بايد اوس د ټلويزوني سريالونو، فوټبال او موسيقی فکر پرېږدو او له سره بايد جاج واخلو چې موږ څوک او څه يو؟ او خپل اولادونه کوم ځای ته رسوو؟ که موږ اوس هم راويښ نه شو؛ نو پايله به يې ډېره وېرونکې وي.

## پنځه دېرشم فصل

# څېرې رسوا شوې

۲۰۰۳ کال کې چې زه له اکوادوره راستون شوم، څو ورځې وروسته امریکا په عراق برید وکړ. څه باندې یوه لسیزه کې دا په عراق د امریکا دویم برید و. اقتصادي جنایتکار او ګیدړان دواړه ناکام شوي وو اوس نو پرېکړه شوې وه چې ښځې او نر شګلنو دښتو ته د وژلو لپاره روان شي. له دې بریده دا یو فکر پیدا کیږي چې د عربستان شاهي کورنۍ ته یې څه معنا درلوده. د ځینو تخمینونو له مخې عراق کې د عربستان په پرتله تېل ډېر دي او که امریکا په عراق برید وکړي؛ نو عربسان سره زموږ د ۱۹۷۰ کال تړون بې ګټې کیږي.

پانامه کې د نوریګا د مرګ په څېر په عراق کې د صدام په مرګ فورمول بدل شي. پانامه کې چې موږ خپل لاسپوڅي واک ته ورساوه؛ نو کانال مو ترې بېرته ونیو، هغه تړون ته مو هم ونه لیدل چې کارټر او طوریجو سره کړی و. عراق چې ونیسو نو اوپیک به مات کړو؟ او د نفتو په نړیوال سیاست کې به عربستان منتظر غړی پاتې شي؟ ځینو پوهانو خو ویل چې بوش افغانستان کې ولې خپل ټول قوت ونه کاراوه چې په عراق یې برید وکړ؟ آیا دې د نفتو سوداګرې کورنۍ ته خو به د نړیوالې ترهګرۍ په پرتله خپلې د تېلو زېرمې مهمې نه وې؟

خو یو بل امکان و، چې اوپیک د ځان منلو هڅه وکړي. په دې صورت کې که امریکا په عراق برید وکړی، د تېلو په شتمنۍ مست هیوادونه که د تېلو بیه لوړه او عرضه کمه کړي هم کوم زیان به ونه ویني. دا امکان له یوې بلې زاویې هم باید وکتل شي. دې قضیه کې چې کوم څه راځي هغه دا دي

چې له سترو نړیوالو مالیاتو بیرون به یې اغېز ډېر لږ محسوس شي، خو دا جغرافیایي سیاسي توازن په دننه کې ګډوډولای شي، داسې چې د کارپوریټوکراسی په هڅو رامنځته کړی نظام خاورو سره خاورې کولای شي.

حتمي شننه دا ده، نړیواله امپراتوري هڅه کوي چې ډالر د نړیوالې کرنسی په توګه قوي پاتې شي او امریکا یې د خپلې خوښې اوارتیا له مخې چاپولای شي. موږ اکوادور غوندې هیوادونو ته پور یوازې په دې خاطر ورکوو چې بېرته یې نه شي پرې کولای. که رښتیا ووایو موږ خپله نه غواړو چې دا پور بېرته خلاص شي، ځکه هغه که زموږ پوروړی وي نو زموږ د فشار کړی پرې راتنګیږي او بلاخره ترې د بدن غوښه پرې کولای شو. عامو حالاتو کې راسره د خپلې بودیجې ( فنډ) د کمي وېره وي. ځکه د بېرته نه پرې کوونکو په لیست هېڅوک ډاډه نه وي. خو زموږ حالت له معمول سره سم کله وو؟ امریکا چې کوم ډالر چاپ کوي تر شایې سره زر نشته، په اصل کې هېڅ هم نشته، ټولې دنیا په پټو سترګو زموږ په اقتصاد باور کړی او موږ دا وړتیا لرو چې کومه امپراتوري مو رامنځته کړې د هغوی وسایل، زېرمې او انرژي په خپله ګټه وکاروو. په دې بنسټ پېسې چاپ کول زموږ د بې ساري قوت راز دی. یعنې د نورو لاملونو تر څنګ یو یې دا دی چې موږ خلکو ته پورونه ورکوو او پوهېږو چې بېرته یې نشي راکولای. پر دې سربېره موږ خپله هم لوی پورونه اخیستی شو، په ۲۰۰۳ کال کې د امریکا ملي پور له شپږ تریلیونه ډالرو زیات و او د کال تر پایه ۶۰ ته د رسیدو امکان لیدل کېده، یعنې هر امریکایي به نږدې ۲۴۰۰۰ ډالره پوروړی وي. ددې پورونو ډېره برخه یې له اسیایي هیوادونو اخیستل شوې وه، په ځانګړې ډول له جاپان او چین نه چې د امریکایي خزانې سیکورټي (

تضمین لیکونه) به یې اخیستل. دا سیکوریټي یا تضمین لیکونه هغوی د وسایلو د پلور په پېسو اخیستل؛ مثلاً موټرې، کمپیوټرې، برښنایي وسایل، ټوکر او نور ... . چې په آسیا، امریکا او نورو نړیوالو بازارونو کې پلورل کېدل.[۳]

تر څو چې نړۍ ډالر معیار ګڼي؛ نو دا اضافي پورونه کارپوریټوکراسۍ ته کوم خطر نه دی خو که په بله کرنسۍ تکیه وشي او هیوادونه له امریکا خپل پور وغواړي، نو حالات بېخي بدلیږي. په دې صورت کې به د امریکا حالت ډېر ترینګلی شي.

په اوسني دور کې د داسې کرنسۍ وجود یوازې یو فکر نه دی. نړیوال اقتصادي ډګر ته یورو د ۲۰۰۲ کال د جنوري په لومړۍ نېټه راغلل او د هرې میاشت په تېرېدو یې قوت او درنښت زیاتېږي. که اوپیک غړي هیوادونه په عراق د برید یا بل لامل له امله امریکا ته سترګې برګوي؛ نو د یورو په شکل بې سارې فرصت ورسره شته دی. که یوازې اوپیک سازمان د ډالر پر ځای یورو خپل معیار وټاکي؛ نو ددې امپراتورۍ بنسټونه به هم ولړزیږي. که داسې وشي او یوازې یو یا دوه پور راوړي خپل پورونه په یورو رانه ببرته وغواړي؛ نو اغېز به یې تُند او اوږدمهالی وي.

په همدې مسایلو مې فکر کاوه، د ۲۰۰۲ کال د اپریل په اتلسمه نېټه له کوره راووتم او دفتر ته راغلم، دا دفتر مې په یوه وړوکي ګراج کې و. ما کمپیوټر روښانه کړ او د نیویارک ټایمز ویب پاڼې ته لاړم. عنوان یې حېران کړم. زه د نړیوالو مالیاتو له نوي حقیقتونو، پورونو او یورو له نړۍ راووتم او د

---

[۳] د لا ډېرو معلوماتو لپاره ولولئ:
د ډالرو مرګ، ژباړه یاد میراحمد، مومند خپرندویه ټولنه چاپ، ۲۰۱۴

خپل مسلک نړۍ ته رانښوتم. عنوان داسې وو : ( د عراق د بیا رغونې لپاره امریکا بېشټل شرکت ته لوی قرارداد ورکړی.)

لیکنه کې راغلي وو : ( د بوش ادارې نن په سان فرانسیسکو کې بېشټل شرکت ته د عراق د بیا رغونې پروژه ورکړه.) وروسته لیکوال خبرداری ورکړی و چې : ( اوس به عراقیان، نړیوال بانک او نړیوالې مالي ادارې په ګډه د عراق بیا رغولول لپاره کار کوي، د یادونې وړ ده چې په دې دواړو ادارو کې امریکا پراخه رسوخ لري.) (۱)

(پراخه رسوخ) دې کې ستر حقیقت روښانه شوی دی. ما یوه بله لیکنه راخلاصه کړه، لیکلي و : ( دا شرکت عراق او واشنګټن کې ژورې اړیکې لري.) ما یو څو تکراري کرښې پرېښودې او دې برخې ته راغلم :

( بېشټل له (نیشنل سیکوریټي اشټبلشمنټ) سره پخوانۍ اړیکه لري. ددې ادارې مشر جورج پي شلټز دی، دا ښاغلی د ریګن په دوره کې د بهرنیو چارو وزیر و او اوس ددې شرکت ارشد مشاور دی. د ریګن په اداره کې له دندې مخکې دی دلته رئیس و. همدې وخت کې کیسپر وین برګر هم ددې کمپنۍ اجرایه رئیس پاتې شوی دی، چې وروسته د دفاع وزیر شو. سږ کال بوش ددې شرکت اجرایه رئیس ریلي بي بېشټل د خپلو صادراتو کونسل ګومارلی دی.

لنډه دا، په دې لیکنو کې د عصري دور تاریخ بیان شوی و چې څنګه نړیوالې امپراتورۍ خواته پرمختګ کوي. په عراق کې د روانو چارو توضیحات سبا په ورځپاڼو کې راغلل، دا ټول د هغې روزنې پایله وه چې کلاډین ماته پنځه دېرش کاله مخکې راکړې وه. د هغو خلکو برخه هم پکې وه چې زما د ځانغوښتنې له احساساتو اغېزمن شوي وو.

کارپوريټوکراسۍ د نړۍ هر وګړی له همدې لارې خپلې کړۍ ته راونغښتی.

دا ليکنې ۲۰۰۳ کال کې پر عراق زموږ د پوځيانو د برید او په لويديځ معيار د هغه هيواد د بيارغونې په اړه وې. د ۲۰۰۳ کال د اپريل ۱۸ خبر موږ په ناڅرګند ډول بيا ۱۹۷۰ ز کال کې عربستان سره د پېسو مينځلو مسئلې ته بوتلو. (SAMA Saudi Arabian Money Lauandering Affairs/ Saudi Arabian monetary Agency) ادارې او له دې راوتليو پروژو بيا يوځه نظريات رامنځته کړل. ددې نظرياتو له مخې په غير شفاف ډول امريکايي انجينرۍ، ساختماني او نفتي صنعت په دې صحرايي هيواد په رغونه کې رول ولوباوه. ددې يوې څپونې له امله SAMA د نفتو په نړيوال سيستم او جغرافيايي سياست کې نوي قواعد وضع کړل. تر څنګ يې په همدې تناظر کې سعود کورنۍ سره يو تړون وشو چې له مخې به يې ددې کورنۍ امتياز او لوړاوی په خپل ځای پاتې وي؛ په دې شرط چې لوبه به زموږ د قوانينو په رڼا کې کوي.

ددې ليکنو په لوستو مې فکر کاوه، چې نړۍ کې به زما په څېر څومره خلک وي؟ هغه خلک چې پوهېږي چې صدام دا د عربانو لوبه کړې وای؛ نو نن به يې هم حکومت کاوه. د توغنديو او کيمياوي موادو فابريکې به يې فعالې وای؛ بلکې موږ به ورته خپله جوړول او زموږ خلکو به يې د کيفيت د لوړوالي او ډېر پاېښت لپاره کار کاوه، دې ته په کتو خو دا سودا ډېره ګټوره وه.

تراوسه عامو رسنيو ډېر احتياط کاوه چې دا موضوعات څېړه نه کړي، خو اوس دا کيسه د رسنيو سينګار ګرځېدلې وه. په دې کيسه کې يو لوی حقيقت په ډېره نرمه توګه رانغاړل شوی و خو اصل کيسه اوس پيل کېده.

فکر مې وکړ چې نیویارک ټایمز به خپلسري کړي وي، د CNN ویب پاڼې ته لاړم، هلته لیکلي وو : ( بېشټل د عراق پروژه واخیسته.) د سي ان ان کیسه نیویارک ټایمز ته ورته وه، خو یو څه مواد پکې زیات وو:

( بېلابېلو وختونو کې څو نورو شرکتونو هم ددې کار لپاره سیالي کوله. په دې کې ځینې د لومړنیو بولیو او ګډ کار کولو شرکتونه هم وو، چې KBR له هغې جملې یو و. معاون ولسمشر ډېک چیني یو وخت ددې شرکت اجرایه رئیس پاتې شوی و.... هالي برټن لا دمخه د اوو بیلیونو ډالرو قرارداد اخیستی و، چې تر دوو کالو یې دوام کاوه. په دې کې د عراق د تېلو د زیربناوو عاجله بیا رغونه هم شامله وه.(۴)

داسې ښکاري چې نړیوالې امپراتورۍ خواته د حرکت کیسه نوره رسوا شوې ده. ډېر جزیات نشته خو حقیقت دا دی چې دا کیسه له ډېرو مکرونو، ټګیو، ظلمونو، پورونو، استمثار او نورو بدیو ډکه ده، دا د خلکو په زړونو، ذهنونو، ارواوو، وسایلو او سرچینو د واکمنېدو کیسه وه. دې لیکنو کې دا یادونه نه وه شوې چې په عراق کې د ۲۰۰۳ز کال کیسه کومه نوې خبره نه؛ بلکې د یوې شرمبدلې کیسې ادامه وه. لیکنو دا راز هم نه و افشاء کړی چې دا کیسي ګنې پخوانۍ دي، خو یوازې حجم یې تر وېرونکې حده لوړ شوی دی. یو لامل خو یې دا دی چې نړیوالتوب یې ارزښت لوړ کوی دی او بله دا ده چې په دې پروژو ډېر ژور او په ځیرکتیا کار کیږي. پرده که څه هم له ټولو رازونو نه ده پورته شوې خو دا ښه ده چې ځینې رازونه خلکو ته څرګند شول.

دې کیسې لکه چې زه تر ټولو ډېر په نښه کړی وم. ماته یې د خپلې کیسې تر څنګ دا هم راياد کړل چې څومره کلونه مې له خلکو پټه ساتله. له یوې مودې مې فکر کاوه چې خپل جرمونه باید ومنم، خو زړه نا زړه وم. ماضي ته

چې ګورم نو فکر کوم چې په خپل شخصيت شک او د جرم احساس مې له پخوا درلود. پيل يې د کلاډين له اپارتمانه شوی و او اندونيزيا ته له تلو مخکې مې دا احساس مل و. که رښتيا ووايم دا څو کله زه همدې احساس خوړلم.

زه پوهېدم ، که دې احساس، شکونو، درد او د جرم احساس نه وای خوړولای؛ نو زه له د سيستمه نه شوم راوتلی او د نورو په څېر به پکې بندي وی. دا خو ښېخي ممکنه نه وه چې په ورجن جزيره کې مې د MAIN پرېښودلو پرېکړه کړې وی. دې سره مې هم د نن کار سبا ته پرېښوده او همداسې زړه نا زړه کېدم.

دې عنوانونو ښودله چې د لويو ادارو، نړيوالو بانکونو او حکومتونو تر منځ جوړجاړی روان دی خو دا هر څه داسې وو لکه په MAIN کې چې زما CV په دروغو جوړه شوې وه. لوی شرکتونه به ميلياردونه يوازې په دې خاطر راټول کړي چې هيواد زموږ په جوړ کړي قالب کې واچوي. دا بدلون به هغو خلکو کې راځي چې په دې قالب کې د راتلو هېڅ تمه به نه لري. په ټولنه کې د لوړې طبقې د ګوتو په شمېر خلک به له خپلو رسمي موقفه ناوړه ګټه واخلي او په دې فساد کې به شريک شي.

پورته څرګند شوی حقيقت ډېر کوچنی او ظاهراً ساده ښکاري خو پابله ترې دا رواځي، که موږ غواړو چې د سيستم نيمګړتياوې ختمې کړو؛ نو يوازې مسئول خلک بايد ترې وباسو. دا فکر په توطيه کې ښه ځای په ځای کيږي او موږ ته اسانه جواز راکوي، چې تلويزون روښان کړو، دا هر څه هېر کړو او د خپلې خوښې خپروني ووينو. د تاريخ نيمګړي علم موږ ته همدا راښودلي چې (دی) به هر څه سم کړی. د هيواد کښتۍ لامبو وهلی

شي او زړه خپل اصل خواته مخه کړي. نبايي موږ تر راتلونکو ټاکنو صبر وکړو، خو بلاخره به هر څه سم شي.
د معاصرې امپراتورۍ يا کارپوريټوکراسۍ کيسه په ګډه ديېوزلو خلکو استثمار دی. د کار بنه يې ځانغوښتونکې ده. دوی د نورو د زړرمو په لوټلو بوخت دي او يوه ورځ به يې همدا خپل کار ډوبوي. په رښتيو کې ننني ځرګند شوي حقايق کارپوريټوکراسۍ ته هېڅ هم نه دي او نه يې په کيسه کې دي. ددې مخاطبين (موږ) او (موږ ته) دي. همدا لامل دی چې موږ په رښتيا اورېدو کې دومره تکليف وينو. موږ په دې دروغجن فکر باور لرو چې انساني ټولنې پېړۍ مزل کړی او نن يې يو مثالي اقتصادي نظام رامنځته کړی دی. دا حقيقت نه منو، چې موږ په يوه سراب پسې منډې وهو او له بده مرغه اسماني صحيفه مو ګڼلې ده. موږ هسې په دې باور يو چې هره اقتصادي وده د انسان په ګټه ده او څومره چې ډېره وي هومره به ګټه هم پراخه وي، پر دې سربېره نورو ته هم دا ډاډ ورکوو چې ددې اند (تصور) منطقي پايله ښځي سمه او په اخلاقوبرابره ده.
کوم خلک چې د اقتصادي پرمختګ بټۍ (تنور) توده ساتلای شي هغوی بايد تر نورو لوړ موقف او امتيازات ولري، برعکس کوم خلک چې په ليرې څنډو کې پيدا کيږي، د هغوی پيدابښت د استثمار لپاره دی.
دې فکر او جبري پايلې يې هر ډول غلچکي بريدونو (قزاقۍ) ته لاره هواروله. همدا په افغانستان، عراق، ايران، پانامې، کولمبيا او بې شمېره نورو سيمو کې د خلکو د وژلو او شتمنيو لوټلو اجازه شوه. اقتصادي جنايتکار، ګيدړان او پوځيان تر هغه اخته وي چې له کارونو يې اقتصادي وده ښکاره شي. دوی هغه کارونه کوي چې اقتصادي وده ترې څرګنديږي. اقتصادي وړاندوينه، د ارقامو شننه او سروې هغه علوم دي چې، که تاسو يو

هیواد بمبار کړئ، وران یې کړئ او بېرته یې رغوئ، نو دا علوم به درته ښيي چې اقتصادي وده یې اسمان سره خبرې کوي.

اصل کې موږ دروغ پالو لګیا یو. په MAIN کې زما د سوانحو غونډې موږ د دروغو یوه وربښمینه پرده جوړه کړې تر لاندې مو د سرطان ناروغي پټه کړې. که زموږ د ورکړل شویو ارقامو ایکسرې وویستل شي، نو زموږ بدن کې خپرېدونکی سرطان ترې اسانه معلومیدای شي. له دې دا حقیقت هم ښکارېږي چې د تاریخ تر ټولو قوي او شتمنه امپراتورۍ کې د مخدره توکو، طلاق، تښتوونو، جنسي تېریو او وژنو د پېښو کچه څومره لوړه ده. له بده مرغه سرطان ورځ تر بلې خپلې ریښې لاپسې ژوروي او موږ ټول یې په خپلو زړونو کې درد احساسوو. موږ د بدلون چیغې وهو خپل فریاد ستوني کې وژنو، زموږ فریاد او سلګۍ به څوک واوري؟

دا ډېره اسانه ده چې یو څوک ټول تور په توطیې پورې کړي، خو موږ داسې نه شو کولای. د امپراتورۍ ټوله تکیه د لویو بانکونو، شرکتونو او حکومتونو په رسوخ ده. ددې ټولو له جوړجاړي کارپوریټوکراسي رامنځته کیږي خو زموږ د سپکاوي لامل توطیې نه دي. او دا کارپوریټوکراسي څه شی دی؟ دا خپله موږ یو. ځکه یې زیاتره وخت په مخ کې مات یو. زموږ کار دا دی چې په تیاره کې د همدې توطیې او دسیسو طراحانو ته خدمت وکړو. موږ دا نه شو ننګولای، ځکه له موږ زیاتره په بانک، دولتي ادارو او شرکتونو کې کار کوي یا په یوه نه یوه ډول ددوی په وسایلو او خدمتونو تکیه یو. دا نو څنګه ممکنه ده چې کوم بادار موږ ته په خپلو لاسو مړی راکوي موږ یې ګوتې وچیچوو؟

کمپیوټر ته مې کتل، په دې حالت مې فکر کاوه او بې شمېره پوښتنې راته ولاړې وې. ته یا بل څوک د داسې نظام په ضد څنګه ودریدی شې چې په

ظاهره خلکو ته کور، کالي، خواړه، برېښنا، روغتیا او نورې اسانتیاوې ورکوي؟ ستا پوهېدل څه توپیر کوی؟ څه ته یې پوه چې دا نړۍ د یوه داسې سیستم حاصل دی چې د هره ورځ پکې څلورویشت زره خلک له لوږې مري او زرگونه خلک له هغو پالیسیو کرکه کوي چې زموږ منتخب استازي یې جوړوي. تا کې به دومره قوت له کومه راشي چې له خپل قطاره ووځې او پر وړاندې یې ودرېږې؟ بیا د هغو نظریاتو پر ضد د مبارزې دعوت پیل کړې چې ته او ستا د گاونډ خلک یې اسماني صحیفه گڼي؟ ستا په زړه کې دا شک هم هېڅ توپیر نه کوي، چې که دا سیستم لگیا دی په خپله ځان ته د خپلې بربادۍ وسایل برابروي. زه راولاړ شوم او په سترو قدمونو خپل کور خواته روان شوم چې یوه پیاله قهوه پخه کړم.

لنډ چکر مې وواهه، خپل کور ته ننوتم، د لیکونو بکس سره لیک پروت و. د نیویارک ټایمز په حواله پکې د عراق - بېښتېل لیکنه رانقل شوې وه. د ورځپاڼې له نوم سره مې نېټې ته وکتل (۱۸ اپریل) نیوانگلینډ کې خو دا مشهوره نېټه ده. زما انقلابي او جنگ خوښو والدینو او د لانیگ فیلو نظم دا نېټه زما په ذهن کې پخه کړې وه:

( واورئ بچو ! او زه پوهېږم چې تاسو به یې حتمن په غور اورئ، د پال ریوېرې د هغه سفر په اړه چې د ۵۷ کال د اپریل په اتلسمه یې نیمه شپه پیل کړی و، اوس به په سختۍ داسې کس پیدا شي چې هغه ورځ او نېټه یې به یاد وي.)

په دې کال اتفاقاً گډ فراي ډی ( له Easter دمخه لومړۍ جمعه، چې عیسویان وایي په دې ورځ عیسی علیه سلام په دار شوی دی.) د پال ریوېرې د سفر کلیزه هم راغله.په پوسټ مې چې دا نېټه ولیده، نو ذهن ته مې هغه صحنه راغله چې د استعمار نیو انگلینډ په تیاره کوڅو کې پر آس

سپور يو کس ګرندی روان دی، خپله خولی په هوا کې خوځوي او چيغې وهي ( انګريزان را روان دي) بيا به ريوېري د سر په خطر دا پيغام هر ځای ته رسولای وي او وفادارو امريکايانو به ورته لبيک ويلای وي، دې سره به يې د امپراتوری مخه ډب کړې وي.

زه حيران وم چې دوی څه شي متحرک کړل؟ د استعماري دور هغه امريکايان څنګه له قطاره راووتل؟ له دوی زياتره يې خوښ وو. وجه څه وه چې دوی خپل کاروبار په خطر کې واچاوه؟ د هغه لاس د چيچلو جرأت يې ورکړ چې ډوډۍ يې ورکوله او ځانونه يې په خطر کې واچول؟ په دوی کې به هر شخص بنايي ځانګړي عوامل هم لرل خو يو داسې قوت هم حتمي و چې دوی يې سره يو کړل، کومه مرسته يا انرژي، يا سپرغۍ چې دتاريخ په دې ځانګړې شببه کې يې په دې خلکو کې اور بل کړ.

بيا زه په حقيقت پوه شوم، يعنې هغه الفاظ چې په مرسته يې دا حقيقت بيانېدی شو. که د انګليس امپراتوری کيسې ته ځير شو، نو ځرګنده ده چې ددوی ځانخوښې او بربادونکې سوداګريزي پاليسۍ په خلکو کې اور او قوت پيدا کړ. ټام پين او توماس جيفيرسن غوندې خلکو له پټو موخو د او د سوداګرۍ په نوم له لوټه پرده پورته کړه او د خلکو ذهن يې روښانه کړ. پوښتنې چې وشوې هغه حقايق په راڅرګندېدو شول چې د تګۍ جرړې يې وخوځولې. دوی د پردې تر شا اصليت راڅرګند کړ او تل ته يې ورسېدل، پوه شول چې انګليسانو ورسره څنګه تګي وکړه او دوی يې خپل غلامان کړل.

ويې ليدل چې انګليس بادارانو يو نظام رامنځته کړ او په خلکو يې يو دروغ ومنل. کوم دروغ؟ دا چې انسان لپاره تر دې ښه نظام نشته، دنيا لپاره د خوښې او هوساينې لار دغه ده چې خپل وسايل او سرچينې د انګليسي تاج

پر مخ وکاروي او دا چې د خلکو د ښه والي لپاره د انګلیسي استعمار رامنځته کړې پالیسې په ګټه او انسان پاله دي. برعکس حقیقت دا و چې دې نظام کې ولس په داو شوی او ګټه یې یوازې د ګوتو شمېر کسانو ته رسېدله. دا دروغ او له امله یې رامنځته شوی استثمار تر کلونو روان و او پراختیا یې موندله. بیا یو څو سرتېرو فیلسوفانو، سوداګرو، بزګرو، د پولې اوسېدونکو، لیکوالو او ویناوالو حقیقت راڅرګند او څپور کړ.

همدا توري وو، ما د تورو په قوت فکر کاوه، یوه بله پیاله قهوه مې وڅښله، دفتر ته ستون شوم او کمپیوټر ته کېناستم.

د CNN ویب پاڼه مې بنده کړه او په کومه دوسیه مې چې تېره شپه کار کاوه، مخې ته مې کېښوده، وروستی پاراګراف داسې وو:

( زما دا کیسه باید ولس ته ورسیږي. موږ له بحراني حالته تېرېږو، خو مخکې ډېر فرصتونه هم شته. د اقتصادي جنایتکار دا کیسه تاسو ته وایي چې موږ نن په کوم حالت کې یو، دلته څنګه را ورسېدو؟ او له کوم سخت بحران سره چې مخ یو، دې کې څنګه ښکېل شو؟ ددې حقایقو بربنډول ددې لپاره هم اړین دی چې که موږ د خپل تېرو تېروتنو نه خبر شو؛نو له راتلونکو فرصتونو ګټه اخیستی شو ......... او بله مهمه خبره ده، دا تاریخ کې لومړی ځل دی چې یو ولس هغه وړتیا، وسایل او سرچینې لري چې دا هر څه بدلولای شي. دا هغه ولس دی چې زه پکې زېږېدلی یم، بیا په کې اقتصادي جنایتکار شوم او نوم یې دی ( د امریکا متحده ایالات.)

دا ځل چپ نشم پاتې کېدای. زما د ژوند پېښې او پکې زما خپله ټاکنه او پرېکړه هغه څه دي چې زه یې دې ځای ته راوستی یم، اوس باید په هر حالت کې وړاندې لاړ شم.

په ذهن کې مې يو ځل بيا هغه نقشه راغله چې يو سړی په آس سپور دی، تياره کوڅو کې ګرځي او خلک له خطره خبروي. هغه پوهېده چې له توماس پين مخکې هم ليکوالو ليکل کول، خلکو يې ليکنې لوستي او په خپلو ناستو کې يې پرې بحثونه هم کړي دي. پين د انګليسي امپراتورۍ له ظالمونو پرده پورته کړه. جيفرسن اعلان وکړ چې زموږ ولس د ژوند، خپلواکۍ او خوښۍ ترلاسه کولو ته وقف دی. ريوېري چې په آس سپور و او کوڅو کې ګرځېده په دې ښه پوهېده چې په متسعمره سيمه کې توري (الفاظ) خلکو ته قوت ورکولای شي او په حقيقت کې د يوه ښه ژوند ترلاسه کولو لپاره راپاڅېدی شي.

توري (الفاظ) رښتيا هم ستر قوت دی.

ما قوي هوډ وکړ چې د جوړجاړي پاليسي به پرېږدم او دا کار به سر ته رسوم، دا کار مې کلونه مخکې پيل کړی او بيا نيمګړی پرېښي و. اوس به زه رښتيا وايم، ځکه زه خپل جرمونه منم، زه هغه توري لرم چې دا موخه ترې ترلاسه کيږي، همدا توري په دې کتاب کې کاروم.

**حوالې :**


۱- "A Nation at War: Reconstuction. U.S. Gives Bechtel a major rebuilding in Iraq", Newyork times, April ۱۸ ۲۰۰۳.

۲- "A Nation at War: The Contractor Company hads ties in Washington, and Iraq, " Newyork times, April ۱۸, ۲۰۰۳.

## شپږدېرشم فصل

# څه باید وشي؟

درنو لوستونکو ! اوس موږ د کتاب پای ته رسېږو او حقیقت خو دا دی چې همدا یې پیل هم دی. تاسو به حېران یئ چې راتلونکی ګام باید څه وي، د کارپوریټوکراسۍ مخه باید څنګه ډب شي؟ نړیوالې امپراتورۍ ته د روان لښکر مخه څنګه ونیول شي؟ ددې کتاب په بندولو به تاسو په نړۍ د برید لپاره چمتو اوسئ.

ستاسو نظریات پکار دی او هغه زه درکولای شو.

ما چې لږ مخکې کومه خبره ختمه کړه په هغه کې د بیشتل او هالي برټن شرکتونو د عراقي پروژو خبره شوې وه، دا خبر اوس زوړ شوی دی، تاسو یې چې تر څه وخته لولئ تر هغه وخته خو به هسې هم زوړ شوی وي. ددې لیکنو ارزښت یې وخت نه دی. ددې لیکنو مفهوم او معنا تر وخت زیاته ده. زه په دې هیله یم چې د تېرې برخې خبرونه به ستاسو نظر بدل کړي. اصل ارزښت دا دی چې تاسو شیان له کومې زاویې اورئ. دې سره به په دې پوه شئ چې د لیکنو مطلب څه دی؟ تر څنګ به یې په دې هم پوه شوه چې په رسنیو کې د راپورونو تل ته څنګه ښکته شئ؟

زیاتره شیان چې څنګه ښکاري هغسې نه وي. تاسو پوهېږئ چې MBC د جنرل الکترانیک ملکیت دی او د ABC خاوند ډزني دی، د CBS خاوند ویاکام دی او CNN د دوو سترکو شرکتونو AOL او ټایمز وارنر د شراکت یوه لویه برخه ده؟ زموږ زیاتره رسنۍ د سترو شرکتونو ملیکتونه دي او د هماغو په جوړجاړي چلیږي. د یادونې وړ ده چې ټولې رسنۍ د کارپوریټوکراسۍ یوه برخه ده. زموږ په اطلاعاتي سیستم واکمن خلک خپل موقف ښه

پېژني. په دوی تېنګار کيږي چې په ميراث کې ورته پاتې شوي سيستم ته بايد دوام ورکړي، قوي يې کړي او نور هم بايد پراخه شي. دوی په دې کار کې ډېر مستعد دي او که مخالفت يې وشي ډېر سخت زړي ثابتيدای شي. اوس ټول مسئوليت ستاسو دی چې د پردې تر شا حقيقت باندې پوه شئ او ښکاره يې کړئ، خپلې کورنۍ او ملګرو ته يې ورسوئ او څلور کونجه دنيا ته يې رسواء کړئ.

په عملي توګه، تاسو بايد يو لړليک جوړ کړئ؛ مثلاً دا چې د تېلو مصرف کم کړئ. په عراق له بريده مخکې ۱۹۹۰ کال کې موږ اته ميليونه بېرله تېل واردول خو تر دويم بريد (۲۰۰۳) پورې يې حجم له پنځوس سلنه زيات يعنې دولس ميليونه بېرلو ته رسيدلی دی. (۱) که کله مو زړه غواړي چې بازار ته لاړ شئ، ددې پر ځای کتاب ولولئ، ورزش وکړئ يا عبادت کې بوخت شئ. د کور، کاليو، دفتر او ژوند توکيو حجم راکم کړئ. د ازادې سوداګرۍ تړونونو او شرکتونو پر ضد احتجاج وکړئ ، دوی ولس استثماروي او چاپېريال له منځه وړي.

زه دا ويلای شم چې په اوسني نظام کې د هيلو ځرکونه شته. د بانکونو، شرکتونو او حکومتونو کارکوونکي فطرتاً بد نه دي او نه حتمن د همدوی له راتولیدو کارپوريتوکراسي جوړيږي. زه په دې اړه خبرې کول شم چې موږ ته راپېښې ستونزې د فاسدې (ناوړه) ادارې د کړنو پايله نه ده. د فساد اصلي لامل دا دی چې د اقتصادي ودې په اړه زموږ اند په ناسمو نظرياتو ولاړ دی. ستونزه په ادارو کې نه ده، ستونزه زموږ په هغو فکر کې ده چې د ادارو او ددوی د کړنو په اړه يې لرو. ددوی د مديرانو د ونډې په اړه هم زموږ ذهن روښانه نه دی. مثبت اړخ يې دا دی چې د نړيوالو اړيکو اغېزناک سيستم او شبکې د ودې او انسان دوسته بدلونونو راوړلو لپاره کارول کيږي.

تاسو لږ فکر وکړئ هغه به کومه شببه وي چې نایک، میکډونلډ او کوکا کولا امتیازي نښان لرونکې شرکتونه وګورئ او د داسې شرکتونو ګومان پرې وکړئ چې اصلي موخه یې بېوزله خلکو ته په ښه چاپېریال کې خواړه او کالي ورکول وي. دا خبره دومره ناممکنه نه ده، انسان سپوږمۍ ته وختاه، د شوروي اتحاد مات شو او داسې وسیله رامنځته شوه چې همدا شرکتونه یې په مرسته د نړۍ هر ګوټ ته ورسېدل،آیا بېوزلو ته خواړه ورکول دومره ناشونی کار دی؟ د زده کړو په اړه زموږ نظر کې انقلابي بدلون پکار دی. موږ دې په خپلو شته وړتیاوو باوري شو. بچي سره دې د فکر په لرلو کې مرسته وکړو. دومره زغم دې ولري چې پوښتنې وکړي او عمل ته چمتو وي. تاسو بېلګه کېدای شئ. تاسو ښوونکی هم شئ او زده کړې هم کوئ. تاسو که یوه ښه بېلګه شئ په ځان راتاو خلک مو تشویقولای شئ. زه درته په څو ګامونو پورته کولو کې لارښوونه کولای شم، تاسو په هغو ادارو اغېز ښندلای شئ چې هره ورځ ورسره مخ کیږئ. که فرصت په لاس درغی خپل نظریات بې له کومې اندېښنې ووایئ. اړوندو خلکو سره په لیک او برېښنالیک اړیکه ونیسئ. اهل نظرو خلکو ته زنګ ووهئ او خپله اندېښنه ورسره شریکه کړئ. د ښوونځي ادارې او ویاندویې لپاره مناسب خلک غوره کړئ. پېر او پلور په غوره او مینې وکړئ. ۱۱۹۰ کال کې راته شوار قبایلو ویل نړۍ هغسې ده څنګه چې ته فکر کوې. تاسو موږ ته د چټل چاپېریال، ګڼو لویو لارو او ښارونو په ځای د خپل منځي درناوي، مساوات، خواخوږۍ او مسئول ټولنیز چلند فکر هم کولای شئ. دا خو زموږ له وسه ده چې ځان بدل کړو او بل قالب کې یې واچوو.

# پوښتنې او ځوابونه

د ابلاغ په ټولو وسایلو ( برېښنالیک، لیکونه، ناستې ...) کې مانه ځینې ځورونکې پوښتنې وشوې. زه پوهېږم چې د زیاتره لوستونکو په ذهن کې به هم داسې پوښتنې راپیدا کیږي؛ نو د زه د بېلګې په توګه ځینې هغه پوښتنې رانقل کوم چې خلکو کړي او ما ځواب کړي دي.

**پوښتنه :** ته تراوسه ژوندی یې؟ هېڅ اندېښنه نه لرې چې کوم ګیدړ به دې ووژني؟

**ځواب :** دا ځواب په ځیر واوره. دې کتاب کې بغاوت ته د تبلیغ یوه خبره هم نشته. زه وفادار وګړی یم. پلارنیکه مې په لویو جګړو کې برخه اخیستې، د خپلواکۍ جګړې ته هم تللي. ما دا کتاب په دې باور لیکلی چې موږ یو ستر ولس یو او د کرکجنې امپراتورۍ پر ځای د ښېګنې ډېر کارونه کولای شو. زه په دې هیله یم چې له دې لارې به موږ د خپلې او هغې نړۍ لپاره د اصلاح زغم زیات کړو، چې اولادونو ته مو په میراث کې پاتې کیږي. آیا ددې لاملونو پر بنسټ کوم ګیدړ ما ځارلای شي؟ که تاسو داسې فکر کوئ نو ستاسو په اوږو هم یو مسئولیت کېښودل شو، تاسو یو ګام پورته کړئ، ماته یو څو غوسه ناک لیکونه راغلي دي، خو زه هڅه کوم دګیدړانو له انتقامي چلنده ځان بې پروا وښییم. زه یوازې دومره پوهېږم چې خپلې لور او نړۍ کې ددې خویندو او ورونو ته د یوې ښایسته نړۍ رامنځته کولو هڅو کې اخته یم. ځینې وخت راته ویل کیږي چې د انتقامي کړنو له وېرې غلی شم، خو له دې وېرې د هغه اندېښنې وېرې لویه ده چې موږ به ګنې یوه ښکلې نړۍ رامنځته نه کړای شو. زه پوهېږم چې ګیدړان ډېر

هوښيار دی، پوهېږي چې دا کتاب چاپ او خپور شوی، اوس که دوی ما ووژني ددې کتاب سلګونه زرې نورې نسخې به وپلورل شي.
**پوښتنه:** ايا ځينې نور اقتصادي جنايتکار هم راڅرګند شوي؟
**ځواب:** هو! ددې کتاب له چاپ وروسته راسره ډېرو اقتصاد جنايتکارو او ګيدړانو اړيکې ونيوې. دوی راته په منځني ختيځ، لاتيني امريکا او افريقا کې د پېښو په اړه خپلې بې سارې کيسې وکړې. زياتره يې اوس هم همدا کار کوي. بڼې يې ډېرې دي؛ مثلاً ځينې يې مستقيماً خدمت کوي، ځينو ته بيا د تقاعد، بيمې او مشاورت زنځيرونه ور اچول کيږي. دوی کې يو هم خپل نوم څرګندول نه غواړي خو يوداسې شته چې غواړي نوم يې په دې کتاب کې راشي.
**پوښتنه:** MAIN کې د خپلو پخوانيو همکارانو له لورې کوم غبرګون سره مخ شوې؟
**ځواب:** يو څو سره يې اړيکې لرم، زياتره يې زما مامورين يا داسې خلک دي چې په ۹ او ۲۳ برخو کې يې يادونه شوې ده. دوی زموږ په اقتصاد جنايت نه وو خبر. ماته يې وويل: ستا له کيسې لوستو وروسته MAIN کې په هغو خبرو ښه پوه شو چې مخکې راته عجيبې او نه توجيه کې کېدونکې ښکارېدې. ما چې په کتاب کې د کومو يادونه کړې هغوی داسې پوستونو باندې کار کاوه چې دننني کيسې نه خبر وو اوس زما له تمه سرې سم ځينې ژورناليستان ورغلي، پوښتنې يې ترې کړي خو هغوی ورسره خبرې نه دي کړي. په دوی کې يوازينی استثناء انيار ګريو دی، ده زه په MAIN کې ګومارلی وم. دی وروسته د تکسن بربښنا او انرژۍ شرکت رئيس شو او اوس تقاعد شوی دی. څه وخت مخکې يې تکسن سيټزين سره په مرکه کې ويلي :

( کیسه ربښتیا ده، د جان پرکنز په کتاب کې ویل شوي چې په دې ټولو هیوادونو د یوې دسیسې په مرسته مُنګل خښه شوې او ښکیل شوي دي. په دوی کې زیاتره هیوادونه اوس هم له دې جاله نه دي خلاص شوي او پورونه یې نه شي پرې کولای.)

دا یې هم ویلي چې په دې موضوع خپله هم د یوه کتاب لیکلو فکر کوي، ځینو خبریالانو راته وویل چې وروسته یې په ځینو مرکو کې بیا ددې برعکس خبرې کړې دي. دې سره پوښتنه پیدا کیږي چې د انیار مرکې خپرې شوې؛ نو هغه څه شی شو؟

**پوښتنه:** د نورو لوړپوړوکو چارواکو چلند څنګه دی؟ هغوی هم د اقتصاد جنایتونو په اړه خبرې کوي؟

**ځواب:** هو ما چې په خپل کتاب کې کوم موضوعات راخیستي نورو خلکو هم پرې لیکنې کړې. زما د کتاب ځینې لوی موضوعات نورو سرچینو هم تصدیق کړې دي. د طوریجو له وژنې تر د سعودي عربستان د پیسو مینځلو پروسه ... دا ټول پکې دي. توپیر دا دی چې نور لیکوال هغه چارواکي وو چې د خپلو ادارو مشري یې کوله. دوی د عنوانونو عملي او نظري تجزیه کړې ده او زه خپله د میدان جنګیالی وم. زمالیکنې د یوه عینې شاهد کیسه ده، له ۹/۱۱ نه وروسته چې د کومو چارواکو اعترافونه چاپ شوي یو څو بېلګې ترې را اخلم.

- جوزوف ستیګلیتیز Joseph Stiglitz د نړیوال بانک پخوانی ستر اقتصاد پوه ، په اقتصاد کې یې نوبل جایزه ګټلې دی وایي :

( معاصر نړیوالتوب چې څنګه ښودل کیږي، په اصل کې د پخواني ولسي اشراف د امریت پر ځای د نړیوالو مالي ادارو امریت دی. ددې د پلانونو عملي ښودلو لپاره اقتصادي وړاندوینې ښکته پورته کیږي. د

GDP د ودې وړاندیونه په ارقامو او علمي ماډل نه کیږي. تر دې چې کوم خلک په اقتصاد ښه پوهیږي د هغوی هم تر د ښو تخمینونو هومره نه وي. دا یوازې ارقام دی چې د نړیوال مالیاتي فنډ په پروګرام کې د خبرو اترو په مرسته ټاکل کیږي. (۱)

- جیمز هنري، د میکنزی اینډ کمپني پخوانی اقتصاد پوه او د ای بي ایم لوټس معاون وایي:

( د اقتصادي پرمختګ سترو پروژو ته ۱۹۷۰ کلیزه یوه بېلګه وه. نړیوال بانک، بین الامرایکایي پرمختیایي بانک، اسیایي پرمختیایي بانک او USAID کارکوونک په ټوله نړۍ کې خپاره وو، دوی د لویو پروژو لپاره پورونه په جېب کې ګرځول.

دوی د پرمختیایي پروژو په صفتونو کې ښه ماهره وو. ۱۹۹۰ پورې د مخ پروده هیوادونو بهرني پورونه له ۱،۳ ټریلیونه ډالرو اوښتي وو. ۲۰۰۰ کال کې د امریکا EXIM د نویو بهرني ترلاسه شوي پورونو او تضمین لیکونو ۷،۷ بیلیونه ډالر یوازې د سیاسي رسوخ لرونکو شرکتونو ته ورکړل. په دې کې اینرن، هالي برټن، جی ای، بوینګ بیشټل، یونایټیډ ټکنالوجیز، شلمبرجر او ریتهیان شامل وو. (۲)

- جیفیري ډی ساش، د کولمبیا پوهنتون د ارت انسټیټوټ مشر او د کوفي څانګړی مشاور و، دی لیکي :

(هر کال له اته سوه زرو زیات کسان د بیوزلۍ له امله مري... سږ کال چې امریکا په پوځ ۴۵۰ ډالره لګوي په دې امن نه راځي. د بیوزله خلکو د ژوند ښه کولو لپاره دوی ددې لګښت دریمه برخه یعنې ۱۵۰ بیلیونه ډالره ولګوي. ددې له امله ټولته بد امنه کیږي او د اندېښنو، ټاوتریخوالي او ترهګریزو فعالیتونو په مرکزونو اوړي.) (۳)

**پوښتنه:** ستا په کتاب کې د کلنټن اداره نه ده یاده شوې؟

**ځواب:** په ۱۹۹۰ لسیزه کې ما یوه غیر انتفاعي اداره چلوله، ما به د خلکو ډلې امازون ته لېږلې. دې کار لپاره یې د مشاور په حیث معاش راکاوه. دا کار مې د ۱۹۸۰ لسیزې له هغه بدل و. هغه وخت زه د انرژۍ د یو شرکت مشر وم او پوهیدم چې لومړی د بوش او بیا جورج ډبلیو د تېلو په ګټه کې څه کېدل. ما کلنټن سره کار نه درلود. خو په ډېر شوق مې لیدل چې په پخوانیو دوو دورو کې کارپوریټوکراسي ده او هیلري پسې څنګه منډې وهي. د کارپوریټوکراسۍ اقدامات غالباً د خبردارۍ اخطارونه وو. د کلنټن ډېر هغه کارونه ودرول شول چې ژمنه یې کړې وه. بیا خدای خبر کلنټن څه وکړل چې مونیکا یې د خلکو مخې ته راوړله. خو دا چې زه له ټولې کیسې بهر وم نو دننني معلومات راسره نه وو. د نورو غونډې ما هم یوازې اندونه کولای شول. د کلنټن په اړه نه د جرم اعتراف لرم نه نورو ته څه ویل.

**پوښتنه:** داسې اشارې کیږي چې د درېیمې نړۍ پوروونه به وبښل شي، آیا په دې معنا یې ګڼلای شو چې اقتصادي جنایتکار ضعیفه شول؟

**ځواب:** له بده مرغه باید ووایم چې حقیقت ددې برعکس دی. د اقتصادي جنایتکارو ونډه لا قوي شوې، لا ډېره پېچلې شوې او په شدت پر کار کیږي چې څوک حقایقو ته ونه رسیږي. که دا پوروونه وبښل شي نو زه یې ملاتړ کوم. دا پوروونه د هغه هیوادونو د ولسونو له خوښې پرته اخیستل شوي. موخه یې د کارپوریټوکراسۍ او د درېیمې نړۍ څو شتمنې لا شتمني وه. په دې پوه شئ چې دا هر څه د بښلو لپاره نه کیږي. ۸۹ هیوادونه ( امریکا، انګلستان، کاناډا، فرانسه، المان، ایټالیا، جاپان او روسیه)، نړیوال بانک او نړیوال مالیاتي فنډ یو ځل بیا هغه هیوادونه استثماروي او دا کار یې د (پوروونه بښل) نومولی. دوی په ځینو مسایلو

ټینګار کوي چې هیوادونه پکې ښکیل کړي مثلاً (ښه حکومتول، دادمن اقتصاد او ازاده سوداګري.) په یاد مو وي چې دا ټول اصطلاحات خواره خو تګ دي. دا مسایل به هله ښه شي چې بې د کارپوریټوکراسی له عینکو هم ښه ولیدل شي. هغه هیوادونه چې دا شرایط مني ورته ویل کیږي چې روغتیا، زده کړې، برښنا اوبه او نورې عام المنفعه اداري دې شخصي شي، په که سپینه ووایو دا چې به کارپوریټوکراسی دې وپلورل شي. بیا یې مجبوروي چې سب سډي دې لرې کړي. هغه سوداګریزي پالیسی ختموي چې د سیمه ایزې سوداګرۍ د ودې لپاره وضع شوې وي. ددې برعکس به ۹۸ هیوادونو دا حق هم منل کیږي چې خپل کاروبار ته اړتیا وړ سب سډي ورکولای شي او پر عایداتو به داسې پالیسي وضع کوي چې ددې هیوادونو د صنعت په ګټه وي.
بولویا چې د ښې حکومتولی شرط ومانه نو د اوبو سیستم خصوصي کولو لپاره یې نړیوالو شرکوتونو ته لاره پرانسته. اوس نو د اوبو نرخ اسمان ته وخاته او وګړو یې ویل چې په زرګونو خلکو اوبه بندې شوې. (۴) Cote d'Ivoire کې د ټیلیفوني خدماتو شرکت فرانسوي کمپنۍ واخیست او بیې دومره لوړې کړې چې خلکو لاینونه پرې کړل. په دې کې د پوهنتونونو محصلین هم وو چې د لوړې بیې له امله یې انټرنټ ته لاسرسی نه درلود او دا مهمه اړتیا ده. (۵) تنزانیا کې حالت بېخي خراب شو، هلته ماشومان ښوونځي ته د تللو کرایه ورکوي او ځینې یې دومره بیوسه دي چې دا یې له وسه نه پوره کیږي. (٦) کومو هیوادونو چې د پوروونو د بښلو په نوم دا لومړني شرایط منلي له همداسې حالت سره مخ شوي دی.

ددې نوې غمېزې ستونزه دا ده چې خلک يې بې فکره او بې لوسته ورسره مني. اوس به تاسو پوه شوي يئ چې دا کارونه هم د اقتصاد څپوونې يوه بله بڼه ده او په خپل نوعيت کې نړيوالې امپراتورۍ خواته مزل دی.

خو دريمه نړۍ پوهه شوې ده چې لوبه ورسره کيږي څه مروره ده. ۲۰۰۵ کال کې په سکاټلېنډ کې د ۸-۷ناستې پر ضد يو مقاومت وشو چې هغه هم د همدې تګې پر احساسات وو. ډېر خلک په دې باور وو چې بوش او بلېئر په ګډه بله لوبه پيل کوي. دوی د يوه داسې استثماري نظام رامنځته کولو هڅه کوله چې د کارپوريټوکراسۍ پلوي يې کوله او زور يې په ټوله نړۍ کې له پرتو ورو او بېوزلو خلکو واته.

امريکا د ۸-۷ کارپوريټوکراسۍ ډلې مشري او روزنه کوي. موږ امريکايان به تر کومه له خپلو مشرانو غوارږي چې خپله تګي برګي دې مني؟ هغه وخت به کله راځي چې موږ د ۹/۱۱، ماډريډ او لندن پېښو تر شا شته حقيقت ومنو؟ دا هم ويل کيږي چې دا پېښې د څو جنوني قاتلانو کار دی، خو دا حقيقت به څنګه رد شي چې داسې پېښې پرلپسې کيږي او ددې لپاره کيږي چې سلګونه زره نهيلي خلک يې ترې په خاموشه خوند اخلي او ملاتړ يې کوي. اخر به څوک راپاڅيږي او دا جرات به وکړي چې ووايي ( وګوره شاه خو هېڅ هم نه دي اغوستي، لوڅ لغړ دی!)

**پوښتنه:** پاول وولف وتز د نړيوال بانک مشر ټاکل شوی دی، ته پرې کومه تبصره لرې؟

**ځواب:** که مخکې کوم چا شک کاوه له دې ټاکنې وروسته دې يې له ذهنه وباسي چې دا نړيوال بانک نه دی. د يوازې د امريکا بانک دی. د امريکا ولسمشر ددې بانک مشر ټاکي. هماغه يې لوبې پرېکړې کوي. دا خبره بې معنا ده چې ددې رئيس د شخصيت په اړه زما نظر څه دی. اصلي پوښتنه

دا ده چې د برازيل، نايجيريا، اندونيزيا او نورو هيوادونو خلک يې په اړه څه نظر لري؟ که دا ربښتيا نړيوال بانک وای پرېکړې به يې داسې يوه بورډ کولای چې د ټولو هيوادونو په ګډه ټاکلی وي.

**پوښتنه:** ماته څه مشوره راکوئ؟ چې ددې حالت د بدلولو لپاره څه کولای شم؟

**ځواب:** د کتاب په وروستۍ برخه کې مې ځينې مشورې ورکړې دي، که له دې زيات څه کول غواړې نو يوازې يو ځواب بس نه دی.

موږ هر يو ځانګړې ګټې، وړتياوې او هنرونه لرو. زه ليکل کوم. نو زه ډېر څه کولای شم. خو زما کار د ښوونکي، مستري، نايي او وکيل له کار سره توپير لري. تاسو خپل ځان وپوښتئ: چې کوم کار مو خوښيږي؟ ضعف او قوت مو څه شی دی؟ زړه مو څه مني؟

د امريکا د انقلاب يو ستر لامل دا و چې د هرې برخې وړتيا لرونکي خپله وړتيا وکاروله. توماس پين ليکل کولای شول؛ نو د پوځ رهبري يې ونه کړه. جورج واشنګټن پوځي وو، د ليکنې هڅه يې ونه کړه. بنجمن فرنکلن فرانسوي ويله او زموږ په متحدينو کې ښه بريالی سفير شو. ښکاري ښه نښان ويشتونکی شو. مانوګانو داسې کښتۍ وچلولې چې د انګليس کښتۍ يې ودرولې. ښځو د جګړې ډګر ته کالي او خواړه ورسول او ماشومانو د پوځيانو ټوپکو ته مرمۍ چمتو کړې.

که ته ښوونکی يې؛ نو زده کوونکي دې پوه کړه چې تاريخ او ننۍ ورځپاڼې ولولي. که وکيل يې موکلين دې پوه کړه چې په ټولنيز لحاظ مسئول چلند وکړي. که نايي يا مستري يې خپل مشتريان وپوښته چې د خبرونو ښايست جوړېدونکو توقعاتو په اړه څه احساس لري؟ خبرې اترې کول، بدلون راوستو ته د زمينه سازۍ ښه لاره ده.

يو کار چې موږ يې کولای شو او بايد ويې وکړو دا دی چې له ځان راتاو خلک خبر وساتو. دجمهوريت بنسټ په باسواده ولس دی. سواد يوازې ليک او لوست نه دی، بلکې دا هغه ذهني روزنه ده چې مهمې او بنسټيزې پوښتنې پرې وکړای شئ. موږ بايد يوازې د خپلو مشرانو، شرکتونو او رسنيو په خبرو باور ونه کړو؛ بلکې سختې پوښتنې ترې بايد وشي. موږ بايد ليکنې ولولو.

دې پوښتنو، بېلابېلو سرچينو سره زما اړيکو او ناستو پاستو زه باوري کړم چې سلګونه زره امريکايان زموږ د کار په اړه اندېښنه لري ،پوښتنه کوي چې موږ څه کوو او غواړي پوه شي چې زموږ د ژوند بنه په نړۍ څه اغېز ښندي. ددوی اندېښنه پر ځای ده او د ځمکې په سر د ميليونونو خلکو غوندې دوی هم مرور دي.

**(پای)**

# Confessions of an economic hitman

**The shocking inside story of how America REALLY took over the world**

John Perknis

**Translator:**

Merahmad Yaad



چاپ چارې:

مومند خپرندویه ټولنه - ننګرهار افغانستان /۰۷۷۷۶۲۶۱۶۱ - ۰۷۰۰۶۲۶۱۶۱ - ۰۷۸۱۶۲۶۱۶۱

www.momandbooks.com – momand.books@gmail.com